




# افغانستان

## دتاریخ په رڼا کې

ليکوال
استاد احمد علي کهزاد

ژباړن
اورنګزيب ارشاد




☎: ۲۵۶۴۵۱۳-۹۱-۹۲+

# کتاب پېژندنه


نوم: افغانستان د تاریخ په رڼا کې

لیکوال: استاد احمدعلي کهزاد

ژباړن: اورنګزیب ارشاد

خپرونکی: دانش خپرندویه ټولنه

چاپ نېټه: مارچ ۲۰۰۱، کب ۱۳۷۹

چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه

کمپوز: جاویداحمد همیم - کفایت الله جواد

چاپ ځای او کمپوز: دانش کتابتون - ډهکی نعلبندی
قصه خوانی - پېښور

ټیلیفون: ۲۵۶۴۵۱۳

E-mail: danish2k2000@yahoo.com

بسم الله الرّحمٰن الرّحيم

# د خپرندوی یادښت

خوښ یو چې یو ځل بیا د ګران افغانستان د یوه نومیالي تاریخپوه (ښاغلي علي احمد کهزاد) د څو کاله پخواني پوهنیزې هڅې (افغانستان در پرتو تاریخ) پښتو ژباړه (افغانستان د تاریخ په رڼا کې) تر چاپ وروسته خپروو او تاسې خوږو مینه والو ته یې وړاندې کوو.

دا غوره او ارزښتمنه هڅه د پښتو لیکوال و ژباړن ښاغلي اورنګزیب ارشاد په قلم سرته ورسېده چې په خپل وار د پښتو ژبې او کلتور د ودې او پراختیا په برخه کې یو ګټور کار ګڼل کېږي.

موږ د دغه کتاب ښاغلي ژباړن ته پر کورودانې ویلو سربېره د نورو ښو هڅو او بریالیتوبونو هیله ورته کوو او له ښاغلي تاج الدین عاجز نه هم مننه کوو چې د متن په بیا کتنه کې یې خپل هر اړخیز زیار وګاله.

په پای کې هیله من یو چې د دغه نوي ګام اوچتېدا تر ډېره د درنو لوستونکیو لوست تنده ماته کړي او په خپل وار سره مو د زموللی فرهنګي بڼ یو نوی غاټول شي.




مننه

*دانش خپرندویه ټولنه*

# لړلیک

پای

# قره کمر




## په جګو سیمو کې د سمڅمېشتو د ژوندانه بهیر

دلرغونیو دبرینو پېرونو دژوندانه لومړنـي منـځي هغه پـړاو رابنیـي چـې پوهان یې په جګو سمڅو کې دبشري ژوندانـه پېر بولـي.

پـه جګو سمڅو کـې د ژونـد کولـو لـه پـاره دلوړو غرونـو لمنو تـه اړتیـا ده. زمـوږ دهېواد جغرافیـایي چاپېریـال رابنیـي چـې هاغـه مـهال انسـان د غرونـو پـه لمنـو او کمـرو کـې بنه استوګنځي لـرل. پـه تېره بیـا دهندوکش شـمالي لمنې چې لـه ارتـو درو او نـاوو سره نښتـې وي، ددا راز ژونـد لـه پـاره خـورا وړ ښکـارېدې.

پـه افغانسـتان کـې ((قـره کمـر)) پـه لـوړو ځایونـو کـې د غـار اوسـېدونکیو د ژونـد څرګندویـي کـوي او هغـه ځـا چـې پـر دغـه غـار دڅېړنـې زیـار ګاللـی امریکـایي "داکـتر کـارلتن کـون" دی، چـې لـه تـاریخ نـه پـه وړانـدې دوره کـې تخصص لـري.

قـره کمـر د ایبـک (سـمنګان) پـه (۸) کیلومـتری کـې د پلخمـري او تاشـقرغان ترمنـځ د هغـه کلـي ترڅنـګ پـروت دی، چـې د (سـرکار) پـه نامـه یـادېږي او د هغـه غره د لمنې پـه جنـوب ختیـزه برخـه کـې واقـع دی، چـې پـر نوموړي کلـي شـمالي څنډې (ایبـك) حـاکم دی.

د دغـه غـار لوړوالـی د سـیند لـه سـطحې څخـه (۲۳۰۰) فـتـه او لـه ښېرازې سیمې څخـه (۴۵۰) فـتـه دی، چـې لـږ ترلـږ ۱۲۵ متـره کیـږي.

په دې ترتیب د غار د لوړوالي او د ښېرازې سیمې له مخې په اسانۍ سره کولای شو، چې د هغې د اشغال تاریخ په لوړو غارونو ژوند کولو، په هغه ردیف کې ولولو.

د غرونو په لوړو او اوچتو برخو کې د هغوی د اوسیدلو علت له داړونکیو حیواناتو څخه ویره، هواره سیمه تر نظر لاندې نیول و دښکار څارل و تعقیبول وو.

داکتر کون د قره کمر د غار په پراخه پېمانه تر نظر لاندې نیولو په اړه وایي: "له هغه ځایه یې ترڅو میلو پورې پلنه دره لیده او د ښکاریانو لپاره ډېر مساعد ځای ځکه و، چې خپل ښکار به یې ترلرې پورې ښه لیدلای او څارلای شو.

د غار مخه د جنوب په لور ده او ټوله ورځ د لمر په وړانګو روښانه او تودېږي. همدارنګه اوبه یې هم نژدې دي او حیوانات یې ډېرلږ شاوخوا کې تګ راتګ کوي، پرته له دې ګټو او ښېګڼو په پخوانۍ زمانه کې، چې دا غار د ژوند ځای و د سون مواد یې هم په شاوخوا کې ډېر پیدا کېدل.

د غره د ډبرو جوړښت له نرمو کاڼو شوي او د ځمکني پوړیز جوړښت په (ژورسیك) طبقې پورې اړه لري.

د امریکایي پوه له خبرنو څخه داسې څرګندېږي، چې د قره کمر غار د "نیمې کاسې" بڼه لري. د غار ځمکه په بېلا بېلو یوښونو پوښل شوې و، چې ډېر ژور یې نسواري رنګ درلود او په مخ باندې یې تقریباً درې د رسوبي پوړونه لیدل کېدل او اوس د دې طبقو مخ خړ رنګه ختو نیولې دی، همدارنګه په نوموړي غار کې د اوسپنې په دوره کې هم استوګنه شوې او د قره کمر اوسېدونکیو په دې دورو کې د اوزو رمې درلودې او د رمو په ساتنه او شپونتوب بوخت وو او د دیوالو هغه برخې، چې تراشل شوي او ځینې پرچې ترېنه پرېوتي پورته خبره تائید وي.

د قره کمر د غار د خاورې په ټولو طبقو کې د ژوند او ژواك نښې نښانې ښکاري د حیواناتو هډوکي او له تېږو نه د کار جوړې شوې وسیلې یې هم څرګندې وې، نو کولای شو دا ادعا وکړو، چې نوموړی غار په لرغوني زمانه یا د تیږو د دورې په اوږدو کې د اوسېدلو یو مصئون او خوندي ځای و، مګر د تیږې د نوي دورې څه نښې نښانې پکې نه شته.

د قره کمر په غار کې د ژوند د دغو دورو تشخیص ډېر ارزښت لري، ځکه چې په ځانګړې توګه د تیږو لرغونې دورې پورې اړه لري او اوس په افغانستان کې دغه یواځینی ځای دی، چې د غرو په لوړو غارونو کې د تیږې د پخوانۍ دورې د ژوند پړاوونه موږ ته راپېژني.

د ((ډاکتر کارلتن کون)) د څېړنو له مخې موندل شوي اثار دکار له وسیلې، اور لګونکې ډبرې، د حیواناتو هډوکي، ایره او سکرو څخه عبارت دي، د دغوله مخې کولای شو په نوموړي غار کې د ژوند څلور دورې وټاکو. دا ښکاره ده، چې پناه وړونکي او د غار د څلورو دورو اوسېدونکي ښکاریان وو.

د قره کمر د لومړۍ دورې اوسېدونکیو، چې د ژوند اثار او نښې یې د ځمکې په نسواري رنګه پوړ کې پېدا شوي د تیږو ډېر ابتدایي لوښي درلودل، چې طبیعي بڼې ته یې لاس نه دی وروړل شوی او دې ډول بېلګو ته په اروپا، امریکا او اسیا کې په معموله علمي اصطلاح ((ډموسترین)) د دورې د کار وسیلې وایي او د (نه اندرتال) تیپ دانسانانو له وسایلو سره اړه پېدا کوي دغه وسیلې د قره کمر په شاوخوا د غره په لمنو کې هم لیدل شوي دي او له امکانه لرې نه ده، چې یا د قره کمر اوسېدونکیو هلته اچولي وي او یا د غار تر اوسېدلو د وړاندې دورو یادګار وي.

د قره کمر د غاراوسېدونکیود خپل ژوند په دویم پړاو کې، چې د دوی د ژوند دریمه برخه څرګندوي ډبرین چاقوګان ډېر زیات درلودل، چې د غار لومړۍ طبقې د رسوباتو په نیم متر ژورتیا کې یې څو زره دانې لیدل شوي دي، په دې مرحله کې په ښکار کې ډېر ماهر شوي او د باکر په ډبره یې د اور بلول زده کړي وو او خپل غار یې په اور تودولو. د هغوی لوښو لا تر دا وخته طبیعي بڼه درلوده او له درنو اوربلوونکیو ډبرو(پنډوباکر) او تېرو ډبرو څخه یې کار اخیسته.

د قره کمر د غار د دریمې دورې داوسېدونکیود ژوند سوېې له دویمې دورې سره زیات توپیر نه درلود. دتیږود وسیلو په وروستنۍ دوره کې د تیږو د منځنۍ دورې (مزدلې تیک) د وسیلو سره ورته والی لیدلی شوی دی، سره له دې چې د غار د رسوباتو ښکتني پوښ کې د خاورینو کلالي لوښو ټوټې او کودړي لیدل شوي، خو آرتي لامل یې دادی، چې د قره کمر په غار کې د ژوند ابتدایي دورې (له باکري تیږو څخه د کار وسیلې

جوړول) د حساب له مخې د لرغوني زماني له لوړ پړاو سره سمون خوري او د اوسني وخت د تجزيې د سنجش له مخې، چې د (۱۴ نمبر کاربن) د غار د سکرو پرچې چې په فيلاد لفيا او شيکاګو کې پېدا شوي. د غار دېره پخوانۍ هستوګنه، له نن څخه دمخه ۵۰ او ۳۰ زره کاله وړاندې زمانه څرګندوي او څرنګه، چې د غار د ښکتنۍ برخې د ځينو پخوانيو سکرو د توتې د کيمياوي تجزيې له مخې (۱۰۵۸۰) کاله وړاندې زماني سره پرتله کيږي. کولی شو ووايو، چې له نن څخه (۱۰۰۰۰) کاله وړاندې ښکاريانو په قره کمر کې ژوند ژواك درلود په افغانستان کې د ۱۴ نمبر کاربن تجزيه د تيرو پخوانيو، منځنيو او نويو دورو سره ښه موافقت څرګندوي، څکه چې د لس زره کالو په شاوخوا کې د لويديزې اسيا په زياترو برخو کې په غارونو کې د ژوند دوره پای ته رسېدلې او د تيرو نوې دوره پيل شوې ده نو دې پايلې ته رسيږو، چې لس زره کاله وړاندې د هندوکش ښکاريان د غرونو له دېرو لوړو پناه ځايونو څخه راوتلې او د هوارو سيمو او سترو سمسورو درو په لور يې يون کړی دی.

۳۷/۴/۱۹

# هزار سم

## د تیرو له لرغوني دورې څخه تر اسلامي دورې پورې

د کاروانونو د پخوانۍ لارې په اوږدو کې، چې بلخ یې له بامیانو او کابل سره تاړه د هغې په شمالي برخه (هندوکش په شمال کې) مو ډېره مهمه نقطه درلوده، چې د هغې اهمیت، جغرافیایي مُوقعیت د کاروانونو د لارې بېلوالی. د سمڅو پاتې شونې د ((مګالیت)) شته والی (هغه غټې ډبرې، چې پر ځمکه به یې ښخولې او د بشر د پخوانیو ودانیو نښې نښانې دي) د تیرو د دورې د کار وسایل او د رنګه لعاب دارو تیګرونو ټوټې څرګندوي. دا نقطه ((هزار سم)) نومېږي او څرنګه چې (سم) د (سموچ) لنډون دی کولای شو هغه ځای ته (هزارسموچ) یا زر سمڅې ووایو.

(هزار سم) د جغرافیایي جوړښت له مخې یوه فرعي دوره ده، چې د خلم د درې په ښکتنۍ برخه کې واقع او دهغې کارواني لارې پر سر ده، چې مخکې مو یاده کړه.

دوه مهم بودایي مرکزونه په شمال کې د ایبک تخت رستم یا سمنګان او د هندوکش په جنوب کې بامیان هغه منځنۍ نقطه ده، چې د دې ستر غره د لړۍ په زړه کې ځای لري.

((هزارسم)) دهغه سمڅو نوم دی، چې د دې درې ابادي د یو ((بودایي ښار)) په توګه خاطرې رایادوي، چې تراوسه د درې په اوږدو کې کتار، کتار پاتې دي او د بودایي خلکو د اوسېدلو استوګن ځایونه وو، چې د هغې زمانې د ځینو رنګه انځورنو نښې نښانې اوس هم په ځینو سمڅو کې له منځه نه دي تللې.

(هزارسم) لـه بودايـي عصر نـه ورانـدې ( د لومړۍ پېړۍ لـه پيـل نـه د اوومې زيـږدې پېړۍ تـر نيمـايي وروستـه) هـم استوګنې او ودانـۍ درلـودې او د هغـو دورو پـاتې شوني اثـار يـې د څېړنـې ور دي.

د ايټاليـايي لرغـون پـېژنـ ، ونکـي پـلاوي لـه څېړونـو څخـه چـې د ۱۹۴۱م کـال د منـي پـه موسم کـې يـې هلتـه ترسره کړې وې داسې څرګنـد هېږي، چې هزار سم او د هغې فرعي درې د تيـږو لـه لرغونو دورو څخـه تـر اسلامي دورې د مغلو لـه يرغـل څخـه دمخـه د هندوکـش لـه مـهمو او آبـادو مرکزونـو څخـه ګڼل کـېده. د هغـو مطالعـاتو لـه مخـې، چـې پـه غـارونو کـې پـه ژونـد پورې اړه لـري د (پالـه او لـي تيـك) دوره يـا لرغونـي دتيـږودوره (هزارسم) يـا (قـره کمـر) د دواړو سـاحې د جغرافيـايي موقعيـت د نزدېوالـي لـه مخـې او همداشان پـه لـوړو سـاحو کـې د غـارونو د موقعيـت لـه مخـې ډېر سـره ورتـه والـی لـري او د چـاقوګانو پـه شـکل او د تـېرې نوکـې لرونکـې وسيلې او يـو ډول وړو نسبتاً ګردوغـاښورو وسيلو شـته والـی د ((پليسـتوين)) د تيـږو پـر لرغونـې دورې ژونـد پـورې اړونـدي نـښې نښانـې دي. ايټاليـايي پـلاوي عقيـده لـري، چـې د ((هزارسـم)) ګارې د دې دورې د خلکـو داسـتوګنې او د حيوانـاتو د ښکـار لپـاره ډېرې مسـاعدې او برابـرې وې، ځکـه چـې دا غـارونـه پـه لـوړو برخـو کـې پراتـه وو او اوسېدونکي يـې د حيوانـاتو د يـو نـاڅاپي بريـد نـه پـه امـن کـې وو او د ښکـار لپـاره سـارايي ژوي پـه نـږدې ځلـورو خـواو کـې ډېر لږ پيدا کېدل.

د غـارونو پـه نـژدې لمنو کـې ځينـې ځانګړې د کـار وسيلې لکـه د يـو څيـز يـا ځای د سوري کولـو لپـاره وسيله، د هډوکو يـا لرګيـو د پرې کولـو وسيلې ليـدل کـېږي، چـې کـېدای شي دتيـږوپـه نـوې دوره پـورې اړه ولـري او د دوی د فراغـت لـه دورې سـره يـې اړه او ارتبـاط هـم لـري نـه ښکـاري. لـه دې څخـه داسې معلومـېږي، چې پـه هندوکـش کـې ښکـاري اوسېدونکي د تيـږو د لرغونـي دورې تـر تېرولـو وروسـته لـه لـوړو غـارونو څخـه ښکتـه راغلـي او د درې پـه منځنيـو هغـو ځايـو کـې، چـې اوبـه کـول او خروبـول يـې اسـان وو پـه کرونده بوخت او خپـل ژونـد يـې پيـل کـړی دی.

د ايټاليـايي پـوه پـه ګروهـه ((هزارسـم)) لـه هغـه وختـه د يـو واړه کلـي يـا ښار بـنـه غـوره کـړه، چـې کـاروانونو د هندوکـش پـه دواړو خـواو ځانتـه لارې

پرانستې او د غرونو په زړونو کې مرکزي اسیا او دهند شمال او جنوب خوا ته وخوځیدل.

د ((هزارسم)) په موقعیت مو وړاندې د کاروانونو د لارو بېلوالي ته نغوته وکړه، له هزار سمه رستم تخت، سور کوتل، بغلان او قندوز په لوري لارې همدارنګه له رستم پلاز څخه یعنې له سمنګان څخه خلم، بلخ او له هزارسمه د بامیانو او کابل پر لور هم لارې تللې وې. دا او همدا راز نورې لارې د درو په کرلېچونو او د هندوکش په کوتلونو تېرې شوې او د کاروانونو له هغو پخوانیو لارو سره، چې د هند او چین ترمنځ وې یو ځای کېدلې.

ایتالیویانو ((هزارسم)) د بودیزم په دوره کې د یو لوی ښار په توګه پېژندلی، چې د وړو فرعي درو په ګډون یې ((۳۵۰۰۰۰)) مربع متره پراخوالی درلود.

لکه څرنګه چې په مختلفو دورو کې دژوند نښې نښانې لکه دطبیعي غارونو په بڼه (مګالیت) یا دهغو سترو طبیعي ډبروپه ډول، اچې تورول شوي او د دایرې په شکل په ځمکه کې ښخې دي، همداراز هغه سمڅې چې شم . یې سلګونو او زرګونو ته رسېږي او هغه له تیروجوړ شوي سترې چاردیوالي اوکنډرې او بالاخره د ختو پخې ودانۍ ټولې دلته موجودې دي

دتیرولـه لرغونې او اوسنۍ دورې نه نیولې د جستو تر دورې پورې د ژوند ټول پړاوونه او تر هغې وروسته د کروندې تر وخته او بیا تر هغې، چې د کاروانونو لار خلاصه شوه له هغه مهاله د بودایي دین نر خپرېدو او بیا تر اسلامي دورې پورې، دا ټول هله مطالعه کولای شو. چې د چنګیز یرغل د هغه ځای ښکلا او پرتم نسکور او ړنګ کړ.

۱۳۳۷/۵/۱۷

# د هیر مند او ارغنداو سیمه

## تر تاریخ دمخه د ژوند او استوګنې یو مرکز

څوکاله کېږي، چې له تاریخ نه دمخه دورو باندې د افغانستان د جغرافیایي موقعیت په هکله ځلور خواینیدې څېړنې شوي دي، چې یو خوا د سند په سیمه کې د (اندوس مدنیت) او بله خوا د شمال په لور په هغو غونډیو کې، چې د آمو د سیند په بنی غاړه کې پرتې دي د (انومدنیت) همدارنګه دریمه خوا، د ایران په خاوره کې، د (سیالك او جبال مدنیتونه) او همدارنګه نور کشف او موندل شوي دي دغه مهال د افغانستان دخاورې هغه نقشه، چې د لرغونپوهنې په پلټنې پورې اړه ولرې (له تاریخ نه دمخه دوره) یې سپینه پاتې وه.

له نیکه مرغه (۲۲) کاله وړاندې د ۱۹۳۶ زیږدي کال فرانسوي پروفیسور هاکن د همغه وخت افغانستان ته د کېندنو یا سپړلو لپاره ولېږل شو د پلاوي مدیر (پروفیسر ګیرهمن) په همکارۍ، چې د قبل التاریخ متخصص و او هغه وخت یې په ایران کې کار کاوه د لومړي ځل لپاره یې د قبل التاریخ دورې د پلټنې کار د هیرمند په سیمه یا په بله وینا په افغاني سیستان کې طرح کړ او د ((نادعلي)) په شاوخوا کې، چې د (زرنګ) یعنې د سیستان د پخوانۍ پلازمینې یوه برخه خرابې کنډوالې

پکي هم شامل دي په دوه غونډيو سورداغ او سپين داغ کې کېندنې پيل کړې.
په لومړۍ ياده شوي غونډۍ کې چې نږدې ۳۰ متره يې له سمسورې ځمکې ځخه لوړوالی درلود، د غونډۍ د سطحې په لومړيو لس مترو کې زر کلن (ترمخيزېدي پخواني) اثار او نښې نښانې پېدا شوي. سره له دې، چې د کېندنو کار د ځينو عواملو له امله پاتې شو، خو معلومه شوه، چې د هيرمند په سيمه کې هغه معنوي غونډۍ له تاريخه وړاندې پېر نښې نښانې دي.
د افغانستان په خاوره کې هغه سيمې چې انسانانو ته د غارونو له ژوند نه را وروسته پکې د ښکار او ژوند لارې چارې برابرې وې او د ژوند لپاره اوبه و هوا او د زراعت لپاره يې له مساعده خاوره لرله، درې لويې سيمې دي. لومړۍ سيستان يا د هيرمند د (ارغنداب په ګډون) دويم د باختر سيمه چې په دې دواړو لويو سيمو کې ستر سيندونه هېرمند او امو له خپلو مرستيالانو سره جريان لري او ښې حاصل خېزې او پراخې کروندې يې خړوب کړي او نسبتا توده هوا يې د نباتاتو په وده او د حيواناتو په روزلو او روزنه کې ډېره مرسته کوي.
که چېرې د لرغوني تاريخ غږ ته غوږ شو د تېرو زرګونو پېړيو له منځه دزاړه مدنيت د کاروانونو اواز غوږونو ته رارسېږي.
په دې دوه پراخو ساحو کې له تاريخ نه وړاندې د اوسېدلو د ځايونو د تثبيت لپاره يوازې په افغاني سيستان کې ګام پورته شوی، د دې ترڅنګ د هيرمند د مرستيالانو سيمه يعني په (ارغنداب) او (ترنک) کې هم تر يو ځايه کار شوی او همدارنګه دا کار د فرانسوي پلاوي او د هغه پلاوي له خوا، چې د امريکا د نيويارک طبيعي تاريخ د موزيم د بشري پېژندنې د څانګې له خوا تاکل شوی او په (۱۹۴۹) (۱۹۵۰) (۱۹۵۰) (۱۹۵۱) افغانستان ته راغلی وو او د افغاني واکمنو د موافقې او اجازې پر اساس يې کار پيل کړ او دا کار يې په يوه لويه ساحه کې، چې د ((فراه)) او ((جودين)) نه نيولې تر ((پنجوايي)) او د کندهار جنوب پلو ته حتی د (ترنک) تر سيمې پورې يې د قبل التاريخ داوسېدنو ځايونو د تثبيت کار ترسره کړ، له دې څېړنو نه معلومه شوه، چې په دې سيمو کې داسې نقطې شته، چې کولی شو د قبل التاريخ د ژوند پاتې شونې نښې نښانې ورڅخه پېدا

کړو، سره له دې چې د سیستان هغو بادونو، چې د حذر له سواحل نه رالوزي او هغه رسوبات، چې د هېرمند سیند او مرستیالان یې د هوارې ځمکې پر مخ هوار کړي او د پخوانۍ زمانې د اوسېدونکیو ځایونه یې توږلي او یوه برخه یې پټه شوې ده. سره له دې په لاندې درې ځایونو کې یې ډېرې نښې نښانې موندل کېږي:

*لومړی*: د هیرمند هغه سیموکې، چې له پخوا زمانې وچویه ده او دا سیمه د لویدیز چاربرجك سره نښتې او په سیمه ایزې اصطلاح کې ورته ((رودبیابان)) وایي.

*دویم*: د (فراه) او شاوخوا سیمو کې.

*دریم*: د کندهار په شاوخوا او یا په ټوله هغه سیمه کې، چې د ارغنداو او ترنك ترمنځ ده.

د قبل تاریخ څېړنې په دغه درې یادو شویو لویو سیمو کې د خاورې په کتنې سره محدودې پاتې نه شوې، بلکې له ۱۹۵۰ او ۱۹۵۱ کال څخه راپدې خوا، چې ۸ کاله تېر شول، په څو نورو سیمو کې چې پورته سیمو پورې اړه لري لکه (سید کلا غونډۍ)،(نوراني غونډۍ) (موراسي غونډۍ) او د (منډیګك تپه) مقدماتي هڅې پیل شوې او همدا راز د (منډیګك غونډۍ) چې د کندهار شمال لویدیځ پلو په ۵۰ کیلومترۍ کې پرته ده، پدې وروستیو ۵ کالو کې په ډېره لویه پیمانه کېندنې او سپړنې روانې دي، چې په همدغه مجموعه کې به دهغې په اړه نورې مقالې هم ولولئ.

سید کلا غونډۍ د کندهار ختیځ پلو په ۹ میلۍ کې د زراعتي ځمکو په منځ کې پرته ده او (موراسي غونډۍ) د کندهار جنوب لویدیځ خوا ته په ۱۲ میلۍ کې د (پنجوایي) په کلي کې واقع ده. له دغو غونډیو څخه په ابتدایي او مقدماتي هڅو کې خاورین کلالي لوښي لاس ته راغلي دي. دغه د سید کلا د غونډۍ نه په لاس راغلي خاورین لوښي او د موراسي غونډۍ کشف شوي لوښي د څرخ په واسطه جوړ شوي دي. دغه ډوله مجسمې د (سند) د مدنیت په وادۍ کې هم سابقه لري او په کویټه (ژوب دره) کې،چې په بلوچستان کې واقع دی هم په لاس راغلي دي.

همدارنګه د دوه کوچنیو لرونکو غوایانو مجسمې ځینې په سید کلا غونډۍ (کندهار) اویو څه یې په کویټه او د ((سند په سیمه کې)) کشف

شوي دي نو له دې څخه څرګندېږي، چې له تاریخ وړاندې زمانه کې د هیرمند او ارغنداو او همدارنګه د سند د سیمې د مدنیت ترمنځ اړیکې ټینګې دي، چې هنري او فرهنګي صبغه یې ښکاره او څرګنده ده.

د (منډیګک) غونډۍ، چې د کندهار شمال لویدیځ ته پرته ده او له تاریخ دمخه دورې اثارو لپاره پکې کیندنې ادامه لري، دا څرګندوي، چې د ارغنداو له تاریخه وړاندې مدنیت د ځینو توپیري ټکیو په لرلو د سند وادۍ له مدنیت څخه لرغونتیا لري.

لنډه دا چې د خاورې له مخې څېړنو او هڅو، چې په هیرمند اوارغنداوکې منځ ته راغلې څرګنده کړې، چې دا د افغانستان د سیستان دا دوه لویې سیندونه له تاریخ نه وړاندې دوره کې د بشر د ژوند لپاره په ځانګړې توګه د (نیولي تیک) په دوره یعنې د تیږې په نوې دوره کې ډېره مساعد وو او افغاني سیستان د یو منځنې فرهنګي ځای په توګه د سند د سیمې، آمو سیند او ختیځ ایران د غونډیو ترمنځ د ارتباط نقطه ګڼل کېدله او د دې اړیکو عوامل تر ډېرې اندازې له هغو غونډیو څخه چې موږ یې نمونه واخیستل، کشف شوي دي.

۱۶/۲/۱۳۳۷

# منډيګک

## د يارلس ځله يو پر بل (سرپرس) ودانۍ د پينځه زره کلن ژوند نښې نښانې

تل د خلکو له ژبو اورو او په مقالو کې لولو، چې افغانستان پينځه زره کلن تاريخ لري. دې خبرو ترڅو کالو وړاندې ډېر اندې ارخ درلود. څه د خلکو په نقل قول او يو څه په اريايي سرودونو، اسطورو او په نيمه تاريخي او نيمه افسانوي اقوالو متکې وې، خو له دې څوکلو راپدې خوا زموږ اتکا علمي اړخ پېدا کړي دی او د افغانستان د يوې سيمې په يوه غونډۍ کې، چې د منډيګک په نوم يادېږي داسې نښې نښانې په لاس راغلي دي، چې د پينځه زره کلو تاريخي پړاو او تر تاريخ دمخه زمانه کې د افغانستان اوسېدونکيو د ژوند د يوې ګوښې څرګندويي کوي.

منډيګک هغه غونډۍ ده، چې له هوارې برخې نه تقريبا ۳۱ متره لوړوالی لري او د کندهار شمال لوديځ پلو ته په ۵۰ کيلو متری کې د کشک نخود په سيمه کې د شاه مقصود د غره په خوا کې پرته ده.

که يې په يو پراخ چوکاټ کې راونيسو دا لويه غونډۍ د دوه لويو سيندو(ارغنداب او هيرمند) ترمنځ سيمه کې پرته ده، چې په همغه پلو يې ترڅنګ د کشک نخود سيند، چې دا يو سيلابي خوړ دی، چې زياتره وخت وچ او کله کله په باراني موسم کې څپانديږي.

په يوه ګوښه کې د منډيګک د غونډۍ ننی موقعيت انسان له حيرانتيا سره مخامخوي، خو په لرغونو او ترتاريخ دمخه دورو کې دا ځای حتما د دوو خوړونو د تنګ لوري په منځ کې د کاروانونو د تګ لارې پر سر و او په مجموعي ډول د دوه سترو رودخانو هېرمند اوارغنداو ترمنځ دغه ټوله ساحه يو له هغو ساحو څخه ده، چې تر تاريخ دمخه يې افغانستان کې د ژوند و ژواک مهم مرکز ګڼلی شو.

د کیندلو لـه پیلـه، ان تـردا څو ورځې وړانـدې پـورې چـې د فرانسـوي لرغـون پېژودونکي او د قبـل التـاریخ متخصص ((موسیوکزال)) لـه خـوا یـې د کېندلـو پـای اعـلان او د کیندلـو یوولـس پړاوونـه پـه پرلـه پسـې ډول د (منـډیګک) پـه غونـډۍ کـې ترسـره کـړل او پنځلـس پوړیـزه ودانـي یـې پـه مختلفو وختونو کې پرله پسې کشف کړه.

د منـډیګک د غونـډۍ ۳۱ متـره لوړوالـي پـه حقیقـت کـې د پنځلـس ګونـو مختلفـو ابـادیو لـه لـړوالي یـا (ښوېدلـو) پـه وجـه صـورت نیولـی، چـې د ۳ زره مخزیـږدیو کلونو پـه اوږدو کـې پرلـه پسـې ابـادې شـوي، دزیـږدي پـه حسـاب، ۳ زره کالـه وړانـدې ۱۳ طبقـې ابـادۍ پرلـه پسـې پـه مختلفـو وختـونو کـې منـځ تـه راغلي او لـه ۲ زره کـالو راپدېخـوا نومـوړې غونـډۍ خوشـې پـاتې ده.

پـه بلـه وینـا افغانسـتان پـه ټولـه اسـلامي دوره کـې یـاده شـوې غونډۍ شـړه او لـه خلکـو خـالي پرتـه وه ان تـر اسـلام ۴ سـوه کالـه وړانـدې هـم هلتـه ژونـد نـدی شـوی او هلتـه د ابـادۍ ټول وختونـه دزیـږدي لـه ۳ زره کلـو وړانـدې وختونو پـورې اړه لـري.

د کندهـار د منـډیګک د غونـډۍ د قبـل التـاریخ مدنیـت ټول د برونـز او جسـتو پـه دوره پـورې اړونـد دی، ځکـه چـې د اشـغال پـه دې وروسـتۍ دوره کـې، چـې د ابـادۍ او ژوند شـواهد د غونـډۍ پـر مـخ ښیـي د اوسـپنې د دورې ډیر واړه او نـاڅیز آثـار پـه لاس راغلـي.

پـه غونـډۍ کـې د لومـړۍ او پنځلسـمې مرحلـې ترمنـځ د ارغنـداو او هیـرمند د سیمې اوسیدونکیو پـه خپـل ژونـد کـې مختلفـې دورې پـه بدلـون سره تېرې کـړي دي. خښتـه یـې اختراع کـړې او بیـا یـې پـه لمـر کـې وچـه کـړې ده او د خښتـو د دیوالونـو پـه جوړولـو مشـغول شـوي، ورو ورو پـه ترتیـب سـره یـې د خټو د لوښي پیدا کـړي دي دخـاورینو لوښیـو پخولـو کـې یـې نورهـم زیـار وکـښی او وربـاندې ښه نقشـونه لکـه د حیوانـاتو او مرغـانو انځورنـه ( چـې دا مخصوصـاً د قبـل التـاریخ د دورې و، (چـې نـن ورځ هغـه نسـل لـه منځه تللی) منـځ تـه راوړل.

د منـډیګک پـه غونـډۍ کـې د ژونـد پـه لومړیـو دورو کـې ځینـو خلکـو مـالداري او کـوچیـاني ژونـد لاره او بیـا وروسـته ځای پـر ځای او مسـتقر ژونـد پیـل کـړی او بیـا پخـه پیـل شـوې ده. آبـادي، همـدا راز یـې تـر ۸ یـا ۹ نـورو

مرحلو دوام کړی. په همدې ترتيب د تيرو او ختو لوښيو غوره والی موندلی او په ۸ يا ۹ مرحله کې د تپې اشغال عالي درجې ته رسېدلی.

د دې مرحلې لوښي د (کويټه) بلوچستان د قبل التاريخ له لوښيو سره ډېر ورته والی لري، د غونډۍ د شپږمې مرحلې د اشغال نه وروسته د (مس او جست) فلزاتو شواهد وکتل شول د مشهورې کيمياوي تجربې له مخې د ۱۴ نمبر کاربن په اصول، چې په امريکا کې يې صورت نيولی د منډيګك د غونډۍ د ژوند کوونکيو د ژوند مرحله له ۲۶۲۵ م ز سره سمون خوري.

وروسته له هغې، چې د منډيګك غونډۍ د اتمې دورې د ودانۍ تقريبا ۲۰ متره د سمسورې سيمې له سطحې لوړ شوې وه، يوه نوې دوره يې په مجلله توګه منځ ته راوسته، چې د هغې لويې ودانۍ د جوړښت نښې نښانې په خښتو جوړې شوې لويې ستنې يې د پام را اړونې وړ دي، چې ۳ زره کاله وړاندې تر ميلاد د دې ودانۍ موجوديت د لرغون پېژندونکيو د هېښتيا لامل ګرځېدلی.

د منډيګك غونډۍ پرته له انځور لرونکيو لوښيو او ځيزونو، چې د حېواناتو او مرغانو انځورونه پرې ښکل شوي، د حېواناتو وړې مجسمې او مخصوصا د ښځو هغه مجسمې (هيکل) هم کشف شوي دي، چې (الهه مادر) (دمور رب النوع) يا مع بانو په نامه ته د نمانځنه عبادت کيدو.

له دغو مجسمو نه د يوې په غاړه کې يې غاړکۍ يا (ګلوبند) دی او په هغه زنځير کې چې د دواړو سينو په منځ کې يې ځړېدلی دی يو ډول ګاڼه هم ليدل کېږي.

د ۳۰۰۰ کاله وړاندې تر ميلاد په وروستيو او ۴ زره کالو وړاندې د ۳ زريزې په اخر او د څلورمې زريزې په پيل کې د دغو ګاڼو موجوديت د ارغنداو د سيمې د قبل التاريخ د خلکو د مدني ژوند پراخوالی څرګندوي او معلوميږي، چې د افغانستان اوسېدونکي او د (موهنجوديرو)، چې د سند په سيمه کې واقع دی ۵ زره کاله وړاندې يې د ژوند (د قبل التاريخ دوره) په يوه شان تېره کړې ده او امکان لري، چې د منډيګك تپه خپله د قبل التاريخ دورې لرغونتوب ته دمخه پراوونه تري څرګند شي.

۲۵/۱/۱۳۳۸

# منډیګک

د برونز (مفرغ) د زمـانې د نښو نښانـو لـه کشـف کېدلـو پســې، چــې د تېرې پېړۍ په اوږدو کې د ختیځ پـه بېلابېلو برخـو کې منځ تـه راغلي او هغـه هـڅې، چې لــه پنځوس کلـو راهیسـې د هنـد پـه نیمـه قـاره (هند او اوسني پاکستان) کې یې پدې دورې پورې اړونـدې ترسره شـوې دي، انتظـار کـېده، چې یوه ورځ بـه پـه افغانسـتان کې هم پدې برخـه کې کشفیات وشي.

د کیندنـو د پـلاوي پخوانـي فرانسـوي مدیـر ((موسیوګیرشـمن)) لـه هغـو لومړنیـو هـڅو نـه وروسـته، چې پر ۱۹۳۶ کـال یـې د افغانسـتان د سیسـتان پـه نـادعلي کې وکـړې، پورتنـۍ مفکـوره ډېره پیـاوړې شـوه، خـو لـه ۱۹۵۰ کاله وروسته، چې د کندهـار سیمې لـه تاریخـه ورانـدې د سـروې لپـاره پـه پـام کـې نیـول شـوې وې وڅیـړل شـوې او پکـې یـو مهمـه غونـډۍ کشـف شـوه، چـې پـه علمي ډول یې کیندنې پـه څلورو مرحلـو کـې خلاصـه کـوو.

دا غونـډۍ ((منـډیګک)) نومـېږي او هلتـه د بشـر اوسـېدلو لـه وروسـتي تـاریخ نـه درې زره کالـه تېر شـوي، نومـوړې غونـډۍ تـه پـه دغـه اوږده زمانـه کـې بـاد او بـاران مخروطـي بـڼه ورکـړې او د ارغنـداو د درې پـه خـوا کـې پـه مـوازي ډول او د کندهـار ګرشـك د سـرك پـه ۲۰ میلـۍ کـې او تقریبـاً پـه همدغـه فاصلـه د کندهـار د ښار پـه شـمال ختیـځ کـې پـه څو سـوه متـرۍ کـې یـو خوړ پروت دی، چـې پرتـه لـه سیلابه وچ دي.

البتــه دا خـبره ډېره د حېرانتیـا وړ ده، چــې یــوه غونـډۍ چــې د سـوداګرۍ لـه لارو لـرې او پـه داسـې یـوه نقطـه کـې، چــې د ښار جوړونــې او ابـادۍ لپـاره مساعده نـه وي پرتـه ده؟ خـو کـه چېرتـه دموسـم پـه وجـه مهاجرتونـه او د قبـایلي کوچیـانو حرکـت پـام کـې ونیـول شـي، نـو ښکـاره ده چـې د غونـډۍ پـه شـاوخوا

کې د شپې تېرونې لپاره د ډېرو تورو خېمو د درلودلو کافي ځای شته، چې سهار ترې کډه کېږي، نو بيا په هغه سيمه کې د خلکو د اوسېدلو هېڅ ډول نښې نښانې نه ښکاري، نو هېڅ شک نه شته، چې دلته به د قبايلي کوچيانو د عنعنوي لارو نه يوه لاره او د کاروانيانو د تېرېدو ځای و او همداراز د پخواني وخت نورې نښې نښانې هم شته او د هيرمند په غونډۍ کې هم همدغه مفکوره ثابتېدلی شي. کوچيان خلک، چې پخپله او د هغوی څاروي، چې گياه او څړځای ته اړتيا لري، نو د همدې اړتيا له مخې تل د غرونو او هوارو ځمکو ترمنځ په حرکت کې وي په پورتنيو يادوشو سيمو کې يې همېشه تگ راتگ درلود.

شک نه شته، چې نن ورځ په دغو حدوداتو کې د کرنې ځمکه لږه ده او هغه هم د کارېز په اوبو خړوبېږي، مگر په هغه پخوانی زمانه کې، چې منډيگک اباد د خلکو استوگنځی و د خپلې اړتيا وړ اوبه يې له خوړ څخه ترلاسه کولې.

د کيندئو د لومړۍ دورې په دوران کې د يوې لومړۍ هڅې په ترڅ کې څرگنده شوه، چې نوموړې غونډۍ د ابادۍ ۱۳ بيلا بېل پړاونه تير کړي، چې د څلور زرم کال له پيل نه د لومړي زرم کال تر پيل پورې دا ټوله دوره په برکې نيسي.

د نوموړې غونډۍ د اشغال د وروستۍ دورې اثار د زېرمه ځای په بڼه راڅرگند شول، چې د هغې ديوالونه ټول د پخسې نه جوړ وو.

هغه ځای، چې پکې د غلو دانو زيرمه د مستطيل په شکل احاطه شوې ښکارېدله سره له دې، چې دا زيرمه ځايونه کوچني وو، خو په ماهيت او اصل کې که ورته فکر وشي له هغو زيرمه ځايونو سره پوره ورته والی لري، چې په (هرپه) ( د اندوس په حوزه= سند) کې کشف شوي دي. نوموړي زيرمه ځايونه د ځمکې دوه درې پوړونه نيولي دي او د غونډۍ پر اشغال پر يوې اوږدې دورې دلالت کوي. ډېرينې تېره څوکې نېزې، د جستو درې نوکې نېزې، په ميچنغوزو کې د اينبودلو لپاره د ختو مخصوص غونډاري ثابتوي چې د غونډۍ اوسېدونکيو د خپل زيرمه ځای د ساتنې لپاره دفاعي وسايلو ته لاس ور وړ. د جستو د نېزو او داسې نورو نښو نښانو له مخې د منډيگک د غونډۍ وروستۍ دوره ته د ميلاد نه مخکې د لومړي زر کالو له پيل څخه يعنې له نن نه درې زره کاله وړاندې زمانه ښلی شو.

د زیرمه ځای له پوړونو ښکته د ژوند په اوږده جریان کې د کوم فعال ژوند د دورې څه نښې نښانې نه ښکاري او داسې څرګندېږي، چې د منډیګک غونډۍ د یوې مودې لپاره تشه پاتې شوې او که څېرته پکې استوګنه شوې هم وي، نو موقتي وه او دهغې نښې نښانې هم د ایرو، د اوربلونې له ځایونو او داسې نورو نه معلومېږي. وروسته بیا د نورو ابادیو له نښو نښانو څخه څرګندېږي او موږ ته ښیي، چې د منډیګک غونډۍ د خپل ژوند په اوږدو کې د خپل عمر ډېرې مهمې دورې تېرې کړې دي.

هغه کنډواله، چې دلته ورسره مخامخ شوي یو د یوې لویې ودانۍ پاتې شونې ده، چې دا له خامو خښتو جوړه او د وخت په تېرېدو یې نیمه مخروطي بڼه غوره کړې او په باندینۍ خوا کې یې فیل پایې لري، چې حتی نن ورځ هم ورته ډېر ارزښت ورکول کېږي او مخصوصاً د عمارت شمالي اړخ ته، چې ډېرې فیل پایې یې تراوسه پاتې دي له دې څخه د ودانۍ لویوالی ډېر ښه څرګندېږي.

متاسفانه، چې د کیندنو د اوسنۍ وضعې له مخې د دې ودانۍ اصلي هویت او پېژندنه نشو کولی، ځکه چې تراوسه، چې کوم اثار په دې ودانۍ کې لاس ته راغلي هغه د جستو چاقوګان دي، چې د جستو تېغ او د هډوکي لاستی لري او ډېرې ښایسته د (تیکري) ټوټې دي، نو له همدې امله دومره اټکل کېږي، چې دا څېزونه د کوم نظامي هدف او غرض په خاطر نه دي جوړ شوي او همدارنګه د استوګنې کوم عادي ځای هم نه و. که څېرته له پخې ختې څخه جوړې د مور رب النوع مجسمې ماتو ټوټو باندې استناد وکړو، نو کولای شو، چې نوموړي ځای ته د یو عبادت ځای نسبت وکړو، مګر دا قضاوت هم مخکې له وخته دی، د اور کوټې ماته شوې مجسمه له هغو اثارو سره ورته والی لري، چې په (بلوچستان) او لرې د سند په سیمه کې پیدا شوي دي.

دا پرتمینه ودانۍ د دیوالونو او فیل پایو په مخ په سپین رنګ، رنګ کړې شوي اثار هم لري او داسې ښکاري، چې په بېلا بېلو وختونو کې څو ځله رنګ شوي وي.

لنډه دا چې د منډیګک د غونډۍ بېلا بېل پوړونه له لاندې نه پورته خوا ته په لاندې ډول دي.

د څمکې له مخ نه پورته پلو ته تر ۹ پوړو پوري د نیمه کوچیانو د ژوندانه نښې نښانې لیدل کېږي او داسې څرګندېږي، چې یوه موده د منډیګك د غونډۍ لومړنې اوسېدونکي مالدار او نیمه کوچیان وو د کورونو د جوړښت ډول یې په پخسه آباد و او بیا د لومړي څل لپاره خښتې او هغه هم خامې خښتې څرګندېږي اوتردریولاندینیو پوړونو پورې ادامه لري.

ختین لوښي په لومړي پوړ کې ساده او په ابتدایي ډول وو او وروسته یې محسوسې ترقۍ احساس کېږي او لوښي یې له پخې ختې څخه جوړ ښکلي کیږي اوپه تدریج سره ډېر ښه کېږي تر هغې وروسته ډېر ښکلي نقش او انځور لرونکي ختین لوښي راڅرګندېږي. د حیواناتو، الوتونکو، ګلانو دجګو جګوښکرو غرڅه، دښکلو اوپېچلو ښکو والافیل مرغ او داسې نور انځورونه په جګو پایه لرونکو جامونو لیدل کېږي. ختین انځورکړای شوي لوښي له اتم پوړ څخه وروسته ډېر پېدا کېږي او همدارنګه یې په نهم پوړ کې شمېر ډېر زیاتېږي او دا لوښي له هغو لوښیو سره ډېر ورته والی لري، چې په کویټه کې کشف شوي دي.

فلزات جست اوس له شپږم پوړ څخه پیل کېږي د هغو ازمېښتونوله مخې، چې د ۱۴ نومره وړانګې په واسطه یې د پنځم پوړ له سکرو یې منځ ته راغلي د نوموړي پوړ تاریخ ۲۶۲۵ م ز کال ته یې نسبت کیږي. د دې پوړ له کنډوالو څخه د یوې لویې ودانۍ نقشه څرګنده شوه، چې شرح یې تاسو دمنجه ولوستله او د هغې تاریخ د کشف شوو نښو نښانو په بنا د دریمې زرمې دویمه نیمایي ګڼلی شو، دا ستره ودانۍ هم په تدریج سره په راتلونکو دورو کې رنګه شوې ده او نوي را رسېدلي خلك پر غونډۍ استوګن شوي، چې د هغوی زیرمه ځایونه په دریو پوړونو کې د منډیګك د غونډۍ په ښکتنۍ برخه کې ترسترګو کېږي. په همدې ترتیب ویلی شو، چې د منډیګك غونډۍ هغه ابادي ده، چې له پېنځه زرو نه تر دوه زرو کلو وړاندې دلرغنداوپه سیمه کې د جستو (برنزو) د دورې ژوند له ضمني بدلونونو ترځنګ څرګندوي.

۷/۲/۱۳۴۰

# پنجوايي

له کندهار ښاره جنوب لويديځ خواته لس کروه لرې يو ښېر کلي پراته دي، چې د (پنجوايي) په نوم ياديږي، اوسنۍ پنجوايي هغه سيمه ده، چې ډېره ښېرازه، سمسوره او حاصل خېزه ده او مېوې غلې دانې پکې ډېرې دي. په ځانګړې توګه د انګورو باغونه يې ډېر شهرت لري، مګر که کيسو، داستانونو او تاريخي ماخذونو او سربېره پردې د لرغون پېژندونکي څېړنو ته پاملرنه وکړو وينو، چې تقريبا له ۵ زرو کلو وړاندې دا کوچنۍ سيمه، له زراعتي ځمکې نه نيولې د غره تر غارونو پورې چې دا سيمه يې د جنوب له خوا راچاپېره کړې د ارغنداو رود تر غاړو (کيڼ خواته) يو انساني استوګنځای دی او ترتاريخ وړاندې او تاريخي دورې يې په بېلا بېلو وختونو کې تېرې کړې دي. ښايي ډېرو لرو خلکو د (شمشېر غار) او (تور غار) نوم او همدارنګه د (مراسمي غونډۍ) نوم اورېدلی وي.

شمشېر غار او تور غار د لرغوني زماني دوه غارونه دي، چې د پخوانيو خلکو د استوګنې ځايونه وو. د لومړي ځل لپاره پر ۱۹۳۰ کال هغه وخت، چې د زير کاروان پلاوی افغانستان ته راتلو، يوه ورځ مې له پروفيسر هاکن سره يو ځای شمشېر غار وليد، عام خلك د دې غارونو په باره کې عجيبې کيسې کوي د سرو زرو د خښتو او د هغه ځرخ په باره کې چې په پرو کې يې چرې ترلې خبرې کوي او هلته ورننوتل هم ناشونی کار بولي.

غـار تـه تـر ننوتلو وروسـتـه يـوه سـتره ګرده احاطـه راځي، چې د وخـت پـه تېرېدو د ځينـو مـوادو د ويلـې کـېدو پـه وجـه او يـو ډول اهکـي مـواد پـه ديوالونـو راڅڅېدلـي، چې ډېر عجيب غونـډي شـکلونه يـې جـوړ کـړي دي، چې طبعـا يې ځايي خلك لـه حېرانتيـا سـره مخـامخ کـړي او هغـې تـه پـه علمـي اصطـلاح کـې ((ګلفهشـنګ)) او ((شفشـاهنګ)) وايـي وروسـتـه لـه هغـې پـه ۱۹۵۱ ز کـال کـې موسـيوديو يـو تـن پـوه، چـې لرغـون پـېژندونکـی و او د نيويـارك د طبيعـي تـاريخ د وګړ پوهنـې د پـلاوي غـړی و دې غـارونو تـه ورننوت او هلتـه يې تـر کيندنـو وروسـتـه لـه کوشاني دورې څخـه نيولـې تـر نـن پورې د ژونـد د مختلفـو دورو نـښې نښانـې ترلاسـه کـړې.

تـور غـار، چـې نسـبتا ښکتـه واقـع دی د پنجوايـي د خلکـو لـه خـوا بنـد کـړای شـوی، ځکـه چې د هغـوی يـو شـمېر ماشـومان هلتـه ورك شـوي دي. دا غـارونـه ډېر اوږده دهلېزونـه لـري کـه چېرتـه څوك پکې ډېر ورانـدې ولاړ شـي لاره ورڅخـه ورکـېږي. لـه دې غـارونو څخـه حتمـا پـه هغـه دوره کـې کـار اخيسـتل شـوی، چـې مـوږ يـې د غـارونو دوره بولـو او لکـه څرنـګه، چې پـه تـاريخي دورو کـې هم ورځنـې کـار اخيسـتل شـوی نـو همدا وجـه ده، چـې د تيـرو د دورې د ژوند نـښې نښانې يې پاتې شـوي نـه دي.

فيرمسـرويس امريکـايي د همغـه پـلاوي رئيـس، چـې ورانـدې يـې مـا يادونـه وکـړه پـه همدغـه ۱۹۵۱ ز کـال کـې د پنجوايـي لـه غونـډيو څخـه پـه يـوه غونـډۍ کـې چې ((مراسـي غونـډۍ)) يـې بولـي لنـډې کيندنـې وکـړې او ويـې ويـل، چې پنجوايـي د لرغونتيـا د تثبيت لـه نظره ډېر ارزښت لـري، ځکـه چـې لـه دې غونـډۍ نـه د لومړي ځل لپـاره لـه پخې ختـې د مـور ربـه النـوع (مع بـانو يا الهه مجسمې پـه لاس راغلـې.

لکـه څنـګه، چې ټول پوهېږو، چې دا الـهې د اولـې تيـك پـه ۹ مـه دوره يـا د تيـرې پـه نـوې دوره کـې د ټولـې پخوانـۍ دنيـا د قـبرس او بـهر روم لـه سـواحلو نـه نيولـې تـر هنـد او چيـن پـورې مشـهورې وې او د سـند لـه سـيمې (موهنجوديرو) او (هرپـه) او بـالاخره د کندهـار لـه شـمال غـرب د (منـديګك) لـه غونـډۍ نـه يـې بيلـګې پـه لاس راغلـې. پـه هـر حـال ويلی شـوو چې هغـه خلـك چې لـه مـودو راهيسـې د پنجوايـي د غرونـو پـه غـارونو کـې اوسـېدل بـالاخره لـه غـارونو نـه د غرونـو لمنو تـه راښکتـه شـوي او د ارغنداو کيـن پلـو تـه پـه غـاړو څنډو کـې پـه بـز ګرۍ بوخت شـوي دي او پنجوايـي يـې يـو اسـتوګنځی و او د

بزرگري، کسب او کار به يې هلته کاوه، پنجوايي د هغو اوسېدونکيو له وختـه، چې ۵زره کاله وړاندې پيل کېږي تراوسه پورې يوه حاصل خېزه سيمه ده.

د ((اشوکا)) د ډېرليك کشف په اوسني کندهار کې د چهل زينې په ګاونډ کې، چې له پنجوايي نه ډېره فاصله نه لري، راښيي چې د ذريمې مخزيږدې پېړۍ پرمهال هغه ځاى کې، چې د کندهار د زاړه ښار کنډوالې پرتې دي، اباد و او خلك به پکې اوسېدل او دارغنداوکيڼ پلو غاړو کې له ابادو سيمو څخه يو همدغه ځاى و.

دموريا پاچا يا (اشوکا) په زمانه کې حتما په دغه ځاى کې ابادي وه او له نښو نښانو څخه داسې ښکاري، چې اسکندريه ارا کوزى او يا کېداى شي د يونانيانو يو ستر ښار به همدغلته جوړ شوى وي.

په اسلامي دورو او د دې عصر په ماخذونو کې هغه عربي دي او که فارسي، هر ځاى چې د (رخد) يا (رخج) نوم راغلى دى، نو خامخا هلته پنجوايي هم ياد شوى دى او دا يو بشپړ طبيعي کار دى، ځکه چې پنجوايي د (رخج) له ډېرو مهمو کوچنيو کليو څخه شمېرل کېږي ابوالفدا په خپل تقويم البلدان کې پنجوايي په دوه بڼو (پنجوان) او پنجوايي ياد کړى او هغه د رخج له ښارونو څخه شمېري. په داسې حال کې چې ابن حوقل د رخج سيمه له سجستان (سيستان) سره څېرمه ګڼي او پنجوايي د هغو له ښارونو څخه يو ښار ګڼي. همدارنګه له پنجوايي نه د هغولويو او وړو لارو تاکنه، چې د (بست) او (غزني) پر لور تللې وي، له موږ سره به دنورو ډېرو ابادو سيمو او ځايونو په پېدا کولو کې ډېره مرسته وکړي.

په پاى کې دا يادونه کوو، چې د افغانستان سويلي لاره، چې د ارغنداو له غاړو څنډو څخه د غزني او ملتان پر لار د سند وادۍ پر لور تلله ډېر ارزښت يې درلود، چې متاسفانه تراوسه يې موږ د هغې رښتينې اهميت ته پوره پاملرنه نه ده کړې.

۲/۴/۱۳۳۷

# شمشیر غار

الله کلو راپد ېخوا طبیعي غارونو د پلټنې لپاره د یو شمېر بېلا بېلو پوهانو پام ځانته رااړولی دی، د دې پام اړونې علت ښکاره دی، ځکه چې ټول پوهېږو په غارونو کې طبیعي غارونه په هر ځای او د ټولې ځمکې پر مخ او په ځانګړي توګه د بشري ژوند په لرغونو دورو کې د انسانانو استوګنځایونه او پناه ځایونه شمېرل کېږي د نړۍ په ډېرو ځایونو کې د زړو کیسو له مخې غارونه د خارق الطبیعه مخلوقاتو د اوسېدلو ځایونه وو، په همدې خاطر ډېرو کیسو او اسطورو غارونو ته د تقدس او سپېڅلتیا جنبه ورکړې.

په غرنیو هېوادونو لکه افغانستان کې طبیعي غارونه ډېر دي، چې د هغو د نومونو د فهرست جوړول او د موقعیت ټاکل یوه په زړه پورې موضوع ده، چې په راتلونکو بېلا بېلو شرایطو کې به د مطالعاتو او څېړنو لپاره لارې چارې برابرې کړای شي.

تجربو ښودلې ده، هغه غارونه چې د بشري عمر په یوه دوره کې د انسانانو استوګنځایونه وو د عرف په لحاظ د عوامو په منځ کې د نوم او

نښان لرونکي ګرځېدلي لکه، چې ډېر ښه او څرګند مثال يې همدغه ((شمشېر غار)) دی.
په همدې ډول د (قره کمر) غار د سمنګان په شمال کې د (هيبک) يا (ايبک) يا د چهل تن او چهل ستون غارونه او داسې نور.
شمشېر غار کندهار ته په ۱۵ ميلۍ لويديځ- سويل لويديځ او د پنجوايي د کلي په ۳ ميلۍ کې شمال- شمال ختيځ ته واقع دی او ورته ډېر نږدې کلی ((بادوان)) نومېږي، چې د ارغنداو د رود خاني شرقي غاړې ته پروت دی
شمشېر غار د عمومي جغرافيايي موقعيت له مخې د افغانستان د سويل لويديځ ته ديوې دښتي سيمې په څنډه کې، چې (ريګستان) يې بولي واقع دی.
(دوري) رودخانه، چې تقريبا د ۳۰ ميلو په واټن د پنجوايي جنوب لويديځ پلو ته د ارغنداو رودخاني ته لوېږي. د کندهار د غرنۍ کاريزي ځمکې او دښتې د لمنو ترمنځ بيلونکی حد دی. دا نيمه دښتي او شګلنه دښته په حقيقت کې د هغې پراخې ځمکې يوه برخه ده، چې د (تار) يا سند دښتې د هند او د پاکستان له لوديځ نه پيل شوې او د افغانستان له سويل لوديځو سيمو نه تېرېږي او د ايران کويرلوط هم په برکې نيسي دا دښته په پخوانيو وختونو کې لکه د اوس په څېر وچ بيابان نه و تر يو حده د استوګنې وړ او په ځينو برخو کې يې ابادۍ درلودلې.
شمشېر غار د پنجوايي په شاوخوا غارونو کې تر ټولو ښه ښکاري د ارغنداو له غاړو نه تقريبا ۱۰۰ متره جګوالی لري همدا راز د غره له بېخ نه د غار تر خولې پورې ورختل ۱۳-۳۰ دقيقې وخت نيسي.
اصلا شمشېر غار درې پوښل شوې برخې لري او که چېرته په ځانګړې توګه وشمېرل شي، نو مجموعا پينځه پناه ځايونه پکې څرګندېږي. د لومړي پناه ځای اوږدوالی ۱۶ متره دی او پلنوالی يې په دوه مختلفو برخو کې ۱۱ مترو ته رسېږي او لوړوالی يې د غار د خولې نه پرته، چې ډېر تنګ دی ۲مترو ته رسېږي.
دويم پناه ځای ۱۷ متره اوږدوالی او ۱۳ متره سور لري او لوړوالی يې د ۶ مترو په شاوخوا کې دی، وروسته له دالان څخه د ۱۱ مترو په اوږدوالي دريم پناه ځای راځي، چې دا د دې غار تر ټولو لويې پناه ځای

دی د دې پناه ځای اوږدوالی ۳۵ متره، پلنوالی یې ۲۵ متره او لوړوالی یې ۱۰ مترو ته رسېږي. همدارنګه پېنځم پناه ځای د څلورم له احاطې نه ۴ متره لوړ او خوله یې دومره تنګه ده، چې په مشکله پکې تګ راتګ کېدای شي.

د هغو څېړنو او کیندنو له مخې، چې پر ۱۹۵۱ز کال د نیویارك د طبیعي تاریخ د موزیم د لرغون پېژندونکي هئیت غړي مستر لوی له خوا په شمشېر غار کې ترسره شوې ثابت شو، چې دا غار د (پلیوسن) په دورو کې په ځمکني پوړ کې جوړ شوی دی او تر تاریخ دمخه دورونو کې ترېنه کار نه دی اخیستل شوی، نو کولای شو، هغې ته یو تاریخي غار ووایو، ځکه چې د هغو شواهدو له مخې، چې په لاس راغلي د مسیح د زمانې په پیل او یا ۱۳۰۰ کاله وروسته له مسیح نه تر مغلو پورې او که داسې ووایو، چې تر ۱۲۲۲ م کال پورې پکې د بشر د ژوند نښې نښانې لیدل شوي دي.

په شمشېر غار کې د تاریخي کرونو لوژۍ له نظره د لاندې دورو نښې نښانې لیدل شوي دي:

۱ــ لومړۍ کوشاني دوره: دا دوره سل کاله وړاندې تر میلاده پیل او سل کاله وروسته تر مسیح پورې دوام کوي.

او هغه تیکرونه، چې د ټاپې په واسطه ښکلي کړای شوي د دې دورې څرګندونه کوي.

۲ــ دویمه کوشاني دوره: له مسیح نه وروسته له ۱۰۰ څخه تر ۳۰۰ کلو پورې د تیکر رنګه ټوټې او د تیکر نورې هغه ټوټې، چې سور رنګ ته ورته وې دا دوره راپېژني هغه د اوسپنې درې کنجه جوړې شوې وې چې تېرې څوکې یې درلودلې او زیاتره (سیستي). قومونو پورې اړه لري هم له دې پوړ نه پیدا شوي دي.

۳ــ دریمه کوشاني ساساني دوره: د دې دورې وخت له ۳۰۰ څخه تر ۷۰۰ کلو پوزې دی.

د ساساني دورې له یو څه پرمختګ سره د تیکري مخصوصې ټوټې او د دې دورې د ښارونو مخصوصه انځورګري د ساساني دورې په ټاکنه کې هیڅ شك منځ ته نه راوړي.

۴_ لومړۍ اسلامي دوره: لـه ۷۰۰ څخه ۱۲۲۲ میلادي کال پورې: د سلجوقیانو د عصر یو شمېر مخصوص تیکري رابنیي، چې شمشېر غار د مغلو تر دورې پورې د خلکو د اوسېدو ځای و او پـه وروستنیو دورو کـې پـه پرلـه پسې ډول هلته خلك نـه دي اوسېدلي او داسـې نـبنې نښانـې هـم نـه شته، چې د وروستیو وختونو ښکارندویې وکړي. د تیکر لعاب داره رنګه انځورګري شوې پارچې، چې هغه په ځانګړې توګه د اسلامي دور کېدی شي څرګندوي، چې د اسلامي دورې په لومړۍ پېړۍ کې هم شمشېر غار د خلکو د اوسېدو ځای و، په شمشېر ځار کې د یو شمېر شین رنګه تیکرو شته والی، چې هغه د مغلو تر هجوم وړاندې د غلغلي په ښار کې هم لیدل شوي د پورتنۍ نظریې په رښتینولۍ کې مرسته کوي.

له همدې امله شمشېر غار د مسیح له پیل نه تر ۱۲۲۲ کال پورې ۱۴ یا ۱۵ پېړۍ دخلکو د اوسېدلو ځای و او د کندهار د ښار ترخوا د یو تاریخي غار په توګه (د نښو نښانو له مخې) هلته د خلکو ژوند د افغانستان د تاریخ د مختلفو دورو د کوشانیانوله لومړۍ دورې څخه د مغلو تر وروستۍ دورې پورې راپېژني.

۴/۱۱/۱۳۳۷

# اريايي کور

## د ژبې د ورته والي له نظره

يو له هغو مهمو موندنو څخه چې د ۱۸ مې پېړۍ په دويمه نيمايي کې وشوې د ګډ کور کشف دی، چې يو شمېر اريايي قبايل په تېره هغه، چې په لرغونو دوروکې په هند ، ايران او نورو ګاونډيو هېوادونو کې تيت شوي دي. لکه د ورونو په څېر خوا په خوا او د يوې کورنۍ د غړو په شان يو ځای اوسېدل.

۱۷۶۱ کال ته د دې مفکورې د پېدا کېدو او د دوی د يو مرکز موندنې نسبت ځکه کولی شو،چې پردغه کال يو تن فرانسوي مبلغ، چې (انکيتيل ډوپرون) نومېد له فرانسې نه هند ته راغلی او هلته يې وروسته له ډېرو پلټنو او څېړنو او له پارسي پوهانو سره تر تماس نيولو وروسته د اوېستا متن مطالعه کړ او ۱۷۷۱ کال کې د لومړي ځل لپاره د هغې ژباړه د اروپا علمي ټولنې ته وړاندې کړه، په نتيجه کې دې علمي ټولنو وکتل، چې د دې کتاب د ژبې يعنې (زند) او په هند کې د پخوانې سنسکرېټ د ژبې ترمنځ ورته والی موجود دی. همدغه کال ته نژدې په ۱۷۶۷ کال هم يو تن فرانسوي پوه، چې د (کورډو) په نوم شهرت لري يو مکتوب يې د فرانسې د ادبياتو او ادبي اثارو د ساتنې اکاډيمۍ ته وليکه او د لومړي

ځل لپاره يې د سنسکريټ، يوناني او لاتيني کلماتو ترمنځ د ورته والي موضوع ښکاره کړه.

د اوېستا د ژبارنې او څرنګوالي او له سنسکريټ سره يې د ژبې د ورته والي يو پلو ته او د اروپايي پخوانيو ژبو له يوناني، لاتيني او بيا يې له هندي سنسکريټ ژبې سره ورته والی له بله پلوه د اروپا په علمي ټولنو کې عجيبه غږ پورته کړ، چې په پای کې يې يوه بې ساري او حېرانونکې موضوع منځ ته راوړه او هغه اروپايي پوهان، چې د اسيا په برخه کې څېړنې کوي نوموړې موضوع ته لا ډېر متوجه شول.

په دې وختونو کې د سروليم جونز انګرېز له خوا (د بنګال اسيايي شاهي انجمن) يوه ټولنه په کلکته کې تاسيس شوې وه، چې د تاريخي څېړنو په لړ کې يې افغانستان ته هم ډېر خدمتونه کړي دي، پر ۱۷۸۶ کال د نوموړي انجمن مؤسس، چې ډېر کلونه يې د رياست دنده پر غاړه درلوده د يوې وينا په ترڅ کې څرګنده کړه، چې د سنسکريټ، يوناني ژبو، لاتيني او حتی جرمني او سلتي ژبو ترمنځ ډېر نږدېوالی او ورته والی موجود دی. څو کاله نور هم د دې ختيزو او لوديديزو ژبو د نږدې والي په هکله کانفرانسونه ورکړای شول او بيانيې واورول شوې. ترڅو چې د ۱۹ مې پېړۍ په پيل کې په علمي دلايلو (فيلولوژي) ثابت شو، چې دا نږدېوالی او ورته والی خامخا شته او کومه نتيجه، چې ترې تر لاسه شوه دا وه، چې د سنسکريټ، زند، يوناني، لاتيني، جرمني او سلتي ژبو ويونکي يو د بل خپلوان دي او لکه د يو کور د غړو په شان، چې يو ځای اوسېږي دغه ژبې به هم يو ځای اوسېدلې وي.

تر دې وروسته پوهان د هند، جرمن يا اريايي قومونو د ګډ کور د پېدا کولو په لټه کې شول، چې بيا يې پدې برخه کې بېلا بېلې نظريې ورکړې چې دلته د هغو نظريو له سپړنې نه تېرېږو.

په دې کې شک نه شته، چې د دې اريايي ګډ کور په باب د لويو قومونو په مفهوم د (هند او جرمن) په اړه بېلا بېلې نظريې موجودې دي او په لومړي قدم کې دا دواړه يو له بل نه لرې پرتې سيمې له مرکزي اسيا او د قطب شمال له نږدې سيمو څخه نيولې د خزر تر غاړو، د قفقاز غرونو او د دانيوب او بالکان تر څنډو او نورو ځايونو کې پرتې وې، چې هره يوه نظريه په دلايلو ولاړه ده. که چېرته د دې ګډ کور ساحه لږه راکوچنۍ کړو يعنې د

هغو خلکو د کور په پلټنه کې شو، چې په پخوانيو لومړيو متونو کې يې ځان د (آريا) او (ايريا) په نوم ياد کړ او يا په بل عبارت د هغو اريايي قبايلو د ګډ کور پلټنه وکړو، چې په افغانستان، هند او ايران کې تيت شوي په هغه صورت کې به د مسئلې حل ته متفق او ډېر ورلنډ شو، ځکه چې دغه ډله اريايي قبايل له ژبې ورته والي پرته ډېرې کيسې، اسطورې، حماسي ادبيات او نور ډېر مشترك څيزونه لري او سربېره پردې (ويدي) او (اويستايي) ادبيات داسې پارچې لري، چې تر ډېره ځايه د هغو ګډه مبداء سره نږدې کوي، په دې کې هېڅ شك نه شته، چې د افغانستان خاوره د دوه هېوادونو هند او ايران په منځ کې واقع ده او په دې کې هم شك نه شته، چې همدا اوس کم ترکم په شلو اريايي ژبو د همدغې خاورې د غرونو په بېلو بيلو ځانګو کې خبرې کېږي، چې يو شمېر يې سنسکرېټ اويستايي ژبو پورې اړوندې او نبنلي او حتى داسې لهجې هم شته، چې تقريباً په مساوي ډول له واړو شاخونو سره ژبنى پېوستون لري.

نو لکه څرنګه، چې ((مکس مولر)) فرانسوي خپل نظر څرګند کړ د باختر سيمې د هندوکش شمال پلو ته د آمو د سيند سيمه او که تردې يې په پوره او پراخه مانا ووايو د سر دريا او د آمو د سيند ترمنځ پرته سيمه هغه ځای دی، چې کولای شو دسنسکرېټ او زند د ژبني ورته والي له نظره د هغې ډلې قبايلو شريك کور مبدا يا مرکز وګڼو، چې په افغانستان، هند او ايران کې خواره شوي دي.

۴/۷/۱۳۳۷

# ويدي سندرې او افغانستان

## (د جغرافيايي خاطرو له نظره)

افغانستان يو تاريخي او لرغونى هېواد دى، په تاريخي دورو کې که له ۱۰۰-۲۰۰، ۱۰۰۰-۱۵۰۰ او يا له ۲۰۰۰ نه پورته هم لاړ شو تر کومه ځايه، چې لاسوندونه له موږ سره مرسته کولای شي نو زموږ د خپل هېواد په ځينو برخو کې ځينې نښې نښانې ګورو، چې د بشر په خاطرکې د دغه هېواد لرغونى پس منظر رانښيي،خو متاسفانه يا له نېکه مرغه، چې تاريخ په يو ځای کې ودرېږي نو هغه د رسم الخط د ځرګندېدو وخت دى او وړاندې تر هغې، چې خط او کتابت موجود نه و هغې ته له تاريخ نه وړاندې يا قبل التاريخ زمانه وايي.

زموږ په هېواد کې تراوسه د تاريخي او تاريخ نه دمخه دورې حدود ځرګند او روښانه نه دي، موږ يوه بله دوره هم لرو، چې په هغې کې لا خط اختراع شوى نه دى، خو د خلکو حافظې دومره قوي او پياوړې دي، چې د خلکو د غټو کتابونو مفاهيم او مندرجات لکه د يو معنوي ميراث په توګه د ورسپارلې دندې په ډول له يو نسل نه بل نسل ته لېږدولې. دا دوره د افغانستان په پخوانيو دورو کې ډېره اوږده، غني او له هنګامو ډکه وه. داستانونه، اسطورې، سندرې، سلالې، رومانونه او وياړلې حماسې په همدې دوره کې منځ ته راغلي، چې پکې يوه دوره وروسته د هغو خاطرو انعکاس ثبت او تر ننه رارسيدلی ددغې ناليکلې او غير کسبي دورې خاطرو ته (نيمه تاريخي دوره) يا (اسطوره يي دوره) او يا هم (حماسي داستاني دوره) وايو.

دا دوره ډېره پياوړې، ژوره او اساسي دوره وه ځکه چې د ادب ستره ساحه او زموږ تاريخ له ټول پراخوالي سره پکې نغښتې دى.

دلته له ډېرو خاطرو سره کار نلرم او غواړم، چې يوازې په ويدې سندرو کې د افغانستان د جغرافيې د ځينو برخو يادونه وکړم.

ويدي سندرې عبارت له يو لړ موزونو غږونو، ځوانو او تازه ترانو او منظومو څخه دي، چې زرګونه کاله وړاندې اريايي قبايلو هغه په خپلو

کورونو کې ویلي او بیا یې له یادولو وروسته سینه پر سینه یو بل ته ترهغه پورې انتقال کړي شو چې قلم ولیکلې، ثبت شوې او د کتاب بڼه یې خپله کړه.

(وید) یا (ویدا) په سنسکریتکې د اریایي مهاجرو د (مقدسې پوهې) او د (عبادت سندرې) مانا درلوده او د وخت له غوښتنو سره سمې پکې د طبیعي منظرو د ښکلا او د اریایي ارباب الانواعو ستاینې شوي دي. دې سندرو ډېره مفصله لړۍ درلوده، چې لومړۍ او پخوانۍ برخه یې له منځه تللې او یوازې د هغه وخت د خاطرو برخه پکې پاتې ده، چې مهاجرې پرګنۍ د هندوکش په شاوخوا کې ځای پر ځای شوي او بیا وروسته د شمېر په ډېرېدو سره د مرکزي افغانستان له غرونو راښکته شوي د وخت په تېرېدو په طبیعي لارو یعنې خوړونو تللي او (سپیته سندهو) یعنې (هفت دریا) یا پنجاب ته یې مخه کړې ده.

((شمالي تربن)) نوم، چې په ویدي سندرو کې یې مومو د (بلهیکا) نوم دی. باید ووایو، چې ټول څېړونکي په ګډه سره دا بلخ او باختر بولي او پر همدې بناء د هندوکش سویل پلو ته د (کوبها) رود ته رسېږو، چې عبارت د کابل له سیند څخه دی د رودونو په سندره کې د ((کوبها))، چې د لویې رودخانې په ستاینه کې (سندهو) یعنې (سند) ویلی شوی او د سرود په پنځم او لسم جز کې داسې راغلي: " ای سندهو تو! لومړی خپلې څپاندې اوبه د تریشتاما، راسا اوکوبها له سیندونو سره ګډوې او بیا په خپله هماغه تګلاره د ګوماتي (ګومل) او کرومو (کرم) په لور پرانیزې." لکه څنګه چې په دې پارچه کې لیدل کېږي پرته د کابل له رودخانې د اندوس یا سند نور مرستیالان لکه (ګومل) او (کرم) هم یاد شوي دي. په یوه بله سندره کې (ماروټ) ته، چې د باد د رب النوع خطاب ورته شوی وایي:

" ای ماروته له اسمانونو او د هوا له منځ نه نژدې راشه ډېر ژر مه ځه، مه پرېږده، چې د (راسا) (کرومو) او کوبها د اوبو جریان ودرېږي او مه پرېږده (سندهو) سند جریان تم شي راشه، چې له تانه ګټه پورته کړو" په سندره کې وروسته له بلخ او د کابل سیند نه لږ څه د سویل پلو ته د (کرم) یا (کرومو) سیند لیدل کېږي. د (کرومو) سیند د (کرم) له سیند څخه عبارت دی، د کرم دره د کابل د درې په څېر یوه طبیعي لاره ده، چې د سویلي افغانستان له غرونو څخه د جنوب په لور خلاصه شوې او دا سیند د سند دسیمې ښۍ خوا ته غاړې خړوبوي او لکه، چې مو د سیندونو په

سندره کې ولیدل د کورمو د سیند نوم له کابل سره یو ځای یادشوی. د کرم په دره کې نن سبا توري، وزیر، مسعود، درویش خېل، احمد زي او اتمان زي قومونه اوسېږي. د دې سیمې اوبه د سپین غره له سویلي خوا څخه سرچینه نیسي، دا دره یوه له هغو درو څخه ده، چې ښه آب و هوا، ښکلا او ډېرې میوې لري.

همدارنګه په ویدي سندرو کې د (ګوماتي) یعنې د (ګومل) د سیند یادونه هم شوې (ګوماتي) او (کرومو) یعنې ګومل او کرم همېشه یو ځای یاد شوي او د افغانستان د نقشې له مخې چندان فاصله هم نه لري، اریایي مهاجر وړاندې تر دې، چې د (سندهو) له سیند نه ورتېر او پنجاب ته ورننوځي ډېره موده یې د (کابل) (کرم) او (ګومل) د سیندونو ترڅنګ سیمو کې تېره کړې او هلته یې ډېرې سندرې ویلې دي. همدارنګه د افغانستان په ختیزو سیمو کې هم ځینې سیمې شته، چې په سندرو کې یې یادونه شوې ده لکه : (راسا) چې معمولاً هغه د کونړ سیند تعبیروي او په ویدي سندرو کې یې څو ځله یادونه شوې ده. دا سیند د رودونو په سندره کې د کابل د سیند په مرستیالانو کې یاد شوی دی لکه څنګه چې یې موقعیت د سوات او کابل سیندونو ترمنځ ښودل شوی، نو ځکه نښې نښانې راښیي، چې دا (راسا) د کونړ سیند دی، چې د کابل د سیند له سترو مرستیالانو څخه ګڼل کېږي.

همدارنګه په ویدي سندرو کې د څو نورو سیندونو یادونه هم شوې لکه (سوتي) (تریشتاما) او (اتي تابها) چې یو یې د سوات د سیند یادونه ده او دوه نور یې د کابل د سیند کوچنې مرستیالان شمېري. همداراز یو بل رود د (سراسواتي) په نوم راغلی، چې یو شمېر یې (اراویتي) یا ارغنداو سیند بولي، پرته له دې په ویدي سندرو کې د یوې بلې سیمې یادونه هم شوې، چې هغه (ګندهارا) ده، چې ټوله ختیزه سیمه د کابل له درې څخه تر پېښور پورې ده او (ننګرهار) د دې علاقې د زړه حیثیت لاره، چې د افغانستان ختیځ ولایت یې احتوا کړی دی. په همدې ترتیب ښکاره څرګندېږي. چې ویدي سندرو له بېلا بېلو سیمو نه په ځانګړې توګه د افغانستان د ختیزو او سویلي سیندونو یادونه کړې ده او داسې ښکاري، چې د دې سندرو ویونکي په ډېر ښه ډول د خپل جغرافیایي موقعیت څخه خبر وو او ډېر معلومات یې لرل.

۲۷/۴/۱۳۳۷

# آریـان اویجه

یـو لـه ډېرو مـهمو مسـایلو څخـه چې ټولـه اریـایي ټولنـه، هنـدي او ایرانـي ټولنـه او پـه عمومـي ډول هنـدي او اروپـایي ټولنـه ډېره ځانـګړې دلچسـپي ورسـره لـري اریـایي پـالنځی (روزنتـون) یـا زانـګو ده. آریـایي زانـګو یـا استوګن ځای هغـه موضـوع ده، چې لـه کلونـو کلونـو راهیسـې یـې د ختیـځ او لویدیـځ د ډېرو پوهـانوپاملرنـه ځانتـه رااړولـې ده او د هغـې پـه بـاره کـې بـېلا بـېل موضوعـات منـځ تـه راغلي.

تـر هـرڅه لومـړی بـاید دا څرګنـده شـي، چـې اریـایي اسـتوګن ځای یـا زانـګو څه شي دی؟ څکـه چـې هنـد او اروپـایي قومونـو د یـوې سترې بشـري ټولنـې پـه تـوګه د تـاریخ پـه اوږدو کـې تـر پـېدا ېښت او پراختیـا وروسـته مختلـف مرکزونـه درلـودل، چـې لـرېتر لـرې یـې یـو د (لومړنـی زانـګو) او پـاتې نـور یې د سترو ځانـګو پـه تـوګه ګڼلای شـو.

د هنـد او اروپـایي قومونـو د لومـړي زانـګو یـا ټاټوبـي پـه اړه د ختیـځ او لویدیـځ د یـو شـمېر پوهـانو ترمنـځ د نظـر اختلافـات او د یـو شـمېر نـورو ترمنـځ د نظـر یووالـی شـته دی، دا زانـګو لـه مرکـزي آسـیا نـه نیولـې د خـزر تـر جنـوب، بالقـان او د دانیـوب ترسیمې پـورې مختلـف ځایونـه ټاکلي، چـې دلتـه یـې یادونـه لـه دې مقـالې نـه دبـاندې ده.

د استوګن ځایونو لـه سترو ځانګو نـه یوه همـدا د اریـایي ټولنـې ځانـګه ده چې د هند و ایراني) پـه شـهادت یـې نومـوړی د (آریـنا) یـا (ایریـا) پـه نـوم یـادول او ډېر پـه افغانسـتان، هنـد او ایـران کـې تیتـې شـوي دي، چـې پـه اویسـتا کـې دغـه د اریـایي قومونـو استوګن ځای (آریاناویجـه) یـاد شـوی دی. پـه بـل عبـارت پـه (وندیـداد) کـې د اوسـتا لـه ډلـې نـه اویسـتایي لومـړۍ قطعـه ځمکـه د اریـایي میمـون لـه ۱۶ قطعـو ځمکـو نـه یـوه همـدا ده، چـې (آریانـا ویجه یـا آریا نـم ویجـو) ورتـه وایـي. پوهـانو د آریانـا ویجـه د قلمـرو د ټاکنـې پـه بـاب ډېرې څېړنـې وکـړې او بـېلا بـېل نظریـات یـې وړانـدې کـړل، خـو پـه غـالب ګومـان، چـې د دې ځمکـې د سـهي موقعیـت د ټاکنـې وسیله پخپلـه اویسـتا ده،ځکـه چـې د شـپاړس ګونـو خـاورو د ترتیـب او هغـو اشـارو لـه مخـې، چـې د اویسـتا پـه بندونـو کـې ورتـه شـوي، داسـې څرګنـدېږي، چـې (آریاناویجـه) هغـه قطعـه ځمکـه وه، چـې نسـبتاً لـوړه او لـه ځینـو رودخـانو سره نښتـې، چـې نـوم او نـښان یـې د یـو شـمېر ځانګړنـو سـره موجـود دی، نـو د دې مطـالبو پـه پـام کـې نیولـو سـره کولـی شـو، چـې دا قطعـه ځمکـه د اکسـوس (آمـو دریـا) درو د سرچینې تـه نژدې او یـا داسـې ووایـو، چـې د اکسوس، ایکزارت یـا امـو سیند او سردریا ترمنځ د فرغـاني پـه سیمه کـې تثبیت کـړو.

د اویسـتا پـه یـو جز (وندیـداد) کـې د (آریانـاویجو) موقعیـت د (وانوهـي دیتیـا) او بـل (وانګکوهـي) چـې دا د ژبـو پـېژندونکیـو او پخوانـي جغرافیـه پـېژندونکیـو د څېړنـې لـه مخـې د ((یتیـا)) پـه اصـل کـې د سـیند نـوم و او همدارنـګه یـې (وانګوهـي) قـانون او (داد) ترجمـه کـړی، هغـه نـوم چـې د دې دواړو کلمو لـه ترکیـب نـه جـوړ شـوی داسـې مانـا ورکـوي. د (دیتیـا) سـیند چـې لـه هغـې خـوا نـه قـانون، عـدل او انصـاف منـځ تـه راغلـی، چـې دا قـانون د زر تشـتري دیـن او د عـدل و انصـاف یـې د واکمنـو واکمنـ ي تعبیـر کـړې ده، چـې دا دواړه تعبیـره ډېر پـه ځای او حقیقـت تـه نـژدې دي، لکـه څرنـګه چـې د زرتشـتري دیـن، عـدل او انصـاف د آمـو سیند تـه نژدې پـه بلـخ کـې د واکمنـو لـه خـوا منـځ تـه راغلـی پـه همـدې وجـه څرګنـدېږي، چـې (آریاناویجـه) د آمـو د سیند غـاړو څنډو تـه ډېر واټن نـه لـري.

یـو تـن بنداهـش د یـو لـړ غرونـو لکـه د کـودو راس غـر او یـو شـمېر سـیندونه چې لـه آریاناویجـه څخـه تېریـدل لکـه (دایـي تیـك) او (دراګا) نومونـه اخیسـتل. همـداراز بنداهـش د (دایـي تیـك) د سـیند پـه بـاب وایـي، چـې دا

سیند له (ایران وج) نه راغلی او د غرنیو سیمو له منځ نه تېرېږي. وړاندې وایي، چې د (درگاه) رودخانه په آریانا ویجو کې ده او د هغې پر غاړو د زرتشت پلار پورو شپه استوگنه کوله.

د دې ځرگندونو په اساس، چې د (دندیداد) او (بنداهش) له خوا شوي ښکاره ځرگندېږي، چې د امو سیند د رودخاني سیمه د (آریانا ویجه) د خاورې په ټاکلو کې مهمه ونډه لري. که چېرته د دې دوه سیندونه په پام کې نیولو سره یوه ژوره کتنه وشي د (دیتیا) او (دراگاه) چې عبارت د (آمو له سیند) او (سردریا) څخه دي، نو په دې اساس کولی شو، چې د دوو یادو شو رودخانو ترمنځ اریایي لومړی قطعه ځمکه او د هغوی استوگن ځای (اریانا ویجه) په فرغانه کې وټاکو.

په دې کې شك نه شته، چې که چېرته یوازې په (دیتیا) یعنې آمو سیند باندې تکیه وشي د یادې شوې خاورې مرکز به لاډېر د دې رودخانې سیمې ته او حتی د کینې پلو غاړو ته د بکتریان په خاورو کې قرار ومومي، خو لکه څنگه چې دوه سیندونو د آریانا ویجه له خاورې سره نژدېوالی درلود او وروسته د لومړۍ ټوټې ځمکې څخه په ۱۵ نورو قطعو کې هم د آریایانو د حرکت او مهاجرت په ترتیب سره یادونه شوې ده. لکه (سغده) (مورو) (بخدي) او نور، چې عبارت تري سغدیان د مرو سیمه او بلخ دي، نو د تحلیلي منطق له مخې ویلی شو، چې دا روزنتون یا زانگو او ټاټوبی له همغې (فرغانې) څخه عبارت دی.

د افغانستان په شمال کې د هندي او ایراني اریایي ټولنې استوگن ځای (اریان ویجه) له دې ټوټه ځمکې سره تل په تماس او ورته ډېره مساعده وه. همدارنگه په اریایي منابعو، داستانونو او اسطورو کې یې مهم نقش ښکاره او ځرگند دی.

۱۳۳۸/۲/۱۷

# سوما - یا - هوما

*اریایي خوندور او قوي شربت، چې بوټي یې د افغانستان په غرونو کې ډېر شنه کېږي.*

یوه ډېره په زړه پورې موضوع، چې د اریایانو د ژوندانه په لومړۍ دوره کې د هغوی د ژوند په ګڼو اړخونو لکه ټولنیزې چارې، دود، عادات او حتی مذهبې پورې اړه لري او که ووایو، چې د افغانستان له غرونو سره یې اړیکې هم بې ربطه نه دي. هغه یو ډول خوندور قوي شراب دي، چې د (ویدي) او (اویستایي) عصر اریایانو په یو ډول پېژندل. دې شرابو څو ترکیبونه درلودل، چې تر ټولو مهم ترکیب یې په غره کې یو خودرویه بوټی و، چې عصاره نومېده او دوه نور ترکیبونه یې په ډېره پېمانه شیدې او ګبینه وو. پورته یاد شوی بوټي ته یې اصلا (سوما) ویلې، چې همدا کلمه په اوستا کې د (هوما) په بڼه راغلی، لکه چې موږ د لغت پوهنې د قانون له مخې پوهېږو، چې د (ویدي) ژبې د (س) توری په اوېستا کې په (هـ) اوښتی، نو ویلی شو، چې د (هوما) حرف همغه (سوما) دی او سوما هغه غرنی بوټی دی، چې د لوړو غرونو په لوړو څوکو کې راټوکیږي. په همدې وجه د سوما بوټی د ټوکېدلو د محل په خاطر، چې اوېستا کې یې بادونه شوې د افغانستان لپاره یو خاص ارزښت لري، څکه چې د اوسنـ په ـه د برخه کې، چې (هوم یشت) نومېږي او د (هوما) د شرابو ستاینه پکې شوې.

وړاندې له نورو مطالبو څخه یې داسې څرګندېږي، چې د (سوما) یا (هوما) بوټي د افغانستان په ټولو غرونو کې او په ځانګړي ډول په هغو غرونو کې، چې (د ګوربت له الوتنې څخه هم پورته وي) چې مطلب ورڅخه د هندوکش لوړه څوکه ده، شین کېږي. له دې سره سره د ویدي سندرو له یادونو او په اوېستا کې تر لیکلو وروسته دې نتیجه ته رسېږو. هغه وخت چې اریایان د هندوکش دواړو خواو ته اوسېدل او په هغه دوره کې، چې د افغانستان له لوړو غرونو څخه یې یو پلو او بل پلو ته هجرت کاوه د سوما بوټي یې د افغانستان په منځنیو غرونو کې موندل او د هغې له ځانګړې خاصیت نه یې خبر وو، چې د شیدو او ګبینه تر ګډېدلو وروسته یې ترې شراب جوړول.

هغه پوهان، چې د اریایي ټولنې (هند و اریاني) د ټاټوبي د څرګندولو لپاره یې هلې ځلې کړي د افغانستان په غرونو کې یې د اریایانو د اوسېدلو له دلایلو څخه یو همدغه د سوما یا هوما د ګیاه موجودیت دی. په دې کې شک نه شته لکه څنګه چې د سوما شراب اریایانو کارول او د هغې په خوړلو ورته خوښي حاصلېدله او په عین حال کې د مستۍ او نشې سبب هم ګرځېدل.

اریایي شاعرانو یا (ریشې) په سندرو کې د سوما د بوټي ټولول د ښکلو جینکو په ګوتو د هغه بوټي شکول او په لویو او هوارو کاڼو یې د هغې شیره ایستل ښودلي، د شیرې صافول یې د پسونو له وړیو جوړې ټوټې نه او بیا یې په پخو ختینو لوښو کې تر اچولو وروسته اوبه، شیدې او ګبینه ورسره ګډ کړي، چې دا بیان هغوی په ډېره ښکلا او شاعرانه ژبه کړی دی.

معمولاً به نجونو او ځوانو ښځو شپې د سپوږمۍ په رڼا کې د غرونو په لمنو کې د سندرو په ویلو د سوما بوټي ټولول، د ویدي د دورې شاعرانو به د سوما قوت بخښونکی بوټی له ځوان غوایي (سخوندر) سره ورته باله او بیا د هغې شیره یې له اوبو سره د ګډولو پر مهال د ځوان غوایي په چمن کې د ورګډېدلو سره تشبیه کوله، کله چې به یې سوما له شیدو او ګبینه سره ګډ کړ، نو یو ډول زېړه، شیره یې یا سپوږمۍ ته ورته رنګ به یې پیدا کړ، خو تر خوړلو وروسته به یې چې په بدن کې ورته کومه خوشالي پیدا کړه، نو په شاعرانه تشبیهاتي انداز کې یې هغه اسماني شربت باله او

د هغه شربت لـه څکلو نـه بـه يې د خوږ او ارزښتمند ژوند انتظار کاوه او لـه همدې املـه يې هغـه د (ارتيـا) يـا تـل پـاتې خوشـالۍ پـه نـوم يـاداوه او داسـې تصـور يـې کـاوه، چـې د دې پـه څکلـو بـه د خيـال پـه حـال کـې د ياما يـا (جمشـيد) ترخـوا رسـېږي، جـام وجـم چـې څومـره زمـوږ پـه ادبيـاتو کـې شـهرت لـري هغومره يې تـر تـاريخ دمخه دوره کـې زمـوږ پـه ذهنيـت، زړو اوافکـارو فکـر مندي او زمـوږ پـرچـاپېريـال يـې اغېز درلـود. د همـدې لرغونتيـا لـه مخـې څو زره کاله کېږي، چې (جـام) و (جـم) پـه خپلـو کـې پېوسـت او دواړو نومونـو زمـوږ د زرګونـو کلـو تـاريخ نيولـی او خونـدي کـړی دی.

پـه ځينـو ويـدي سـندرو کـې يـې ((سـوما)) د سپوږمۍ پـه مانـا هـم راوسـتی او داسې فکـر يې کـاوه، چـې سـپوږمۍ اصـلا لـه شـيدو نـه ډك يـو لـوښی دی او پـه همـدې خـاطر ډېـره سـپينه رڼا لـري. اريايـانو تصـور کـاوه، چـې د ځمکـې خلکـو د خـوښۍ د محفـل پـه څېر پـه اسـمانونو کـې هـم د نورانـي زراتـو او سـتورو لـه خـوا محفلونـه جـوړېږي او د هغـوی پـه عقيـده د سـپوږمۍ پـه کـراره، کـراره د وړکتـوب وجـه دا وه، چـې لـه اسـماني لويـې کاسـې نـه د سـوما مشـروب څښـل کېـدل يـا خـوړل کېـدل تـرڅو د کاسـې څنـډه، چـې د سـپوږمۍ نـرۍ دوره وي هـم لـه سـترګو پنـاه کېدلـه او بيـا بـه لمـر د سـاقي نقش غـوره کـړ او بيـا بـه يې لويـه اسماني کاسـه لـه سومانه ډکـه کـړه.

پـه هـر حـال د ويـدي سـندرو پـه مجموعـه کـې د سـوما پـه نـوم سـندره او د اوېسـتا پـه پښـتونوکې د (هومـا) پـه نامـه يـوه پښـتي موجـوده ده او دا د اريايـانو پـه پخوانيـو افکـارو کـې د هغـې ژوره اغېـزه څرګنـدوي، چـې د دواړو دورو او دواړو عصرونـو اريايـانو دا بـوټي او دا خوشـالونکی او خونـدور مشـروب پېژانـده او د دې بـوټي د پېدا کېدلـو منبـع او د شـين کېدلـو ځای د ټولـو د وينـاو لـه مخـې د افغانسـتان غرونـه وو او لکـه څرنګه چـې پـه دې غرنيـو سـيمو کـې شـيدې او ګبينـه ډېر و او دي، نـو څکـه د دې مشـروب جـوړول د افغانسـتان پـه غرونـو کـې د اوسـېدونکيو اريايـانو پـه منـځ کـې ډېر دود و او تـل بـه يـې جـوړاوه.

۴/۲/۱۳۳۸

# د مينې يوه لرغونې تاريخي کيسه

## ((زرياد ريس)) او ((اوداتيس))

د افغانستان ادبيات له لرغونيو زمانو راپد ېخوا دوه لوي او برجسته مخونه لري، يو حماسي او بله د مينې يا عشقي. د افغانستان د ادبياتو تاريخ د (ويدي) له لرغونې زمانې راپد ېخوا، چې اريايانو د دې خاورې په غرونو کې ژوند پيل کړی وروسته تر هغې يې په سلګونو او زرګونو کلونو کې دا اغېزه څرګنده کړې او لکه څه رنګه، چې اولسي ادب پر ليکلي ادب لرغونتيا او لوړوالی درلود، نو ځکه د کلونو په اوږدو کې يو شمېر جنګي، حماسي او عشقي سندرې د عاميانه شعرونو په بڼه او تصنيفونو په څېر لکه د غږ انګازه (انګې) ژبه په ژبه او غوږ په غوږ تر موږ رارسېدلي دي. په هغه مرحله کې، چې اريايانو د افغانستان د غرونو په لمنو کې ژوند کاوه ډېر ښکلا خوښونکي، مينه پال او خيال پروره وو، چې ښکلا کې ژوند بخښونکي او بدرنګي يې لکه د يوې درنې تيږې او يا له يو درونډ ګرز سره، چې د انسان په سر ولګېږي، ورته باله. په اريايي سندرو کې د مينې کيسې ډېرې دي، چې د هغو خاطرو او د تاريخي پېښنو صحنې په څو ښکليو درو لکه د کابل، کرم، ګومل او سوات کې تراوسه پاتې دي، چې په هغو کې يوه د دوه مينو کيسه ده، چې يو يې زرياد ريس او بله واداتيس نومېږي، لومړی يې يو قوي او د ښکلي اندام لرونکی ځوان، دويمه ښکلې او ښايسته پېغله وه، چې د هغو د مينې د کيسو انعکاس د

مقدوني سکندر د تشریفاتو رئیس (فارس مي تن لن) د څلورمې مخزېدې پېړۍ په اوږدو کې زموږ غوږونو ته رارسوي.

باید هېر نه کړو، چې د دې دوه مینو نومونه تر زېږدې څلور پېړۍ وړاندې زموږ د هېواد په ادبي ماخذ کې له منځه نه دي تللي، لکه څرنګه، چې په ویدي سندرو کې (اوداتیس) د یوې معشوقې په توګه د (ګومل) په وادۍ کې یاده شوې او همدارنګه د (زریادریس) نوم د (زریران) په بڼه په اوېستا کې راغلی، د (یاتکارزریران) حماسي منظومه ده، چې د هغې متن د (پهلویك) یا (پهلوی اشکاني) په ادب کې په لاس لرو او د قیقي بلخي د هغوی خاطره په خپلو حماسي شعرونو کې زموږ غوږونو ته رارسوي.

د سکندر د تشریفاتو رئیس (فارس مي تن لن) لیکي، چې د قوي ځوان او ښکلې ښځې (زریادریس) او (روداتیس) چې دا ښځه د ساس د قبیلې د پاچا لور ده، د دوی دواړو د مینې کیسې د خلکو په منځ کې ډېر شهرت لري. د دې داستانونو اصلي بڼه داسې ده چې:

(زریادریس) او (اوداتیس) دواړو یو بل په خوب کې لیدلي و او یو په بل مین شوي وو او د سوزونکې مینې په لرلو یو د بل د پیدا کولو هڅه او لټه یې کوله. ډېره موده وکړېدل یو بل یې ولټول، خو سره ویې نه لیدل تردې پورې، چې (زریادریس) هغه ښکلې ځېره چې په خوب یې لیدلې وه، هېره کړې وه، چې بالاخره د خوشالۍ په یوه غونډه کې په یو ناڅاپي توګه په داسې حال کې، چې ډېرې ښکلې جامې یې اغوستې وې خپل مطلوب ولید.

فارس د تشریفاتو رئیس لیکي، چې د (زریادریس) او (اوداتیس) د مینې کیسه په اسیایي قومونو کې ډېر شهرت لري او د دې دواړو عاشق او معشوق تصویرونه کولی شو د عبادت خانو په تاخچو کې د سلطنتي ماڼۍ په دیوالونو او همدا راز کولی شو په کورونو کې پیدا کړو. (فارس) د تشریفاتو رئیس، چې کله له سکندر مقدوني سره د افغانستان خاورې ته داخل شوی و د هغو کلونو په اوږدو کې چې د مقدوني سوبمن زموږ په خاوره کې په حرکت و دا ښکلی داستان یې اورېدلی و، له دې څخه څرګندېږي، چې د پخوانۍ دورې (ویدي) د مینې د کیسو انعکاس، چې په افغانستان کې د سکندر تر حملې سلګونه کاله دمخه په غرونو کې منځ ته راغلی او کیسې یې د خلکو په ژبو وې.

هغه کسان، چې د لرغونو ادبي او تاريخي دورو له کيسو رزمي او عشقي کيسو سره اشنايي لري، پخپله پوهېږي، چې د يو شمېر داستانونو پيل لکه (خسرو او شيرين) (ويس او رامين) (ليلی و مجنون) او نور څومره د تاريخ ژورو ته رسېږي. زموږ په هېواد افغانستان کې حماسي او عشقي کيسې ډېرې پخوانۍ دورې لري، چې د هغو ډېر شمېر په اوېستايي او ويدي دورونو کې او بيا تر هغې وړاندې هم د لرغونتيا له مخې تر تاريخ دمخه دورو پورې اړه لري. لکه څرنګه، چې حماسي داستانونه دقيقي او فردوسي په څلورمه پېړۍ کې راټول کړي او بيا يې د نظم په بڼه ويلي د اوېستا او همدارنګه په ويدي سندرو کې يې، چې ترې يادونه کړې هغه عشقي کيسې هم ډېره لرغونتيا لري او هغه څه، چې يونانيانو د دريمې او څلورمې مخزيږدي پېړۍ په اوږدو کې اورېدلي دي، کولای شو دا د هغو کيسو انعکاس وګڼو، چې په پخوانيو دورو کې د خلکو په منځ کې معمول او دود وې او دا چې ويل شوي دي، چې (اوداتيس) د (ساس) د پاچا لور ده، له امکان نه لرې نه ده. (کيدای شي)

ساس يا ساك قبيله عبارت له اسکايانو څخه وه، چې له مرکزي اسيا نه افغانستان ته راغلي وو، لکه څرنګه چې تعبير کوو، چې (زريادريس) د بلخ شهزاده دی دا هم له امکان څخه لرې نه ده، چې بلخي شهزاده سره د څوان بلخي او د سکايانو د پاچا لور ډېرې مينې دومره شهرت پيدا کړی وي.

لکه څرنګه، چې د باختريانو جنګونه له تورانيانو سره او اسمايان د هغوی پهلوانان ګڼل شوي په فارسي ادبياتو کې ستره پانګه لري او هېڅ له امکان څخه لرې نه ده، چې د عشق او مينې په نړۍ کې هم يو باختري ځوان له يوې اسکايي شهزادګۍ سره مينه کړې وي او د مينې او عشق داستان يې لکه په کوم ډول، چې وويل شو منځ ته راغلی وي.

۲/۲/۱۳۳۸

# د افغانستان موسيقي

د بشر د لطيفو او ښکليو احساساتو اظهار، چې د ذهن په پرله پسې بدلون سره د متظرفه صنايعو د بېلا بېلو څانګو په بڼه منځ ته راغلي (موسيقي) ده، چې د شعر، انځورګرۍ، مجسمه جوړونې او معمارۍ پرعکس وزن او قافيې قلم او رنګ، خښتو او ډبرې ته اړتيا نه لري او د ژوند د خوشاليو د ننني جذبات دي، چې له انسان پرته په حېوان او الوتونکيو هم اغېزه لري. کولای شو، چې موسيقي تر شعر او موزونه وينا لومړی وګڼو، ځکه امير خسرو بلخي دهلوي موسيقي ناوې او شعر د هغې زيور ګڼي او ښکلې ناوې بيا ګاڼې ته هم اړتيا نه لري.

سره له دې، چې د موسيقۍ غږ له شعر او موزونې خبرې څخه ښکلی او زړه راښکونکی دی، د انساني پوهې او فهم بنسټ، چې په حېواني شعور باندې حکومت کوي د ښې خبرې په جوړولو يعنې شعر له موسيقۍ سره، موسيقي يې له يوې بې مانا نغمې څخه يوې مانا لرونکې نغمې ته بدله کړه. موسيقي د شعر په چوکاټ کې او شعر د موسيقۍ په پرده کې د بشري ذهنيت د مدنيت په بدلون کې هغه پړاو دی، چې په عمومي ډول تاريخ له هغې څخه خاطرې اخلي او په افغانستان کې دا پړاو ډېر ستر او تاريخي پيل لري، چې زموږ د هېواد او ګاونډيو هېوادونو د موسيقۍ بنسټ پرې ولاړ دی.

لکه څرنګه چې افغانستان د ژبو، دينونو او د (هند او اړياني او مرکزي اسيا) ټولنې فرهنګي مرکز بلل کېږي، نو بيا داسې هم ويلی شو، چې (اريايي سندرې) چې د لومړي ځل لپاره د افغانستان د غرونو په لمنو کې راپېدا او بيا يې پراختيا او پرمختيا وموندله، نو بيا ((اريايي

موسیقي)) هم همداسې دروګنه او دا موسیقي د ((باختر موسیقۍ)) په نوم یادولی شو، چې د هغو د پایښت ځای د هندوکش لمنې دي او انعکاس یې په کلاګانو د غرونو په لمنو او د سپین غره په درو کې هم خوندي پاتې دي.

اریاي باختري موسیقي د هندي، ایراني او مرکزي اسیا د موسیقۍ پیل یا بنسټ دی، دې موسیقي خپله لومړۍ او ابتدایي بڼه( عبادتي موسیقۍ) او یا (مذهبي موسیقي) وه او له سندرو سره یې د اریایانو په کورونو کې پرمختیا کړې او بیا له مهاجرو سره، چې هند او ایران ته تللي لېږدېدلې ده. دې موسیقۍ د(ویدي) په وخت کې یوه بڼه درلوده او بیا یې په اوپستایي عصر کې بدلون موندلی او د هغې موسیقۍ لومړۍ رنګ او تاثیر په هند او ایران کې د نویو ښوونځیو لپاره لاره پرانستله. (ویدي) سندرو د یاما پاچا په وخت کې، چې په بلخ کې د اریایي واکمنو لومړي پاچا پېژندل شوی د موسیقۍ په بڼه او (ګاتونه) چې بل شکل یې (کات) او (ګات) دی، چې د موسیقۍ د یوې پردې مانا یې درلوده او دا په باختر کې د زرتشتي پېر په موسیقۍ کې د پراوونو د بدلون څرګندویې کوي.

د ډنمارك د بشر پېژندنې د هئیت څېړنو ثابته کړې ده، چې تراوسه هم په نورستانیانو کې چې د هندوکش د اریایانو وارثین دي یو ډول (ګیتار) له یو ځانګړي غږ سره شته، چې لرغونتوب یې له څلورو زرو کالو څخه اوړي او یو چینایي داستان هم د دې څرګندوی دی، چې یو نیم زر کاله وړاندې تر میلاد یوه مخصوصه شپېلۍ (توله) د باختر له خاورې چین ته راوړل شوه دا نظریات څرګندوي، چې باختر د یو مرکزیت په حیث د موسیقۍ د یو مهم ښوونځي په حیث د اسیا په زړه کې ځای لري او د دې ښوونځي تاثیر که هغه په هند او ایران کې وي او که په چین یا مرکزي اسیا کې ثابت او څرګند حقیقت دی.

د باختر مذهبي یا عبادتي موسیقي په هند کې همغه شان مذهبي پاتې شوه، مګر په ایران، مصر، هخامنشي او ساساني کې موسیقۍ ځانته درباري بڼه خپله کړه او په افغانستان کې اریایي مذهبي موسیقي (حماسي موسیقي) سره په فرعي ډول د سکندر مقدوني تر راتللو پورې پاتې وه.

په افغانستان کې د یونانیانو تر یرغل او هلته تر استقرار وروسته پوره دوه پېړۍ یې زموږ موسیقي ته (د ډراماتیکي موسیقۍ) بڼه ورکړه او له

نڅا سره د ګډې موسيقۍ بنسټ يې کېښود ، چې هغې ته (کونسرت بالت) وايي لکه چې د هغې موسيقۍ ځينې برخې د کوشانيانو د وخت مجسمه جوړونکيو هم ساتلې وې.

د بودايي دين له خپرېدو او د کوشاني څواکمنې امپراتورۍ تر رامنځ ته کېدو وروسته په ځانګړې توګه په دريو لومړيو پېړيو کې، چې د کوشانيانو د فتوحاتو لمن تر هند او مرکزي اسيا پورې وغځېدله، نو موسيقۍ درې ځانګړې خواوې پېدا کړې:

*الف : درباري موسيقي.*

*ب : مذهبي موسيقي.*

*ج : ولسي موسيقي.*

په دې درې واړو مذهبي او نورو بودايي موسيقيو، چې ارام او نرم روح يې درلود د بودايي دين له خپرېدو سره يې عموميت پېدا کړ او په ډله ايزه بڼه ساز او اواز ډېر شو او خلک يې د يوې داسې ګوښه ګيرۍ خوا ته رابښکل، چې د کنيشکا امپراتوري ووېرېده، چې مبادا دا خلک ټول تارک دنيا نه شي، چې بالاخره به له کور او ژوند نه لاس ومينځي، په نتيجه کې د پټو عکس العملونو او د شهزاد ګانو له خوا د ساساني ايران موسيقۍ ته نږدې ورته، چې درباري بڼه يې درلوده.همدارنګه هنري ارامه مذهبي موسيقي، د افغانستان درباري موسيقي او ولسي موسيقي يې هيجاني بڼه ځانته غوره کړه او د (بالقونو د کنسرت) ډېرې ډلې جوړې شوې.

د اسلامي دورې په پيل کې درباري موسيقي تقريبا له منځه تللې ده، خو کليوالـه يعنـي (فولـک سـانګ) موسيقي پـه يـو هيجاني روح ژوندۍ او باقي پاتې شوه.

همغه شان، چې اسلامي نويو ادبياتو په لومړيو درې څلورو هجري پېړيو کې ورو، ورو نوې او تازه بڼه پېدا کړه، موسيقۍ هم ورسره په خپله ولسي بڼه ژوندۍ شوه او بيا يې ورو، ورو دربارونو ته لاره وموندله.

د غزنويانو له پرتم نه په ډکه دوره ۵-۶ هجري پېړۍ کې چې له ۱۱-۱۲ مسيحي پېړۍ سره برابره ده بيا د (رزم) او (بزم) د روح له ژوندي کېدو سره حماسي او بزمي موسيقي د عاميانه يا کليوالې موسيقۍ تر څنګ راژوندۍ شوه مطرب غږونکي رامشګر او نڅاکوونکي د چنګ او بانګ غږ له ډول او سلطاني سرني سره پورته کړ او د نڅا له خوږلنۍ نه ډک غږ د

شاهي ودانۍ له کړکيو څخه په لوړ اواز ووت، چې انعکاس يې د شاعرانو له ذهنونو وتلو خبرو او د هغه وخت د ليکوالانو له اثارو څخه زموږ غوږونو ته رارسېږي.

د غزنويانو فتوحاتو که هغه په هند او ماوراالنهر کې وو او که په ايران کې، يو ځل بيا د افغانستان د موسيقۍ غږونه مخصوصا د هغې درباري موسيقي يې له هندي، ايراني او د مرکزي اسيا له موسيقيو سره هم غږې کړه او په هند کې د غوريانو فتوحاتو او د اسلامي جذباتو پېدا کېدنې په هندوستان کې د قوالي موسيقۍ بنسټ کېښود. په هېواد کې د مغلو فتوحاتو موسيقۍ ته نوې ښکلا او ځلا ورکړه او دې موسيقۍ له خپلې افاقي جنبې د موسيقۍ له نوو او مروجه الاتو سره د چين په لور نوې خپرونې وکړې او د هرات د تيموريانو په دوره کې د موسيقۍ متقابل نفوذ او اغېزې د افغانستان د بابر د لمسيانو په زمانه کې، چې د مغلو د سلطنتي پلازمينه او مرکز له افغانستانه د هندوستان زړه ته ولېږدول شونو يو شمېر اهنگونه زموږ له سيمې هند ته لاړل او همدارنگه يو شمېر هندي اهنگونه له هند نه افغانستان ته راغلل، مگر زموږ کليوالې موسيقي د يو شمېر ولسي اساساتو له مخې ځاى په ځاى پاتې او دوام يې وکړ. په هند کې موسيقۍ د مذهبي اړخونو له توپير نه پرته د مجلسي او قوالي جنبو په پياوړتيا سره دوام وکړ او هلته يې د مذهبي ايجاباتو او غوښتنو له مخې ډېره وده وکړه، مگر په افغانستان کې يې له کلويو او د غرونو په لمنو کې له اوسېدونکيو پرته اورېدونکي پېدا نه کړل.

افغاني موسيقي چې د تاريخ له پيل نه يې روزنه موندلې او د غرنيو خلکو په ازاد چاپېريال کې يې د وخت په تېرېدو سره عبادتي، رزمي، درومدي يوه برخه او درباري بڼه خپله کړې، چې د پنځه زره کلن تاريخ په اوږدو کې ليدل شوې له مقابلو تاثيراتو سره، چې د گاونډيو هېوادونو لخوا منځ ته راغلي په خپله اولسي افغانستاني بڼه تراوسه د هېواد په ځينو برخو کې موجوده ده، د هغې له مخې چې هر کله وغواړو د خپلې ملي موسيقۍ بنسټ کېښودلی شو.

۷/۹/۱۳۳۹

# پاراداتا یا پیشدادیان

## ۱ د اجتماعي ژوند د بدلون یوه ستره دوره

د بشري ټولنې د ځینو برخو زړښت او د لرغونتوب نښې د هغوی لرغونی نسل دی، چې د لرغونې زمانې وخت یې تاریخ نه شي مشخص کولی، مګر د هغه وخت تاریخي قبیلې یا کورنۍ او د بېلابېلو تاریخي دورو د پاچاهانو نومونه او کارنامې یې ډېرې مشهورې دي.

سره له دې، چې زموږ هېواد افغانستان د جغرافیایي ساحې له حېثه وړوکی دی، مګر د هغه ژور تړون له مخې، چې له اریایي قبیلې او نژاد سره یې لري د تاریخي عنعنو او اسطورو په لړلو سره د بشري ټولنو په منځ کې یوه ستره ځانګړتیا لري.

اریایي ټولنه لا په هغه وخت کې، چې هندي او ایراني ځانګې ترې نه وې بېلې شوې او ټول په یوه کور کې، چې هغه د هند او ایران ترمنځ د افغانستان په شمال همدارنګه د هندوکش په شمال کې، د امو سیند په شمال کې هغه سیمه، چې د سردریا او امو سیند ترمنځ واقع ده، چې فرغانه په (اریانم ویګو) کې یا (ایریاناویجه) یا (اران وج) چې د ټولو مشترک زېږن ځای دی اوسېدل او له ځان سره خاطرې لري، چې کولی شو د خاطرو په نوم یې یادې کړو.

د هند و اریاني ټولنو د ژوند دوره په یوه دوره، یو وخت او یو زمان کې وه، چې د هغوی د پراوو ټاکل له شکونو څخه خالي نه دي. د افغاني، هندي او ایراني قبیلو ګډو اریایي نیکونو هغه وخت، چې یې لا هجرت ته تن نه ورکاوه او د امو سیند په سیمه او یا یې په شمالي او جنوبي سیمو فرغانه یا باختر کې اوسېدل او د نیمه مالدارۍ او نیمه بزګرۍ په کار بوخت وو، د کورنیو او پاچاهانو په اړه خبرې او بحث کوي، چې د هغوی

خاطرو او د هغوی د کارنامو خاطرو تر ننه پوري زموږ د حماسي ادبیاتو برخه تشکیل کړې ده.

ویدي او اوېستایي سندرې، چې دواړه د دې تولنې د پېدا ېښت په ځای کې چې د افغانستان شمال او سویل دی پیل شوي او کومې خاطرې، چې د دې سیمې په سیندونو، خوړونو او غرونو کې موجودې دي له ځېلمې د دې پاچاهانو نومونه اخلي.

د ډېر تعجب ځای دی، چې دا پاچاهان په متفرق او خواره واره ډول یاد شوي نه دي، بلکې ډله، ډله او کورنۍ، کورنۍ یاد شوي دي. تر ټولو پخوانۍ پاچایي کورنۍ، چې زموږ په اسلامي دورونو کې فارسي ادبیاتو هغوی د پیشدادیانو او حتی د بلخ د پیشدادیانو په نامه یاد کړي هغه د (پاراداتا) کورنۍ ده. که دا کلمه تجزیه کړو په هغې کې دوه برخې پېدا کولی شو یوه (پارا) چې د مخکې په مانا ده او بل (داتا) چې د (داد) د کلمې لومړی شکل دی، نو سمدستي څرګندېږي، چې (پیشدادیان) ترجمه او یا عین همغه پخوانۍ (پاراداتا) د (بلخي) په صفت یاد کړی وي پر غلطه نه دی تللی، ځکه په هغو دورو کې چې اوېستا په خپل ځلنده باب کې (د پاراداتا) یادونه کوي، نو بلخ د (بخدي) په نامه او د لوړو بېرغونو لرونکي ښار په توګه یې ستاینه کوي.

د پاچاهانو کورنۍ یا قبیله (پاراداتا) عبارت و له:

۱ _ هوشیانغا ۲_ تخمه او روپا ۳_ (یما) یا (یاما) ۴_ تریتونا او نور، چې په فارسي ادبیاتو کې هغه په هغو نومونو، چې موږ تري خبر یو په لاندې ډول پېژنو:

۱_ هوشنګ ۲_ طهواث ۳_ جم یا جمشید ۴ _ فریدون او نور.

په دې کې شك نه شته، چې د (پاراداتا) کورنۍ د واکمنۍ دوره د اجتماعي ژوند د بدلون او مراتبو له نقطه نظره، د اریایي ټولنې (هند او اریاني یا باختري) پر هواره ځمکه او ښار اوسېدنې له زمانې سره برابره ده په بل عبارت د غار اوسېدنې دوره او (پاله اولي تیك) او (نه اولي تیك) دورې یعنې د تیږې پخوانۍ دوره تېره شوې او اریایانو د امو سیند سویل پلو ته د باختر په سیمو کې په بزګرۍ، کلیوالي او ښاري ژوند پیل کړی و، مګر تر اوسه یې د بشري ژوند د لومړنیو اختراعاتو لکه اور او داسې نورو خاطرې د هغوی په ذهن کې وې.

انسان که د اوښتا د پښتونو هغې سلسلې ته، چې د (پاراداتا) له پاچاهانو څخه بحث کوي په غور سره وګوري د کلماتو له منځ او طرز تفکر څخه د یوې بشري ټولنې ځانګړنې، د ژوند د اړتیاوو پېدا کول، د ښار نشینۍ، د کښت او کروندګرۍ او د مملکت دارۍ د یوې دورې پیل کتلای شي.

وبه ویني، چې خلك تازه پر ځمکو ځای پرځای شوي د کلاګانو او کلیو په جوړولو بوخت دي، په ځمکو کې شلغم شیندي او ونې کري او د ژوند ټولو ټولنیزو اړتیاوو ته پاملرنه کوي، د ونو د ډولونو همداراز د څارویو او الوتونکیو په ډولونو او ښه کولو یوازې کوښښ نه کوي، بلکې پدې هم بوخت دي، چې خپله وینه، نژاد او تخم صاف، پاك او بې الایشه وساتي.

د (پاراداتا) یا (پیشدادیانو) کورنۍ له څو پاچاهیو څخه جوړه وه، چې ښایي د واکمنۍ ټوله دوره به یې له سلو یا دوه سوو کلو څخه نه اوړي. مګر ټول پوهېږو، چې اسطورې په کومه اندازه لکه چې ما څرګندې کړې، د دې کورنۍ د هر یو پاچا لپاره یې څو سوه کاله او یا یو زر کاله د عمر اوږدوالی او یا د سلطنت د دورې نسبت ورکوي، چې دا پخپله د اریایانو او په ځانګړې توګه د باختري ټولنې د اریایانو په ډېر ښه صورت د ډېرو ښو افسانوي تخیلاتو په حقیقت ولاړ د ټولنیز بدلون پوړونه راښیي، چې کېدای شي څو زره کاله یې په برکې نیولي وي. دا چې د اوښتا د پښتونو څو لنډې پاڼې په حقیقت کې د تاریخ څو زره پاڼې دي، چې په فکر کولو، استدلال او منطق سره کولای شو (چې د دې هرې کلمې او هرې کرښې په شرح کې رسالې او غټ کتابونه یې په شرح او اجتماعي تحول د (هند او اریاني) ټولنې چې یو پلو ته دبحیره خذر سواحل او ایران دی او بل پلو ته زموږ د وطن د غرونو په لمنو کې چې له هغه ځایه د هند خاورې ته تیت شوی ولیکو تدوین او مطالعه یې کړو، نو کولای شو د ټولنیز بدلون د هرې کلمې او کرښې په شرحه کې یې غټ غټ کتابونه ولیکو، همدغه د (هند او اریاني) ټولنې، چې یو پلو ته د بحیره خذر لرې او ایران پروت دی او بل پلو ته یې زموږ د غرونو په لمنو کې چې له هغه ځایه د هند خاورې ته خواره شوي ډېر څه لیکلای تدوین او مطالعه کولای شو.

۱۴/۹/۱۳۳۷

# یاما

## د طالع د لمر زوی

*(د اریایي ژوند د بدلوني د دورې یو ممثل)*

سره له دې، چې افغانستان د لرغونتیا له مخې څو زره کلن تاریخ او تر هغه دمخه دورو د مشخص تاریخ په لرلو سره سره ډېرې نورې اوږدې دورې هم لري، چې پر هغې یې باید هر اړخیزې څېړنې وشي، دا ډېر د خوښۍ ځای دی، چې د دې هېواد ډېرو لریو، پخوانیو او تر تاریخ دمخه دورو مطالعه هم تر ډېره حده په هغو منابعو ولاړه ده، چې ډېر ارزښت لري.

په دې کې شک نه شته، چې هر هېواد ترتاریخ دمخه د داستانونو او اسطورو دورې لري، مګر په جرئت سره ویلی شو، چې د افغانستان، ایران او هند د اسطورو، داستانونو او حماسیو دورې ډېرې پراخې او مستندې دي. د اسلامي دورو ادبیاتو، تاریخ او کیسو د (جم) او (جمشید) د نامه څو څو ځله یادونه کړې. د اریایي دوه لومړیو منابعو یعنې (ویدي) سندرو او اوښتا کتاب هغوی د (یاما) یا (یما) په نوم پېژني او په حقیقت کې د ټولې اسلامي دورې معلومات او منابع له همدغو دوه منابعو څخه سرچینه نیسي. ویدي سندرو هغه د (یاما) په نامه او د اوښتا کتاب هغه د (یما) په نوم یاد کړې. لومړۍ منبع د هغه پلار د ((ویواسوات)) او دویمې منبع د

((ویوانګارا)) په نامه یاد کړې دی او هغه یې د (طالع لمر) ترجمه کړې اوېستا هغه (یما کشابته) او ویدا (یاماراجان) بللی، چې د دواړو مانا (یاما بادشاه) کیږي. یاما په اوېستا او ویدا کې د ځلېدونکي نور شېندونکي، نوراني، نوروركونكي او وړانګې لرونکي په مانا یاد شوی او جمشید د دوه ترکيبي کلمو په صورت کې دا پخوانی مفهوم په اسانۍ سره افاده کوي.

د یاما په باره کې د (ویدا) او (اوېستا) د معلوماتو روح تقریبا یو شان دی که له جزویاتو څخه ورتېر شو داسې څرګندېږي، چې یاما لومړی رئیس، لومړی لارښود او لومړی مشر او د اریایي طبقې، چې دهند او اریانا ټولنې وې لومړی پاچا و او په قوي احتمال د اکسوس سیمې ته د دې ټولنې د قومونو د رسېدلو پر وخت او په هغه سیمه کې یې ځای په ځای کېدلو د هغه او د هغه د نیکونو او لمسیانو خاطرې په ډېره اندازه په (بخدي) یا (بلخ) کې سره غوټه شوي او د یو لړ بلخي پاچایانو سلسلې خارجي بڼه غوره کړې ده. هغه کسان، چې په (ویدي) لو (اوېستايي) متونو کې د تاریخي مدارجو د تثبیت له نظره وارد دي په اسانۍ سره پوهېږي، چې (یما) یا (یاما) د زردشت زمانې او عصر په پرتله ډېره لرغونتیادرلوده. دزردشتي خلکو دخبرولـه مفهوم او خدای تـه یې لـه مناجاتوڅخه پـه ډاګه څرګندېږي، چې د(یاما)دوره دزردشت له دورې ډېره پخوانۍاولرغونې ده.

که د(ويد) او (اوېستا) کلماتو او اصطلاحاتو ته پاملرنه وشي په اسانۍ سره څرګ ېږي، چې (یاما) او دهغه عصر د دوه منابعو له نظره د اریایي یا بشري مدني تاریخ له لومړۍ عقلاني دورې سره سمون خوري. د اوېستا د مندرجاتو له مخې مونږ ټول پوهېږو، چې څنګه (یاما) کرنې ته پاملرنه وکړه او همدارنګه د ونو د ډېرولو، ابیارۍ او د انسانانو د ښه نسل د ډېر والي لپاره مقررات او همدارنګه د مرغانو او حیواناتو د نژاد له پاره پاملرنه او د لومړي ځل لپاره یې د ابادۍ بنسټ کېښود.

دا ډول معلومات دومره عمومي او افاقي اړخ لري، چې په یوناځایي ډول د بشري دورې لومړۍ دورې او داجتماعي ژوند لپاره یې اخیستي ګامونه پکې ترسترګو کېږي او یا لږ تر لږه د اریایي ټولنې د ژوند نظامي خاطرې په فکر کې راځي.

د ((یاما)) د کارونو پیل او دهغه زمانې د کارونو تفصیل په حقیقت کې د اریایي قبایلو د ژوند د لومړۍ دورې تاریخچه ده او منطق هم همداسې حکم کوي، چې باید (ویدي سندرې) او د (اوېستا) مندرجات، چې دواړه د اریایي دورې پخوانۍ اولومړنۍ منابع ګڼل کېږي، د دې ټولنې د ژوند د لومړیو دورو شرح ده. البته دا خبره د افغانستان د لرغوني تاریخ په دورو کې د ډېرې پاملرنې وړ ده، چې (یاما) او د هغه دوره، چې هر څومره عمومي او افاقي اړخ ولري، نو بیا هم زموږ د هېواد په شمال د باختر په سیمه کې د بلخ له ښار سره بې اړیکېو نه ده، هغه صفات، چې نوموړی (یاما) یې لري د بلخ لومړنی پاچا یې شمېرو، ځکه چې هغه له ډېرو قدرمنو پاچاهانوڅخه چې بلخي پیشداديان یې بولي دی او پیش داديان همغه د (پاراداتا) کورنۍ یا قبیله ده، چې لغوي مانا یې کټ مټ (پیش داديان) کېږي.

نو همغه (یاما) یا (یما) چې وروسته د اسلامي دورو په دري ادب کې یې د جمشید په نوم شهرت ترلاسه کړی او د ده مربوطه زمانه یوپلو افاقي او عمومي اړخ لري او له بل پلوه د ځانګړیو خصوصي اړخونو په لرلو سره زموږ خاورې او هېواد سره اړیکې پېدا کوي.

د (یاما) د وخت مطالعې د افغانستان، ایران او اریایي نړۍ د اسطوره یي دورو په تاریخ کې ډېر ارزښت لري، چې که چېرته یې په جزیاتو لیکل وشي، نو ډېر پنډ کتابونه به ترې جوړ شي. په افغانستان، هند او ایران کې د اریایي تاریخ ټینګښت او خپرېدل په همدغه عصر او زمان پورې تړلي دي او ټول هندي،افغاني او ایراني ادبیات، رزمي او حماسي کیسې له همدغه لرغونیو اوسېدونکیو څخه الهام اخلي.

نو ویلی شو، چې د (یاما) د وخت او پخپله د (یاما) یا (جمشید) مطالعه تر تاریخ دمخه خلکو، د ژوندون د اریایي د لومړۍ دورې، د هند و اریانۍ ټولنې د بدلون پړاوونه سره په خپلو کې تړي او روښانوي.

۲۲/۳/۱۳۳۸

# ریښي، اریایي روحاني حکیمان او شاعران

اریایي ټولنې د خپل ټولنیز ژوند له مراتبو نه په یوه مرتبه کې، چې له هغې نه یې په زرګونو خاطرې د سندرو په قالب کې پرېښې د خپل ژوند په یوه حساس پړاو کې ورداخل شوي، چې د هغې مطالعه ټولې (اریایي) ټولنې یا هند او اروپایي ټولنې ته له هر اړخه ډېر ارزښت لري. د اریایي ټولنې لومړی ځای او لومړی روزنتون، چې هر ځای وي هغه به وي، خو کله چې دوی د سندرو لرونکي کېږي، د سندرو په شهادت د هندوکش د غرونو په لمنو کې که هغه شمال پلو ته وي او که سویل پلو ته، ژوند کاوه. د اریایي سندرو مجموعه، چې د پوهانو او څېړونکیو د مطالعې له مخې یې طبقه بندي شوي په جزویاتو او کتابتونو یې وویشله، چې تر ټولو پخوانۍ ته (ریګ وید) وایي. د سندرو همدغه او نورې مجموعې په اتفاقي ډول او یا د کوم فرمایش له مخې منځ ته نه دي راغلي او د هېڅ یوه شاعر شاعرانه انداز پکې مشخص نه دی.

که د مجموعو ځینې برخې د یو ټاکلي شاعر او یا د هغه کورنۍ ته نسبت وکړو، نو کولای شو ووایو، چې که دا سندرې د یو شمېر اروپایي شاعرانو د ذهن پېداوار وي، نو د وخت په تېرېدو سره دومره تکرار شوي، چې د یو ټولنیز تصنیف بڼه یې غوره کړې، چې په عمومي ډول یې شاعران معلوم نه دي او د یوې ټولنې یا یو قوم مال ګڼل کېږي، له دې سره سره د

دې سندرو موجد یا بنستګر، موسس او یا یې ویوونکي هغه شاعران وو، چې په مربوطه زمانه کې یې د (ریښي) په نوم یاد کړي.

په دې کې شک نه شته، چې د (ریښي) د کلمې اسانه ترجمه (شاعر) دی، خو دا شاعران د اوسني شاعر د کلمې په مفهوم یوازې شاعران نه وو، بلکې د زماني په هکله یې پوره پوهنه لرله او کافي اطلاع به یې درلوده، د علم او فضل په دریاب کې ډوب له نبوغ سره یې د روحانیت لاره نیولې و ښه فقیه عالم به و او په ټولنه کې به یې لکه د یو لارښود په څېر د ټولنیز او قومي اصولو په رڼا کې خلکو ته لارښوونه کوله او هر وخت به په کورونو او کلیو کې ګرځېدل، خلکو ته به یې د لارښوونې ترڅنګ نصیحتونه هم کول. همداراز د کورونو له منځ نه نیولې تر کلیو او قبیلو پورې د دې ټولو ټولنیزې لارښوونې په رېښه یا شاعر پورې مربوطې وې.

تر کومه ځایه، چې له ویدي سندرو نه څرګندېږي، د (ریښي) کلمې د مفهوم جامعیت موږ ته اجازه راکوي، چې (ریشي) د (حکیم) او (حکیم فرزانه) ترجمه کړو.

همدارنګه کولای شو، چې دا کلمه (روحاني) او یا (سپېڅلي روحاني) ترجمه کړو او همدغه شان د ټولنیز نقش له نظره په اسانۍ سره کولای شو دا کلمه لارښود او لارښوونکی هم تعبیر کړو. په حقیقت کې همدغه مانا او ټول مفهومونه د (ریښي) په کلمه کې ورګډ دي او دا ریښي هغه خلک وو، چې د یوې کورنۍ له دننیو لانجو او شخړو نه نیولې بیا د کلي د ملک تر ټاکلو، په اریایي جامعه کې د قوم د ملک تر ټاکلو پورې په همدغه پورې اړه درلوده او تر دې لویو ټولنیزو مسایلو کې لکه جنګونه او مهاجرتونو او نورو کې یې وینا او ګډون ډېر اغېزمن و. په همدې خاطر، چې هغوی روحاني، اجتماعي او اداري اړخ درلود، نو ځکه یې په اریایي ټولنه کې نقش ډېر مهم او ارزښتمند و، نو درناوی یې پر ټولو لازم او ضروري ګرځېدلی وو.

لکه څنګه، چې مې پورته ورته اشاره وکړه اریایي شاعران یا (ریښي) که په لومړیو دورو کې د افرادو په ډول وو، نو وروسته د کورنیو په شکل رامنځ ته شول.

لکه څنګه چې د اریایانو اجتماعي وظیفه د کورنیو دننه د معنوي سیراث زده کړه وه، نو اریایي مشرانو هڅه کوله، ترڅو د معنوي میراث د

زده کړي ترخنګ د کورنیو په منځ کې د مادي میراث زده کړه هم نسل په نسل ور زده کړي او دلتبه (ریښي) یا شاعرانو ډېر کوشش کاوه ترڅو د دوی زامن او لمسیان داسې وروزي، چې معنوي میراث په دوی کې خوندي شي.

تر کومه ځایه، چې د اریایي سندرو له مطالعې څخه څرګندېږي (ریښي) یا شاعران ډله، ډله او یا کورنۍ کورنۍ یو ځای ژوند کاوه. همدې ته په کتنه د (ریګویدا) هر جز د ریښي د یوې ډلې اویا یوې کورنۍ پورې مربوط بولي.

له دې سره سره د (ریګویدا) د کتاب لس جزو، په عمومي ډول د یو رنګ خواصو لرونکي نه دي او تر کومه ځایه، چې ادبي او لغوي څېړنه شوې په شپږ جزونو کې، چې له دویم څخه تر اووم پورې د ګډو عواملو په لرلو مشهور دي، همدغه مشترك عوامل، چې په دا شپږ جزونو کې په نظر راځي، مدققین یې دې ته اړ کړي، ترڅو دې شپږ جزونو ته د کورنیو چارو کتاب ووایي. دا اصطلاح د اریایي کورنیو د ټولنیزې روزنې له روح سره برابره ده، ځکه د شاعرانو کورنیو هڅه کوله ترڅو هغه شعرونه او سندرې، چې د کورنۍ پلرونو ویلي دي سینه په سینه خوندي کړي او په دې ترتیب د دې لپاره، چې د سندرو ویونکي بېلا بېل کسان وو، خو په یو کور کې د ګډ ژوند په وجه هغه ګډې ځانګړتیاوې په هغوی کې پاتې دي. په هر حال (ریښي) یا روحاني حکیمان هغه اریایي منش شاعران وو، چې د اریایي فرهنګ له مخې ټولنیزې رهبرۍ او ټولنیز ژوند ته د خلکو تمایل هم د دوی دنده وه. دوی د اریایي قومونو د رئیسانو، سردارانو او ملکانو ترخنګ ډېر ممتاز، محترم موقعیت او مقام درلود، د اریایي ټولنې په منځ کې د دوی په باره کې هغه څه، چې ورته پاملرنه شوې دا معلومات زموږ لاس ته رارسېدلي دي او د پخواني افغانستان د تاریخ یو منځ یې د اریایي سندرو په یو نظر روښانه کړی دی.

۵/۲/۱۳۲۹

# زردښت او د بلخ له اسپه کورنۍ سره د هغه اړیکي

زردښت، زردهشت، زرتښت او زوراستر دا ټول په مختلفو صورتونو کې ثبت په بلخ کې د یو مشهور حکیم، د سیمې د رئیس، مصلح، ټولنیز او مذهبي شخصیت نوم دی، چې د لرغوني زمانې په ختیځ او لویدیځ کې یې شهرت درلود د ده د ستر شخصیت د لرلو په وجه د لرغوني زمانې بېلا بېلو قومونو لکه ایرانیانو، هندیانو، یونانیانو او رومیانو په منځ کې په مختلفو بڼو ځان ښکاره کړی او د هغو لپاره یې ډول ، ډول داستانونه او کیسې منځ ته راوړي، که د اریایي قبایلو په (ویدي) او (اوېستایي) دوروکې د فکري، اجتماعي، ادبي او لساني تاریخ بدلون ته په غور وکتل شي څرګندېږي، چې زردښت هم د ویدي عصر د هغو حکیم مشربو شاعرانو په سلسله کې راځي، چې ریښې به یې بلل او نومونې وروستی ریښې ګڼلی شو، ځکه چې د اوېستا عصر د هغه په کتاب او د هغو په اجتماعي او مذهبي اصطلاحاتو پیل کېږي.

په ویدي عصر کې بلخ، کاپیسا او کندهار یعنې په افغانستان کې د هندوکش شمالي او سویلي ولایتونو لویې ریښې یا شاعران لیدلي دي، که څه هم د دې ریشي یا شاعرانو ظاهراً دنده د شعر ویل او یا سندرې ویل وو، مګر هغوی په عین حال کې حکیمان، عالمان، پوهان، عاقلین، شریف، په نژاد پاك د ټولنې مصلحین او دقوم لارښودونکي وو او بېلا بېلو برخو کې د هغوی کارنامې په ویدي سندرو کې اورو. زردښت د مراتبو له نظره د همدغو ریښې یا د وخت د حکیمانو، عالمانو او عاقلینو وروستی شخص دی، چې د کنشاسب د واکمنۍ په وخت، چې د اسپه

کورنۍ د شاهانو له جملې څخه یو زر (۱۰۰۰) کاله وړاندې تر میلاد په بلخ کې راپیدا شوې دی.

د زردښت د کورنۍ اړیکې او کورنۍ تړون د بلخ له اسپه کورنۍ سره زموږ د هېواد په لرغوني تاریخ کې یوه ډېره په زړه پورې سلسله ده، چې د هغې روښانول د دې تولنیز مشر او مصلح په انتساب کې یو وړوکی شك هم نه پرېږدي.

د زردښت یا زراتشترا نوم له دوه کلمو (زر) او (زرد) نه مرکب ده، چې هغه دواړه تراوسه په دري ژبه کې یو ته (طلایي) او بل ته (زرد) یعنې ژېړ ویل کېږي. په دویمه کلمه کې د (اشتر) یا شتر نوم روښانه دی او په همدې ترتیب د هغه نوم له مخې په اصطلاحي ژبه هغه د (صاحب اشترزرد) یعنې د ژېړ اوښ څښتن او (صاحب اشتر طلایي) یعنې د (طلایي اوښ څښتن) ویلی شو.

د زراتشترا د خسر نوم (فراشترا) و، چې لومړی کلمه (مقدم) او دویمه (اشتر) یعنې اوښ ترجمه کولای شو، چې په اصطلاحي ژبه ورته (صاحب اشتر اهوار) ویلی شو، چې په دې دواړو نومونو کې په ښکاره ډول د (اشتر) یعنې اوښ کلمه په نظر راځي. له زردښت سره په ډېرو تړلو نومونو کې د (اسپ) او (اسپه) کلمې د پام وړ ګرځي، چې لومړی یې په دري کې د اس اوسپې لپاره یو ډول ویل کېږي او دویمه د پښتو په ژبه کې صرف د اسپې لپاره ویلی شو.

نو د زردښت پلار پوروش او مور یې د غدو نومېده دا هغه دي، چې د نسب سلسله یې اسپه کورنۍ پورې تړون لري او اسپه کورنۍ په بلخ کې د ډېرو نجیبو او باشرفو خلکو له ډلې نه شمېرل کېدل، چې د ډېرو رمو او اسونو، اوښانو د ګلو په لرلو یې د باختر په ټولو برخو کې شهرت او قدرت ترلاسه کړی او بالاخره یې د قدرت او اعتبار په وجه د بلخ له پیش دادیانو څخه وروسته او (ګاوي) کورنۍ څخه وزارت او سلطنت ته ورسېدل.

په اوستا کې د اسپه کورنۍ د نوم ډېره یادونه شوې او هغه کسان، چې له دې کورنۍ څخه پاچاهي ته رسېدلي دا دي:

(اروات اسپه( د تندو اسپو څښتن، (وسیست اسپه ) یا (ویشت اسپه) د بیدارو اسپو څښتن، چې دا دواړه په وروستو دورو کې د (لهر اسپ) او دویم یې د (کشتاسب) په نومونو ښه پېژنو.

زردښت په بلخ کې د اسپه کورنۍ د دویم پاچا ویشتاسپه یا کشتاسب په وخت کې د یو مصلح او لوی ټولنیز او مذهبي شخصیت په توګه رامنځ ته شوی دی، خو لکه څرنګه چې د هغه د زیږېدلو نېټه معلومه نه ده، نو د هغه د زماني لپاره یې لوړه نېټه یو زر کاله وړاندې تر میلاده ټاکلې ده، چې موږ هم د پخواني افغانستان د کرونولوژۍ په تاریخ کې دا نېټه منلې ده. وروسته له دې، چې زردښت په خپلو مذهبي اصلاحاتو او اجتماعي رفورم په لړلو سره وکړای شول، چې د بلخ د پاچا کشتاسپه په دربار کې شهرت ترلاسه کړي، چې وروسته له هغې څخه یې د کشتاسب له وزیر (جام اسپه) او د هغه له ورور (فراشترا) سره د خپلوۍ اړیکي ټینګ کړل، هغه په دې ډول، چې پورته وویل شول د (فراشترا) لور یې ځانته واده کړه او خپله یوه لور یې، چې (پوروچیست) نومېده لکه د نکاح په ډول بلخي وزیر جام اسپه ته ورکړه، چې د دې خپلویو په وجه یې د بلخ د اسپه کورنۍ او قبیلې له مشرانو سره ډېر نژدې اړیکي ټینګ کړل.

د دې کتنو له مخې څرګندېږي، چې زردښت بلخ یا د باختر سیمې ته له کومې بلې سیمې څخه نه دی راغلی، بلکې اصلاً د بلخ د نجیبو کورنیو له ډلې څخه دی او نیکونه یې د سیمې د سردارانو او شریفو خلکو له جملې څخه وو، چې د پسونو د رمو او اوښانو او اسونو د ګلو د لرلو په وجه یې ښه پېژندویي او ډېر شهرت شوی و او د بلخ د پاچا ګشتاسپه له وزیر او د هغه له ورور سره د ده د خپلوۍ اړیکي په بلخ کې د ده د کورنۍ د نجابت ښه ثبوت دی.

زردښت په ټولو متونو او (ګاتا) کې، چې هغه په اوستا کې د ده د ویناو تر ټولو پخوانۍ مجموعه ده د (سپنتمان) په صفت یاد شوی دی، چې په هغې کې د پښتو د (سپین) په کلمې باندې یو ناڅاپي سترګې لګېږي او دا ترکیبي صفت یې (سپینه تومنه) یعنې سپین ناد یا (سپین لمنې) ترجمه کړی دی، چې په اصطلاحي صورت یې (پاك نهاد)، (پاك دامن) او یا (پارسا) ترجمه کولای شو او دا صفت د هغه په څلورم نیکه کې د اسم خاص په توګه راغلی، چې پخپله زردښت ته د یو کورني رنګ په نوم ارزښت لري.

۶/۲/۱۳۴۱

# زراتشترا، سپین تمان او بلخ

د اسلامي دورې په ډېرو تاريخي او ادبي متنونو کې ځو ځو ځله د بلخ او زرتښت د نوم يادونه شوې، داسې يو شمېر ختيځ پوهان شته، چې د هغه د زېږېدنې ځای آذربايجان راښيي، مګر يو ډېر شمېر کسان شته، چې وايي نوموړی په بلخ کې زېږېدلی او پخوانې اريايي د باختر د سيمې ديني قوانين، رسم او رواج د ده له خوا منځ ته راغلي.

تر کومه ځايه، چې د زرتښت د نسب او نيکونو په هکله له څېړنو او د اوېستا له شهادتونو څخه څرګندېږي داسې ښکاري، چې د (ګاتا) ويونکي نيکونه نسل په نسل په باختر کې اوسېدل او د زوړ بلخ په ډېرو نجيبو کورنيو کې شمېرل کېږي. همدارنګه د يوې درنې کورنۍ د سوابقو په لرلو او د خپلو نوو افکارو د تبليغ او اصلاحاتو په راوړلو او همدغه شان له باختري وزيرانو سره د خپلوۍ اړيکو دی برقرار ساتلی.

د زردښتي دين د تبليغ او د پاچاهۍ دربار د ټاکنې په ځای کې، چې دغه تبليغ په هغه ځای کې صورت نيولی، هېڅ څوك او هېڅ يوه پخوانۍ او اوسنۍ منبع شك نه لري، ځکه چې ټول په دې متفق دي، چې يو د عبادت کولو دين، چې اصلاً دا قانون د (مزديسنا) په نوم يادېده په بلخ کې د ګشتاسپه په دربار کې د زرتشترا له خوا څرګند شو. له (ګاتانو) نه

 څرګند پړي په هغه سيمه کې، چې خلك يې لکه د کوچيانو په څېر په صحرا کې ګرځېدلي او ژوند ژواك يې هم لکه د کوچيانو وو او اريايي دين هلته رواج او سابقه درلوده او خلکو مختلفو څيزونو ته عقيده درلوده او ډېر معتقد وو، فديې او قرباني ته يې ډېر ارزښت ورکاوه، زرتښت هلته خپل دين ظاهر او څرګند کړ.

مدققينو وروسته تر مطالعو دا وموندله، چې دا سيمه د هندوکش په شمالي سيمو کې د بخدي، باخترش او يا د بکتريان سيمه ده. لکه څرنګه، چې د کشتاسپه په عصر او دربار کې د نوي دين په موضوع خبرې کوو، نو بايد پوه شو، چې د زراشترا معاصر پاچا کشتاسپه څوك و؟ او څېرته يې سلطنت درلود؟.

زراتشترا په اوېستا کې له (ويشتاسپه) سره داسې خبرې کولې، چې فکر کېږي ګواکې له يو ژوندي پاچا سره ګړېږي.

ځينې شرقي او غربي څېړونکي د ګشتاسپه په ټاکنه کې تېروتي دي هغوی ګشتاسپه د داريوش پلار ويشتاسپه بولي.

اوس نو پخپله د داريوش په اعتراف، چې وايي پلار يې اصلا پاچاهي نه ده کړې او اوېستا قطعا د هخامنشي نسل نه پېژني، نو ويلی شو، چې ويشتاسپه د زرتښت معاصر دی او زرتښت د هغې پاچاهۍ ملاتړی دی، چې پايتخت يې بلخ، له باختر نه تر سيستانه يې حکم چلېده او د بلخ د (اسپه) شاهي کورنۍ غړی و، چې اوېستا هغه د (لوی کی ويشتاسپه) په نوم ياد کړی، دقيقي د بلخ پياوړی روندا او ناکام شاعر د ګشتاسپه دربار نه د زرتښت د لارې پېدا کولو په باب داسې وايي:

*چويکچند گاهی بر امد برين ـ درختی پديد امد اندر زمين*

*زايوان کشتاسب تا پيش کاخ ـ درختی کشن بيخ و بسيار شاخ*

*همه برگ او پندو پارش خرد ـ کسی کزچنان برخورد کی مرد*

*يکی باک پيدا شد اندرزمان ـ بدست اندرش مجمرعود و پايان*

*خجسته پی و نام او زردهشت ـ که اهر يمن بدکنش رابکشت*

*به شاه جهان گفت پيغبرم ـ تراسوی يزدان همی رهبرم*

وړاندې مو وويل، چې د (ګاتها) له لارښونو نه څرګندېږي، چې زردښت په سيمه کې نوی دين اعلان کړ، چې هلته خلك زيات شمېر ارباب الانواعو ته عقيده درلوده. دا همغه د ويدي عصر اريايي ارباب الانواع دي، چې په

افغانستان کې د اریایانو په خپرېدلو معمول شوي و او زراتشترا، چې د ویدي دورو وروستی ریښني (شاعر)، حکیم، عاقل او پوه دی، چې په پخوانیو معتقداتو کې یې اصلاحات راوړي په هغو ټولو ارباب الانواعو یې د باطل کېدلو کرښه راښکله او د یو واحد ذات پرستش یې اعلان کړ.

دا سمه خبره ده، چې اریایانو یوه موده په افغانستان او په ځانګړې توګه په باختر کې ټولو نوراني عناصرو ته شخصیت ورکړی او هر یو ته په یو مقام قایل شوي دي او بیا د اوېستایي دورې توحید پرستی ته هم وروسته له هغې د (مهر و اناهیتا) بودایي دین نمانځنه که هغه د هندوکش په سویل کې و او که په شمال کې، معمول شو. مګر د اسلامي وروستیو دورو مورخینو او لیکوالانو پخوانیو سوابق د هغو له ښېلونکیو ځانګړنو سره توپیر ونشو کړای، لکه چې له وشتاسپه نه وړاندې یو شمېر بلخي پاچاهان یې ستوري پرست یاد کړي او یو شمېر نورو لیکوالو د بودایي نسبتا وروستیو دورو بودایي معبد د بلخ له پخوانیو داشونو (اورځایونو) سره نه دی توپیر کړی، همدلته ترښه موضوع ګډه شوې ده.

دقیقي په خپلو شعرونو کې د کشتاسپه د پلار لهراسپ د زړښت او زوی ته یې د تخت او تاج د سپارلو او همدارنګه خپله لهراسپ د بلخ په معبد کې د معتکف کېدلو په اړه پارچې لري او په هغو کې اشاره کوي، چې لهراسپ (لمر) ته په عبادت کولو لکه څنګه، چې د جمشید لاره او دود و مشغول شو، وړاندې تر کشتاسپه، ویشتاسپه او زرتشترا نه په بلخ کې دود و.

د زرتشترا نوم یې په مختلفو اسلوبونو تجزیه او ترجمه کړی دی. معمولاً دا کلمه له دوو توکو (زرته) او (اشترا) څخه مرکبه ګڼي، چې د (ژیړ اوښ لرونکی) او یا د ګړندي اوښ روزونکی یې ترجمه کړی. د زراشترا د خسر نوم (فراشترا) و هغه یې فرا یعنې مقدم او (اشترا) یعنې اوښ (شتر) ترجمه کړی او هغه په اصطلاحي ډول د (ښه لاروي اوښ څښتن) ترجمه کړی د (اسپه) یا (سپنته) یا (سپنتمان) صفت په پښتو کې په عین شکل د (سپین) په مانا پاتې دی او د هغې مانا (سپینه کورنی) او (سپینه تومنه) ده، چې په اصطلاحي ډول کولای شو، هغه د سپېڅلې اروا خاوند ترجمه کړو.

د (پاك) او (خجسته پی) صفتونه، چې مو د دقیقي په شعرونو کې ولیدل، غالبا د همدغې کلمې ترجمه ده.

د زردښت د پلار نوم (پوروش) د نیکه نوم یې (سپیتمان) او د غور نیکه نوم یې (هیچت اسپه) و، چې له هغه نوم څخه یې کورنی نوم اخیستی دی. د هغه د نیکونو په نوم کې د (اسپه) له کلمې څخه څرګندېږي، چې د بلخ له مشهورې اسپه کورنۍ سره اړیکي لري او د بلخ له یوې نجیبې ټولنې سره اړوندېږي د همدغو اړیکو پر اساس وروسته تردې، چې ددین تبلیغ یې وکړ او اصلاحات یې راوړل د اسپه کورنۍ له وارثینو سره یې خپلوي وکړه.

همدارنګه د بلخ د پاچا ګشتاسپه د وزیر (جم اسپه) د ورور (فراشترا) لور یې ځانته واده کړه او خپله ځوانه لور (پورچیست) یې د بلخ د پاچا وزیر (جم اسپه) ته ورکړه دا ټول اړیکي داسې ثابتوي، چې زرتشترا نسل په نسل په بلخ کې اوسېدلی، په همدغه ښار کې پېدا شوی او همدلته یې تبلیغ پیل کړی او بالاخره په همدغه ښار کې د تورانیانو د یوې حملې په ترڅ کې وژل شوی دی.

۱۸/۲/۱۳۳۷

# ګاتا ـ ګاث یاس

یو له هغو لرغونو کتابونو څخه چې د حکیم او پوه (زراتشترا) له خوا په بلخ کې منځ ته راغلی (اوېستا) ده، چې له (وید) نه وروسته یې دویم اریایي کتاب ګڼلی شو، اوېستا پر پېنځو برخو وېشل شوی دی:

۱ـ لینا، ۲ـ ویسپرد، ۳ـ وندیداد، ۴ـ یشت او خورده اوېستا.

د اوستا لومړي اوولس (۱۷) فصلونه (لینا)، چې له (ګاتا) څخه عبارت دی، دا د اوېستا پخوانۍ او اصیله برخه تشکیلوي او هغه د زراتشترا خپلو خبرو عبارت بولي.

په دې کې شک نه شته، چې اوېستا په دغه موجوده بڼه کې تازه او نوی د ساسانیانو پر وخت منځ ته راغلی او لومړی منشور کتاب دی. پوهان په دې عقیده دي، چې اوېستا لومړی لکه د (ویدي) مجموعې په څېر منظوم لیکل شوی او ټول په نظم ویل شوی و. د اوېستا له نورو برخو سره د ګاتا اساسي توپیر دا دی، چې (ګاتا) منظوم دی او د اوېستا نورو برخو خپل شعري رنګ د لاسه ورکړی او د نثر په ډول راپاتې دي. باید په یاد ولرو هغه آثار او کتابونه، چې د اریایانو د ژوند د لومړۍ دورې او تاریخ ته یې نسبت کېږي ټول په منظوم شکل وو، خو د وخت په تېرېدو سره یې وزن او قافیه زیانمنه شوې منظوم کلام د منشور بڼه خپله کړې او خپل ارزښت یې له لاسه ورکړی، لکه چې له اوېستا نه پرته د یو بل کتاب درک هم لرو، چې په مسیحي دریمه پېړۍ او یا ترهغې دمخه یې منظومه بڼه درلوده او وروسته د ساسانیانو پر وخت یې منشوره بڼه خپله کړې دا اثر عبارت دی له (یاتکارزریران) یا (یادګار زریر)، چې په (برشوي) یا پهلوي پارتي اشکاني ژبه منځ ته راغلی و، چې بیا وروسته د ساسیانو په دوره او حتی په شپږمه هجري پېړۍ کې په پهلوي ساساني ژبه منځ ته راغلی، چې بیا تقریباً په عین بڼه بلخي شاعر دقیقي د څلورمې هجري پېړۍ په اوږدو کې په دري ژبه وکیښ، نو ویلی شو، چې د (ګاتا) او د اوستا د نورو برخو توپیر په دې کې دی، چې (ګاتا) منظوم او نوره برخه منشوره ده.

پوهان باوري دي، چې یشت یعنې د اوېستا څلورم جز، چې د دې کتاب یوه بله برخه ده د هغې د اوسنۍ بڼې د شعري ترکیب روح هم احساسولی شي، لکه څرنګه، چې د وخت په تېرېدو سره د دې ډول اثارو ډول، ډول ترجمې، تفسیر او تعبیرونه منځ ته راغلي، لړ لړ د کلماتو په

کمېدو او ډېرېدو سره او د يو شمېر نورو کلماتو د ګډون په وجه يې شعري بنې بدلون موندلی دی.

په هر حال (ګاتا) په اوېستا کې يوازينۍ منظومه مجموعه ده او دا د ګاتا کلمه د لغوي مانا له نظره (سندره) ترجمه شوې ده، د دې کلمې اصلي تلفظ (ګات) دی، چې د دې ترڅنګ (ګاس) شوی او بيا په دري ژبه (ګا) شوی دی، چې د ظرف زمان، ظرف مکان او د موسيقۍ د اهنګ په مانا هم راغلی دی.

د اکثرو پوهانو په عقيده (ګاتا) د اوېستا ډېره پخوانۍ برخه ده او د هغې لرغونتوب، د کلام ترکيب، شکل، ماهيت او د کلماتو قيافه ثابتوي. يو تن له فرانسوي ختيځ پېژندونکی (ډارمستتر) په دې عقيده لري، چې د (ګاتا) اکثره لغات د (زند) په عاميانه ژبه کې له منځه تللي، ځکه چې بايد هېر نه کړو، چې د اوېستا او ورسره د (ګاتا) ژبه د (زند) او يا د(اوېستا ژبه) ګڼي.

د (ډارمستتر) په عقيده د (ګاتا) اکثره لغات د زند په عاميانه ژبه کې له منځه تللي، مګر د اريايي سندرو په مجموعه کې د (ويدي) ژبې ورته کلمات او کورنۍ يې پاتې دي، چې دا نه يوازې د (ګاتا) د لرغونتوب پړاونه او مراتب ثابتوي، بلکې بله مسئله هم تائيدوي، چې د (ويدي) سندرو ويوونکي او هغه کسان، چې په (ګاتا) ژبه يې خبرې کولې، سره خوا پر خوا اوسېدل او حتی په يوه سيمه کې يې ګډ نژادي، فرهنګي او ادبي پيل درلود.

(ګاتا) د تاريخ، ادب، اخلاقي او فلسفي افکارو له نظره يوه حلقه ده، چې د ويدي عصر د ادبي اثارو ډېرې برخې اوېستا ته مربوطوي. داسې څرګندېږي، لکه چې د ژبې او ادب له نظره دواړه ارتباط لري همدغه شان يې د ويوونکيو ترمنځ هم ډېر نژدې اړيکي موجود وو.

(ګاتا) له پنځو منظومو څخه جوړه ده، چې هره يوه يې فصلونه لري، چې هغې ته (ها) وايي او بيا هره (ها) په قطعاتو او مصرو وېشل شوې، چې هرې قطعې ته (وجس تشتي) او هرې يوې مصرعې ته (فسمن) وايي، چې کولای شو (وجس تشتي) د خبرو پارچه ترجمه کړو او قطعه د دې مفهوم د افادې لپاره بهرتينه کلمه ده. همدارنګه (فسمن) د اندازې او مقياس په مانا ده او په ادبي مفهوم يې هم ديوټاکلي مقياس څو کلمې په برکې نيولې او د دې ادبي مفهوم (مصرع) افاده کولای شي.

له دې سره سره (ګاتا) د ۲۳۸ قطعو او ۸۹۴ مصرعو لرونکې ده.

۷/۱۱/۱۳۳۷

# د اوېستا له نظره د افغانستان د خاروې لرغونتوب

د افغانستان خاوره ډېره پخوانۍ او لرغونې ده. د دې خاورې د لرغونتيا د پوړونو د افق په پس منظر کې سوونه پېړۍ او زرګونه کلونه نغښتي دي.

تاريخ حافظه د دې لرغونې خاورې د ډېرو لومړيو دورو پېښندګلوي په ياد نه لري ترکومه ځايه، چې په اسطورو او داستانونو د لرغونو پاچاهانو او نوميالیو پهلوانانو په حماسيو او رزمي کارنامو پورې اړه لري موږ ته يې يو شمېر خاطرې را رسولې دي، چې د هغو مطالعه يو ځانګړې او په زړه پورې بحث دی.

د هغو پخوانيو منابعو په ډله کې، چې د اوسنيو پوهانو لاس ته راغلي او له هغو منابعو څخه يې د افغانستان د ځينو ځايونو د هويت په اړه معلومات ترلاسه کړي، کولی شو ووايو، چې هغه (اريايي سندرې) او يا اريايي رزمي، حماسي او مذهبي لرغونې خاطرې هغه په نظم دي که په نثر. په مجموع کې يې (اريايي خاطرې) ګڼلی شو او بيا دا خاطرې د زمان او مکان د چوکاټ له مخې د (ويدي) او اوېستا يې خاطرو په نوم ويشي. سره له دې، چې دا خاطرې پرله پسې دي، خو کولای شو په دواړو کې داسې مطالب ومومو، چې د ژوند يو مشترك طرز تفکر او د هغوی ادب راښيي. د دواړو ياني ويدي او اوېستايي عصرونو په خاطرو کې د افغانستان د ځينو برخو يادونه شوې، خو بايد وويل شي، چې په لومړۍ ډله کې کمې او دويمه کې ډېرې خاطرې په ځای پاتې دي.

دلته د اوېستا له ديني اړخ نه تېرېږو. بايد ووايو، چې دا د هغو خاطرو مجموعه ده، چې د يوزر کاله دمخه تر ميلاد د اريايي ټولنې د اوسېدلو پرځای او د ژوند په څرنګوالي رڼا اچوي.

د (اوېستا) د دريمې برخې په لومړي باب کې، چې (ونديداد) نومېږي د يو شکله انسان ته ورته شاديانو (ببزوګانو) او له نيکه مرغه دځمکې يادونه شوې ده، چې هره يوه يې د اريايي قبايلو استوګن ځای شوي، چې هغه ټول په مجموع کې پراخه سيمه وه او په اوېستايي عصر کې يې اريايي هېواد تشکيل کړی و.

د اوېستايي خاورې قطعات پر شپاړس قطعو مشتمل و، چې د هندوکش د لوی غره څلور خواو ته پرله پسې پرتې وې، تر کومه ځایه، چې پرې څېړنه شوې هغه سیمې، چې د دې غره له بېلا بېلو ځایونو څخه خروبېدلې هغه د اوېستایي ځمکې مقدسه برخه ده، چې دا دی له هره یوه یې په ځانګړې توګه یادوو:

۱_ *اریانم ویجو* : د دې دوه کلمو تحت الفظي مانا (د آریایانو تخم ځای) دی او په اصطلاحي ډول کولای شو (آریایي تعلیم ځای) ورته ووایو، چې پوهان دا ځای د امو سیند او سردریا پورتنۍ سیمه، چې اوسنۍ فرغانه ده، ټاکي.

۲_ *سغره* : لکه څنګه، چې یې له نوم څخه څرګنده ده دا د سغدیان سیمه ده، چې د امو سیند ښۍ څنډو ته پرته ده.

۳_ *مورو* : دا د مروی له سیمې یا ارغنداو څخه عبارت دی، چې د مرکزي افغانستان له غرونو څخه سرچینه نیسي او د مروی له شاوخوا تېرېږي، چې دا ډېره ښکلې او حاصلخېزه سیمه ده.

۴_ *بخدي* : چې د ښکلې خاورې په نوم یاده شوې ده دا همغه (بخل بامیك) (بلخ الحسنا) (بلخ بامي) او یا (بلخ ګزمن) ده، چې د اوستایي له ډېرو غوره او مهمو قطعاتو څخه وه.

۵_ *نیسایا* : دا د اویستایي سیمې پنځمه قطعه خاوره ده، چې د هغې موقعیت یې د مرغاب او بلخ ترمنځ ټاکلی، سره له دې، چې یو شمېر خلك یې نیسایا، عشق اباد او یو شمېر یې میمنه بولي.

۶_ *هروي وه* : د دې قطعې ځمکې د موقعیت ټاکنې په هکله هېڅوك تردید نه لري، چې دا عبارت د هرې له منطقې څخه ده، چې معمولا یې د هرې رود په نوم یادېږي په وروسته دورو کې د دې سیمې د اوېستايي دورې د نوم په شکل کې تر لږ څه بدلون وروسته د (ارې) یا (هرې) په نوم پاتې دی او دا نوم تراوسه پورې په دې رودخانه کې څرګندېږي.

۷_ *ویکرته* : هغه پوهان او مدققین، چې د لرغونې دورې په جغرافیه پوهېږي دا سیمه د کابل علاقه بولي.

۸_ *اوروایا اوره* : یو شمېر مدققینو د دې سیمې د موقعیت په ټاکنه کې چوپه خوله دي او یو شمېر نورو یې د ((طوس)) یا غزنې سیمه پېشنهاد کړې ده. په ځینو ماخذونو کې ((ارګون)) او د هغې د چاپېریال ځمکې

مجموعه يې (روه) ياده کړې او (روه) يا (اروه) د تلفظ له مخې چندان لرې کلمې نه دي. د هغه ځای د اوسېدونکيو ځانګړنې، غرور او ځان وينې وه.

۹_ *خننتا*: يو شمېر پوهانو دا ځای د (هيرکانيا) يا ګرګان علاقه تعبير کړې ده.

۱۰_ *هري ويتي*: هرې ويتي يا (اراويتي) د ارغنداو د سيند ګوټي نوم و، چې دا د کندهار د ښار له شمال او شمال لويديزې برخې څخه تېرېږي. دا ډېره ښکلې، حاصلخېزه او د اوېستا لسمه قطعه خاوره تشکيلوي.

۱۱_ *ای تومنت*: ا تومنت همغه (ريتومندرس) ده، چې يوناني جغرافيه ليکونکي يې يادونه کړې او د هلمند رودخانه ترې مطلب ده او د دې لويې رودخانې حوزه، چې په اسلامي دورو کې يې (نيمروز) باله يو له متمدنو مرکزونو څخه و.

۱۲_ *رايا ګايا ره ګه*: د راګارا ځينې برخې يې (ری) بولي، چې کنډوالې يې د ايران تر شرقي سيمې پرتې دي او په بدخشان کې هم د (راغ) په نوم يوه علاقه لرو.

۱۳_ *کخره*: ډارمستېټر فرانسوي د دې سيمې موقعيت په خراسان او يا په غزني کې ښيي.

۱۴_ *ورنا يا ورنه*: د دې سيمې څرګند موقعيت معلوم نه دی.

۱۵_ *هپته هندو*: يا اووه سيندونه يعنې اوسنی پنجاب.

۱۶_ *رانګه يا رانګاه*: د اوېستا د شپاړسمې قطعې ځای هم تراوسه معلوم نه دی او ټول پوهان په متفق ډول تراوسه د دې نقطې په ټاکلو بريالي شوي نه دي.

په هر حال لکه څرنګه، چې د پخوانيو او اوسنيو نومونو له يادونې او لنډې شرحې نه معلومېږي، ترکومه ځايه، چې پوهان د اوېستا د شپاړسو سيمو د موقعيت په ټاکلو بريالي شوي، تر ډېره ځايه د دې سيمو چاپېريال. د هندوکش چار چاپېره منطقې او د (اکسوس) امو سيند او (اندوس) يعنې سند د سيمو ترمنځ پرته وه او که چېرته يادې شوې سيمې يو له بل سره خوا په خوا وشمېرو د افغانستان ټوله خاوره پکې راځي، نو ښکاره څرګندېږي، چې د اوېستايي عصر اريايانو مسکن او استوګن ځای، چې د هندوکش څلور خواو ته پراته وو، وګړو يې په خپلو کې په ښه توګه سره پېژندل.

۲۷/۴/۱۳۲۷

# په اوېستا کې د غرونو يادونه

(اوېستا) د اقليم پېژندنې له مخې ډېر ارزښتناك جغرافيايي معلومات لري اوپه يو سطحي نظر څرګندېږي، چې د آريايانو د ويدي عصر په نسبت د اوېستايي عصر د اوبو، خاورې او اقلم پېژندنه څو ځله ډېره او مفصله ده، لکه چې د اوېستا په لومړي برخې يا لومړي فصل کې، چې (ونديداد) نومېږي ټول له جغرافيايي موضوعاتو نه بحث کوي او د اوېستايي ځمکې ۱۶ قطعې ډېرې مشهورې دي. هغه څه، چې د اوېستا د جغرافيې په برخه کې د ډېرې پاملرنې وړ دي، هغه د غرونو نومونه او دهغو مفصله شرح ده.

ټول پوهېږو، چې د ځمکې پېژندنې په بحثونو کې د غرونو پېژندل او د هغو نومونه اخيستل او هغه هم د اوېستايي عصر د خلکو په منځ کې يو ستونزمن کار دی او حتی په اوسنيو نقشو کې ګورو، چې په غرنيو سيمو کې د ځايونو د نومونو يادونه ډېره لږه شوې ده، ځکه چې په داسې ځمکو کې سروې کول سخت کار دی، خو داوېستا د غرونو په اړه مفصل بحث رابنيي، چې له غرنيو سيمو سره اشناوو او تر کومه حده، چې څېړنه شوې، نو هغه غرنۍ سيمه، چې اوستا پېژندله او هغه برخه يې، چې هغې ته پاملرنه شوې د افغانستان اوسنۍ خاوره په برکې نيسي.

اوستا د (يشتونو) په دوه ټاکلو برخو کې له غرونو څخه بحث کوي يو په (زميادېشت) يا (نوولسم يشت) او بل په (هوم يشت) يا (لسم يسناى). له دې سره سره دا دواړه يشته په ځانګړې توګه لومړی (زمياديشت) ټول د غرونو يادونې ته وقف شوی او د هغو غرونو لړۍ، چې هلته يې يادونه شوې ګڼه (شمېره) يې له څلوېښتو غرونوڅخه اوړي.

زمیادیشت په حقیقت کې د غرونو یو لړلیك دی، چې د یو شمېر غرونو په ځانګړې توګه د نومونو یادونه شوې او یو ډېر شمېر نورو ته یې د موجودیت په اړه اشاره شوې، چې شمېر یې دوه زره دوه سوه څلورڅلویښتو (۲۲۴۴) ته رسېږي.

(هویشت) لکه څنګه چې یې له نوم نه څرګندده ده، (یشتي) ده، چې د هوما له بوټي نه بحث کوي هغه داسې یو بوټی و، چې په ځینو غرونو کې به شین کېده، کله چې به یې دهغې له شیرې سره شیدې او ګبینه ورګډ کړل، نو د څکلو یو قوي او خوندور شربت به ترې جوړ شو.

په دې یشت کې د همغو غرونو ډېره یادونه شوې، چې د (هوما) بوټی به هلته شین یا زرغونېده.

په اوېستا کې د غرونو بحث او هغه هم په تفصیل سره کوم اتفاقي شی نه دی، دا بحث لکه څنګه، چې مې ورته اشاره وکړه د دقیقو معلوماتو له مخې یې صورت نیولی، په ځینو مواردو کې موقعیت په ځینو وختونو کې لوړوالی او د سیندونو دوه نورې برخې، چې له هغې نه یې سرچینه نیولې یادونه شوې او له هغې نه داسې اندازه لګېږي، چې د اوېستایي عصر اریایانو د خپل ژوند چاپېریال او ماحول ډېر ښه پېژانده. د (زمیادیشت) په پای کې، چې د ۲۲۴۴ غرونو شمېره راغلې راښیي، چې پرته له هغو ټاکلیو غرونو څخه چې د نومونو یادونه یې شوې ده، نور ټول سره په خپلو کې تړلي او ښچلي پراته دي، چې دا یې په شمېره کې خلاصه کړې او پورتنۍ شمېره یې راښولې ده.

که چېرته نن هم څوك د افغانستان د غرونو د پاسه په الوتکه کې پرواز وکړي، نو په ډېرې اسانۍ سره به په خپلو سترګو دا ۲۲۴۴ غرونه درك کړي.

د دې یادونې اړتیا نه شته، چې له هر ډول هڅو سره بیا هم پوهان د اوېستا د ټولو غرونو د موقعیت په ټاکنه کې بریالي نه شول او حتی د یو شمېر غرونو، چې په اوېستا کې یې د نوم یادونه شوې هم ټاکلي نه شو او د یو شمېر غرونو په ټاکلو کې یې نظریې مختلفې دي لکه قلات کې (اران).

د افغانستان د خاورې ډېره برخه غرنۍ ده او دا ۱۶ قطعې اوستایي څمکه تر ډېره حده د افغانستان خاوره راښیي نو وایو چېکولای شو د

اوښتا تول او یا اکثره غرونه او یا د دې غرونولړۍ د افغانستان په خاوره کې وتاکو. دا دی د دې غرونو یوه برخه درپېژندل کېږي:

۱ـ *هریتي باز* : دا لومړی غر دی، چې په زمیادیشت کې یې یادونه شوې او د اوستا په اصطلاح د ځمکې چارچاپېره پروت او ترختیځ پورې یې اوږدوالی موندلی و. (گایگر) الماني باور درلود، چې دا د پامیر د غره لړۍ ده، چې څوکې یې د اسمان په څېر دنګې دي اوله ختیځ نه د لودیدیځ پر لور پروت دی.

۲ـ *زردهازا* : دویم اوچت او لوی غر، چې په زرمیادیشت کې یې یادونه شوې هغه د (زردهازا) غر دی او د دې غره په اړه هم اوښتا مدعي دی، چې د ځمکې چارچاپېره اوږد پروت و. "هو" د ځمکې چارچاپېره امتداد د اوښتا اصطلاح ده، چې په حقیقت کې د غره د سلسلې اوږدوالي ته اشاره ده. د دې غره له لړۍ نه یوه فرعي څانگه د (اوشیدا او شیدا رانا) په نامه یاده شوې، چې هغه غر یې د (اوشیداشار) په نامه هم یاد کړی، چې کولای شو هغه د (پوهې او رڼایی) غر ترجمه کړو. دارمستتر د دې غره د موقعیت په هکله د سیستان په هامون کې لتون کوي، خو لکه څرنگه، چې وایي د هلمند سیند تر ډېره سرچینه نیسي، نو په څرگنده معلومېږي، چې له دې غره نه یې مقصد د بابا د غره لړۍ ده.

۳ـ *سیامکه* : سیامکه عبارت له تور غر څخه دی، همدغه غر په (بنداهش) کې د (سیاک او مند) په نامه یاد شوی (سیاک او مند) د فرانسوي دارمستتر په عقیده همغه تور غر دی، چې د هرې رود شمال ختیځ پلو ته واقع دی.

۴ـ *وفره یانت*: دا نوم په لږ څه توپیر په بنداهش کې د (وفاراومند) په شکل راغلی، چې د دې غره مانا (واورین او واوزه لرونکی غر) ده. (تور غر) او (د واورو غر) دواړه د هندوکش شاخونه وو او یو د بل په مقابل کې پراته وو.

۵ـ *سپینه ورنه* : کولای شو دا دوه کلیمې (سپین پوښ) ترجمه کړو، چې سپین پوښ غر هم له جگو غرونو څخه و، چې د کال ډېره موده په سپینو واورو پوښل شوی و.

۶_ *سپیته ګونا غیري*: (سپینه) د سپین په مانا (ګونا) د (ګون) او (رنګ) په مانا همدارنګه و (غیري) د غره مانا لري او د دې کلمې مرکب نوم (سپین ګونی غر) کېږي، چې په‌پښتو کې تراوسه په سپین غر شهرت لري او دا د هغه غره لړۍ ده، چې له شمال ختیځ نه جنوب لودیځ ته د افغانستان جنوبي برخه کې واقع ده، چې د ننګرهار او پکتیا له ولایتونو څخه د بر بنه لیدل کېږي.

۷_ *یو پای ري سنا*: د (عقاب له الوتنې نه لوړ غر) چې د هندوکش د غره له لړۍ څخه دی، چې د افغانستان له منځنۍ برخې نه تېر شوی او د دې غرنۍ سیمې د ملاتېر تشکیلوي، په همدغه ترتیب، چې کتل کېږي. نو اوستا د افغانستان غرونه په بنه توګه پېژندلي او د دې لړۍ مشهورې او سترې برخې یې په نومونو او صفتونو لکه سپین او تور، واورین (په واورو پوښل شوی)، او د عقاب له الوتنې لوړ یاد کړي دي، چې تراوسه یې ګڼ شمېر اصطلاحات پاتې دي او له منځه نه دي تللي.

۳/۱/۱۳۳۶

# د سکندر د تیرېدلو لار

د ختیزو هېوادونو د تاریخ له سترو پېښو څخه یوه، چې په عین وخت کې د ختیځ او لویدیځ د اړیکیو په تاریخ کې ډېر ارزښت لري په اسیایي هېوادونو کې د سکندر مقدوني فتوحات دي.

په دې لیکنه کې د ختیځو هېوادونو د سکندر له فتوحاتو او د هخامنشي د امپراتورۍ په مقابل کې یې موقعیتونو سره کار نه لرو، یوازې پر یوې موضوع غږېږو، چې هغه په افغانستان کې د سکندر مقدوني د تېرېدلو لاره ده:

سکندر د ۳۳۰مخ زېږدي په پسرلي کې د هري رود (روداریوس) سیمې ته راورسېد دلته پر دغه وخت یو ښار موجود و، چې یوناني منابعو هغه د (ارته کواتا) په نوم یاد کړی دی. سره له دې، چې د دې ښار دقیق موقعیت تراوسه تاکل شوی نه دی، خو د هرې رود په سیمه کې یې د شته والي هېڅ شك نه شته. سکندر په دغه ځای کې د یو بل ښار جوړول پیل کړل، چې د (سکندریه اري) په نوم شهرت لري او دا په افغانستان کې د سکندر لومړی اباد کړی ښار دی.

سکندر او یوناني لښکر د هرې رود له سیمې نه جنوب پلو ته روان شول په موجوده لاره تر فراه اویا لږ څه په منځني ډول د سیستان هامون ته ورسېدل، څکه چې یوناني مورخین په دغه سمت کې د (شرنجیانو) یا (زرنجیانو) او یا ووایو د زرنګ د خلکو یادونه کوي او سکندر د دې سیمې په یوه برخه کې د یوې بلې سکندریې په جوړولو پیل کوي، چې هغه په (سکندریه پرو فتازي) شهرت لري او هغه معمولا د (فراه سکندریه) ترجمه کوي، چې باید د هغې د موقعیت لټون یا د اوسني فراه په شاوخوا کې او یا د زرنګ ترځنګ په کنډوالو کې وشي، خو له احتماله لرې نه ده، چې دا سکندریه دې د اوسني (پشاوران) له ساحې نه لرې وي.

په هر حال د دې سکندریې موقعیت په یقیني توګه ټاکل شوی نه دی، خو د سیستان هامون ته نژدې و.

سکندر له دې ځایه وروسته د جنوب ختیځ په خوا روانېږي او د فرانسوي ختیځ پېژندونکي موسیوفوشه د نظریې له مخې د (قلعه بست) د

کندهوالو پر لار د هلمند له رود نه تېرېږي او د ارغنداو د سیمې خوا ته راځي. دلته دریمه سکندریه چې (سکندریه اراکوزي) ورته وایي بنا کوي. موسیوفوشه باور لري، چې د دې سکندریې موقعیت باید د ارغنداو د غاړو ښیې پلو ته وپلټل وشي، دا چې اوس د کندهار د زوړ ښار شمالي پلو ته د اشوکاکتیبه، چې زمانه یې درې پېړۍ دمخه تر میلاد تاکل شوې، تازه کشف شوه، ایا کولای شو، چې د دې سکندریې موقعیت او یا لږ تر لږه د هغه وخت مهم ښار (اراکوزي) په همدغه ځای کې وګڼو؟

په هر حال دریمه سکندریه، چې سکندر د افغانستان په خاوره کې او هغه هم د هرې رود په سیمه کې بناء کړې وه، دا چې په هر ځای کې وه، وه به خو په دې کې شك نه شته، چې د سکندر د تېرېدلو لار، همدغه موجوده لار ده چې د کندهار د زاړه ښار تر مخ تېره شوې ده

د سکندریې وجود په هرات، فراه، زرنګ او کندهار کې راښیي، چې سکندر د هرې رود له سیمې تر ارغنداوه پورې د افغاني سیستان په شاوخوا کې لویه دوره وهلې او بالاخره د ارغنداو سیمې ته، چې د کندهار زاړه ښار ته نږدې ده رسېدلی دی.

څلورمه سکندریه، چې زموږ په خاوره کې یې جوړه کړې په (ققفاز سکندریه) مشهوره ده، چې په اختلاف سره د جوړېدلو ځای یې (پروان) یا اوسنی (جبل السراج) راښیي. دا چې سکندر له کندهاره پروان ته له کومو ځایونو تېر او پر کومه لار راغلی؟ یو شمېر وایي، چې د ارغنداو د سیمې لار یې نیولې او ځان یې (جاغوري) ته رسولی، یو شمېر نور باوري دي، چې په همدغه موجوده لار غزني ته راغلی دی، همدغه شان له غزني نه یې پروان ته راتلل هم چندان روښانه نه دي. هغه څه، چې ډېر روښانه دي دا دي، چې سکندر کابل ته نه دی راغلی او له دې ښار نه تېر شوی هم نه دی، نو ده په باره کې ویلی شو، چې له کابل نه شمال پلو ته د ۳۰ کیلو مترو په واټن د ارغنداو پر لار د پغمان د غرونو په پای کې د کاپیسا سیمې ته ورداخل شوی او دا هم څرګنده ده، چې پروان ته تر رسېدلو دمخه یې په هغه ځای کې توقف کړی، چې د پنجشیر، شتل، سالنګ او غوربند رودونه یوځای شوي، چې اوس د (برج عبدالله) په نوم شهرت لري. دلته یې د یوې مستحکمې کلا تر جوړولو وروسته په پروان کې په یو نوي ډول د لوی ښار جوړول (د هندوکش په پای کې سکندریه) پیل کړه.

سکندر دوه ځله په تللو راتللو له هندوکش نه تېر شوی، د لومړي ځل د تېرېدو په وخت هغه ځای، چې د هندوکش په شمال کې نوموړی ورته ننوتی شوی (د راپاسک) ده، چې (اندراب) یې بولو. ټول پوهېږو، چې له پروان څخه اندراب ته له څو لارو، څو درو او کوتلونو ورتللی شو، چې د خاواك لاره هم یوه له همغو لارو څخه ده او همداراز د(کوشان) او (سالنګ) درو لارې هم ورغلي دي. معمولا وایي، چې سکندر باختر ته د خاواك پر لاره تللی دی او زه په دې باره کې داسې وایم، چې سکندر په واپسۍ کې د (کوشان) درې د غوربند (خواجه زید) پر لاره شمال ته تللی دی.

په هر حال په شمال کې وروسته تر جنګونو سکندر په باختر کې د هندوکش له جنوبي سکندریې نه پروان ته داخل شو او له دې ځایه یې د پنجشیر د درې سیند د ختیځ پلو ته ونیوه او د ریزه کهستان، نجراو او تګاو د غرونو په لمنو ورتېر (لمپاکا) یا لغمان ته ورسېد.

ختیځ پلو ته د سکندر په اوبجه کې لغمان یوه مهمه نقطه ده. موسیوفوشه باوري دی، چې دلته یې یو ښار د (نیکیا) یا (مینه) په نوم جوړ کړ او هغه یې د یونانیانو د فتحې او سرې ښار په نوم وباله.

فرانسوي ختیځ پېژندونکي د دې ښار موقعیت د (مندراور) او د لغمان د چارباغ ترمنځ (قرغیو) نه نژدې سیمه راښیي او وایي، چې دلته سکندر د یونانیانو د بري په مناسبت رب النوع ته ډېرې قربانۍ ورانډې کړې او خپل عسکر یې په دوه ډلو ووېشل، چې وړوکې ډله یې خپله واخیسته او د کونړ د درې په لاره یې د سوات مخه ونیوه او بله ډله یې، چې په هغې کې د عسکرو شمېره ډېره وه د دوه تنو جنرالانو پرویګاس او هفستیون په مشرۍ د کابل د سیند لار ونیوله او جنوب پلو ته لاړل، چې بیا دواړه ډلې د اندوس یا د(سند رود) په غاړه یو ځای شوې.

سکندر د کونړ په دره کې له اوسني چغه سرای نه تېر په بدهن یا پېچ دره کې د نورستانیانو له پخوانیو نیکونو سره مخامخ شو، چې وروسته بیا د اسمار له سیمې نه تېر سوات او بونېر ته تر رسېدلو وروسته د سند سیند ته ورسېد، چې هلته د هغه د جنرالانو له خوا پرېبېړیو جوړ کړی شوی پول باندې له نوموړي سیند نه تېر شو. نور د هغه تعقیب د دې مقالې له هدف څخه دباندې دی.

۱۸/۴/۱۳۳۷

# په افغانستان کې دسکندر

# دتلو لار

هغه پوهان او د لویدیځې نړۍ ګرځېدونکي، چې له افغانستان سره د لرغوني تاریخ او جغرافیې له نظره ډېره مینه لري، یوه زړه پورې مسئله د سکندر مقدوني د تلو د لارې تاکل دي.

د دې یادونې اړتیا نه شته، چې د مقدوني سردار فتوحاتو د ختیځ او لویدیځ ترمنځ د دوستۍ او راشه درشه ور پرانیست. دا حقیقت لکه ځنګه، چې د ګڼو اسیایي سیمو په اړه رښتوني دي همدغه شان زموږ غرني هېواد په اړه هم ډېر رښتوني دي، ځکه چې د اریانا لرغوني هېواد او اوسنی افغانستان ډېرې لرې پرتې سیمې وې، چې د سکندر مقدوني د فتوحاتو په اثر او دلته د یونانیانو تر رسېدلو وروسته د لومړي ځل لپاره د روم بهر له نژدې هېوادونو او نورو لویدیځو سیمو سره یې پراخوالی وموند.

سکندر لکه د بریښنا په څېر په ډېرې تېزۍ سره د ایران دهخامنشي دریم داریوش مقاومت مات کړ او ۳۳۰ مخزېږدي پر پسرلي د موجوده افغانستان لویدیځ سرحدي ولایت اریې، اریایا هرات ته ورسېد. د دې ولایت مهالي حکمران، چې یوازې یې له سکندر سره مقاومت نه شو کولای، هغه ته یې ښه راغلاست ووایه. مقدوني سردار هغه د پخوا په شان د هغه ولایت حکمران وټاکه او خپله باختر ته متوجه شو، ترڅو ژر تر ژره د هغه ولایت حکمران، چې دپاچاهۍ اعلان یې کړی و له منځه یوسي.

په دې کې شك نه شته، چې په افغانستان کې د سکندر د تلو د لارې لومړۍ برخه د هري رود له سیمې ختیځ پلو ته د بلخ (بکتر) ښار و. په دې خوا یې یو څه فاصله وهلې وه، چې یو ناڅاپي د (ستي برزن) پاڅون هغه بېرته ګرځېدلو ته اړ ویست.

په دې وخت کې د ولایت مرکز (ارتـه کوافـا) و او د هغـه د اوسـېدلو ځای د هـرات موجـوده ارګ او یـا د اختیـارالدین کـلا وه. د هـرات واکمـن، چـې د سکندر نظامي مشاور هـم و، یـو شمېر یونانیـان یـې وژلـي او ښار یـې پـه خپـل لاس کـې اخیسـتی و، خـو کلـه چـې سـکندر راوګرځېد د هـرات لـه واکمـن سـره تـر خونړیـو جـګړو وروسـته یـې د (ارتـه کوافـا ښار) فتـح کـړ، سـکندر چـې د هرات لـه خلکو نـه پـه ویره کـې و، اړ و، چـې یـوه نظـامي کـلا هلتـه جوړه کـړي، چـې دا یـې د افغانسـتان پـه خـاوره کـې لومـړۍ نظـامي کـلا وه، چـې سـکندریه اريې پـه نـوم یـې شهرت پېدا کـړ.

سـکندر وروستـه تـردې پـېښې بلـخ تـه لـه تللـو یـې ډډه وکـړه او خپلـې د تللـو لارې تـه یـې جنـوب پلـو تـه بدلـون ورکـړ او د زرانګیـایـا، درانجیانـا، ساکسـتانا ولایت تـه داخـل او لـه یشـد سیسـتان څخـه د ((پرونتازیـا)) د ښار پـر لـور مـخ پـه وړانـدې لاړ. د دې ښار موقعیـت پـه (پشـاوران) کـې ټاکـي، چـې کنـډوالې یـې د هـامون یـا دسیسـتان دسـیند شـمال لـور تـه نـژدې پرتـې دي او دا ځای د ۱۸۰ میلـو پـه واټن د هـرات جنوب پلـو تـه واقـع دی. د سـکندر دویـم اسـتوګن ځای یـا پرونتیازیـا سـکندریه پـه همدغـه پشـاوران کـې یـادوي او ګڼي.

سـکندر د رانجیانـا لـه ولایـث څخـه، چـې دا د هـامون سیمه وه او پـه هغـه وخـت کـې ابـاده او ډېره ګڼه ګوڼه یـې درلـوده لـه هـیرمند نـه پـه منحنـي ډول ورتـېر او د ارغنـداو سـیمې تـه چـې د اراکـوزي ولایـت و، ورداخـل شـو. دا ولایـت اوس د کندهـار پـه نـوم یادیـږي او دا هغـه نـوی ښار دی، چـې سـدوزیانو د بنسـټګر احمد شاه درانـي لـه خـوا جـوړ کـړای شـوی. د کندهـار د موجـوده ښار لویدیـځ پلـو تـه (لـه مرکـز نـه د پنځه کیلـو مـترو پـه فاصلـه) یـو شـمېر کنـډوالې پرتـې دي، چـې د کندهـار زوړ ښار یـې بولـي. همدغـه سـرك، چـې اوس د ارغنـداو لـه یـوې خـوا د کوکـران تـر یـوې برخـې تـېرېږي د کـاروانونو د پخوانیـو لارو اسـتازیتوب کـوي.

د اشـوکا کیتبـه، چـې د (دویمـې مخـزېږدي پـېړۍ پـه نیمـایي کـې) د موریاکورنـۍ پـاچـا و، دا ثـابتوي، چـې دا ښار د هنـدي موریایـانو همـهالی او پـه ډېر احتمـال د سکندر د راتلـو پـه وخت اباد و او سـکندر هلتـه خپلـه دریمـه سـکندریه پـر ۳۲۹ مخـزېږدي د اراکـوزي پـه نامـه جوړه کـړه.

کـولای شـو، چـې د سـکندر د تـګ لار لـه سـکندریه ارکـوزي یعنـې د کندهـار لـه زاړه ښاره تـر غزنـي او دهغـو غرونـو لمنـو پـورې، چـې د موجـوده سـرك شـمال تـه واقـع

دي وتړاکو. ایټالیایي لرغون پېژندونکي د هوایي عکاسۍ له مخې په دې باور دی، چې د اوسني غزني په څار چاپېره سیمه کې د یونانیانو یو ښار و او د غزني جغرافیایي مرکزیت هم دا نظر تائیدوي.

د سکندر خط سیر له غزني نه وروسته بیا هم غرونو ته په نږدې نږدې ساحه کې له وردګ، میدان او ارغندي نه تېر شوی، خو کابل ته نه دی راغلی او همغسې له ارغندي څخه مستقیم د پغمان غرونو له لمنو د کاپیسا سیمې ته داخل شوی او دلته بیا اوسني خواجې سرای ته نږدې یو شمېر کنډوالې لرو، چې په (سارسکندري) او (حصار سکندري) مشهورې دي.

سکندر د ۳۲۸ مخ زېږدي کال په ژمي کې هغه ځای ته نږدې، چې د پنجشیر شتل، سالنګ او غوربند سیندونه سره یو ځای شوي ورسېد او د بګرام په شمال د عبدالله برج په سیمه کې د سکندر د موقتي توقف ځای ثرګندېږي.

د افغانستان په خاوره کې څلورمه یا پنځمه سکندریه، چې سکندر جوړه کړې هغه د پخواني پروان یا اوسني جبل السراج د هغې نقطې ښې پلو ساحل کې واقع ده، چې د څو سیندګوټو اوبه سره یو ځای شوي دي کولای شو ووایو، چې پدغه ډله کې د قفقاز سکندریه او د پاروپامیزاد سکندریه هم شته. د سکندر یون له دې کلا څخه، چې د هندوکش په پای کې پرته وه، د ۳۲۷ مخ زېږدي په پسرلي کې د پنجشیر درې له لارې او دخاواك له کوتل نه شوی دی او د ده مخې ته لومړی د هندوکش په شمالي برخو کې اندراب راځي، چې په یوناني ماخذ کې د (دراپاسکا) په نوم یاد شوی دی، له دې ځایه وروسته د سکندر یون د بکتر تر ښار پورې په دقیق ډول معلوم نه دی.

د ایبك او تاشقرغان لاره غزنۍ او دقندوز پر لور پرته لاره جلګه یي ده. سکندر هم له بلخ نه د امو سیند شمال لور ته او هم د بلخ لویدیځ لور ته د مرغاب تر سیمې پورې تللی دی، چې په بالامرغاب کې د مارجیان د سکندریې پاتې شوني د دې نظریې شاهدې دي، له بلخ نه د پروان سکندریې ته د سکندر راتګ غالباً د (کوشان) د درې پر لار، چې د قفقاز له سکندریې نه د ختیځ پر لور په عمومي ډول له ریزه کوهستان، نجراو، تګاو، لغمان او کونړ له کوزنۍ برخې د اوسني اسمار تر خوا تېر او سوات ته ورداخل شوی دی او سند اندوس د سیند تر غاړه وړاندې تللی دی. هغه په دغه لنډه لیکنه کې تر دې ډېر او په دقیقه توګه تعقیبولی او څېړلی نه شو.

۱۲/۳/۱۳۴۱

# په اسیا کې دیوناني هڅوب د مرکزیت

# له نظره د افغانستان اهمیت

افغانستان د اسیا او مهاجرتونو څلور لارې دي، همداراز د تمدن، فرهنګ او افکارو د تصادم د تماس نقطه، د ښوونې مرکز د مفکورو د ګډون او ذهني مظاهرو ځای او بالاخره د ادبي، هنري، فلسفي او مذهبي نظریاتو د خپرېدلو له مرکزونو څخه شمېرل کېږي.

د اسیا په تاریخ او که لږ په ځرګنده ووایو د منځني ختیځ او لویدیځ نړۍ په تاریخ کې یوه مهمه نقطه وجود لري، چې د (یونان او شرق) ترمنځ رابطه یې بولي او کولای شو د هغه وخت په مانا یې د (ختیځ او لویدیځ) تماس وبولو ځکه چې د دوه زره پنځه سوه کاله وړاندې نړۍ له نن نه ډېره محدوده وه او تقریبا ټول ختیځ او لویدیځ له هندوکش نه د مدیترانې تر جزیرې پورې ساحه کې خپور و، خو شرقیانو او غربیانو ته پرته له دې دوه یاد شوو سترو سیمو نه دباندې نور هر ځای مجهول او نامعلوم و.

سکندر، چې په هغه وخت کې د نړۍ تر وروستۍ دښتې رسېدلی و پرته د سند له شرقي خوا ځمکو او د پنجاب له ابادیو نه نور څه نه و او د سکندر په هکله چې یو شمېر خلکو یو افسانوي شخصیت باله او پرته له ده بل څوک نه و، چې د یورپ له مجهولې دنیا څخه راپورته شوی وای. په هغه وخت کې د نورې دنیا په مقابل کې دا دوه د شرق او غرب قطبونه د هندوکش د غرونو په ماحول کې د هغه هندوکش، چې کلکو تیرو یې د یونانیانو په ذهن کې یوه داستاني بڼه خپله کړې وه، سره یو ځای شول. ګڼ خلك، چې په ختیځ کې د سکندر فتوحاتو ته ډېر ارزښت ورکوي، وجه یې دا ده، چې د ده د فتوحاتوپه ترڅ کې د لومړي ځل لپاره د ختیځ او لویدیځ ترمنځ مستقیم تماس پېدا شو. که چېرته په غور ورته وکتل شي د سکندر ټول فتوحات په ختیځ کې ترسره شوي. یواځینی ځای، چې یونانیت په پېړیو هلته دوام وکړ د هندوکش ماحول یا افغانستان و، له دې څخه به تېر شو، چې یونانیانو دوه سوه کاله په باختر او بیا له باختر نه پر ټول افغانستان او د هند په یوه برخه یې حکومت کړی دی. هغه څه، چې د افغانستان په غرونو کې د سکندر د تېرېدلو په مهال دلته پاتې دي د یوناني تمدن، فرهنګ او هنر روح دی.

سکندر د خپل تګ پر لار له (هري رود) څخه تر (اباسينده) څو سکندريې جوړې کړې. په دې سکندريو کې يو شمېر يونانيان ځای پر ځای شول له هغوی سره د هغو فرهنګي چارې، رسم الخط، ژبه، هنر د ابادۍ ځرنګوالی او د هغوی نور کړه وړه او رواجونه هر پلو ته خپاره شول. د هغوی هر ډول مذهبي اسطورې يوناني (ميتولوژي) د زردښتي له محلي اسطورو او وروسته له بودايي اسطورو سره ورګډې شوې. الفبا او يوناني رسم الخط په شمال او جنوب کې په عمومي توګه رواج وموند لکه، چې وروسته تر ۲۳۰۰ کلو د اشوکا کيتبه په کندهار او وروسته تر ۲۰۰۰ کلو د کنيشکا کيتبه په بغلان کې تر شمال او جنوب شاهدي ورکوي، چې تر ميلاد دمخه پېړيو کې د يوناني الفبايې رسم الخط د افغانستان په ټولو برخو کې معمول او رواج يې موندلی و.

د هغو سکه لرونکو فلزي پيسوله مخې، چې د مختلفو نسلونوله خوا جوړې شوې وې او د چينايي سيلاني((هيوان تسنګ)) د يادونې له مخې ويلی شو، چې دې رسم الخط دا چې هر ډول تحول يې ليدلی، خو اوومې مسيحي پېړۍ تر لومړۍ نيمايي پورې نژدې يو زر کاله معمول او په خلکو کې رواج درلود. هغه چا چې د کابل په موزيم کې د بګرام نفيس اثار اوپه ځانګړې توګه يوناني ګچي مدالونه، چې په ډېره صافه او هنري بڼه جوړ دي،ليدلي وي اويا يې د افغانستان په مختلفو برخو کې په زرګونوله ګچ نه جوړې شوې مجسمې له نظره تېر شوي وي، هغوی ښه پوهېږي، چې په افغانستان کې يوناني مجسمې تورل، مسجمه جوړونې، هنري روح او د هنر دوستۍ روح څومره په ژوره پېمانه او څومره ډېر رواج شوی و.

له دې کتنو څخه، چې کومه نتيجه په لاس راځي، هغه دا ده، چې پخوانۍ اريانا يا افغانستان د څو پېړيو په اوږدو کې، چې له دوه خواوو نه يې د مسيح عهد پيل شوی و د فرهنګ، تمدن او يوناني هنر مرکز و، چې هغې ته ګريس (اسيا) يا (اسيايي يونان) ويلای او د اسيا په تاريخ کې د دې خبرې ښکاره بيانول ډېر ارزښت لري، ځکه هغه کسان، چې د اسيا په فرهنګي، هنري، ادبي او د تاريخي بدلونونو په مطالعه او څېړنه بوخت دي او په ځانګړې توګه، چې د مرکزي او ختيځي اسيا، هند، چين او نورو په تاريخ کې د دغو مواردو مطالعه کوي، په ډېرو ځيزونو کې د يونان د ادب او هنر نښې نښانې ګوري او تل يې دا پوښتنه په ذهن کې راګرځي، چې دا تاثير څنګه له يونان نه دلته راغلی.؟

په دې کې څو شك نه شته، چې يونان د سكندر د فتوحاتو په وجه له اسيا سره تماس پيدا كړ، څو كله چې سكندر مړ شو لويه امپراتوري يې تجزيه شوه د نورو سلطنتونو په رالتلو د يونانيانو تماسونه له منځني اسيا سره له منځه لاړل. خو په عوض كې يې د هندوكش په شاوخوا كې د وه سوه كلن (يوناني باختري) سلطنت دوام او هلته يې د يو شمېر مېشتو يونانيانو سره د پخواني يونان د فرهنگ او تمدن روح پاتې شو. چې بيا په هغو وختونو كې، چې د يوناني سلطنت نوم پاتې نه و، خو د لويو كوشانيانو په ټوله دوره كې هماغه د يونانيانو په صبغه، افكارو، ادبياتو، فرهنگ، د الفبا رسم الخط مجسمه تورنې او نورو رواج ومومند او د ټول افغانستان په اطرافو كې خور شو. په همدې ترتيب موږ چې د يوناني هنر او تمدن تاثير په هند يا سنكيانگ، چين او حتى په جاپان كې گورو ډېره برخه يې له افغانستان څخه خوره شوې، ځكه چې دلته او په دې هېواد كې د معارف، فرهنگ او يوناني هنر ذخيره منځ ته راغلې وه. او لكه څنگه چې څرگنده ده د شرقي اقصى. مركزي اسيا او نورو له يونان او مديترانې سره اړيكې نه درلودې.

د افغانستان د پخوانيو دور له كړو وړو او رواجونو څخه يو هم همدغه د (يونانيت روح) درلودل دي. چې دلته يې په ډېره اندازه ريښې وځغلولې او تر ډېره وخت يې دوام وكړ. چې د هغې انعكاس تر ننه پورې زموږ په عرف، عادتونو او كيسو كې پاتې دي.

د افغانستان گاونډي هېوادونه، چې د يونانيانو له تمدن او هنر نه متاثره شوي ډېر علت يې د افغانستان جغرافيايي موقعيت او له هغوى سره د نژدېوالي اوقرابت وجه ده، چې د يو يوناني ثقافت د مركز په توگه يې د هغوى په راكړه وركړه، كار او كردار او په نورو څيزونو اغېزه كوله. په دې كې شك نه شته، چې په افغانستان كې د هخامنشي تمدن روح له يوناني روح سره گډ شوى و او له همدغه گډون او تماس نه يو شمېر مشترك څيزونه هم منځ ته راغلي لكه. د هنر په برخه كې يو شمېر مدرسې د مثال په توگه ((ايراني او يوناني)) ((يوناني باختري)) گريك او بكتريان ((يوناني و بودايي)) او گريك او بوديك مدرسې يادولى شو.

چې بيا وروسته له هغې يې فرعي شاخونه. لكه ((ايراني بودايي)) يا ((ساساني بودايي)) رامنځ ته شوي دي.

۹/۴/۱۳۳۷

# د افغانستان نجیبه طبقه اریاسپه یا اسواران

هېڅ داسې یو څوك نه شته، چې د اروپا د منځنۍ پېړۍ د تاریخ او د صلیبي جنګونو د مطالعې په وخت کې یې د اروپا د نجیبې طبقې یا شوالیه نوم لوستلی یا اورېدلی نه وي. هغوی خپلې جنګي کلاګانې درلودې او د کلاګانو ترخوا یې ډېرې پراخې ځمکې لرلې او تر شاوخوا یې د ډېرو واکمنۍ څښتنان وو، چې بزګران یې نه د بزګرانو په څېر، بلکې د یو جنګي ډلې او حتی د یو غلام او مریې په څېر کارول

په افغانستان کې که هغه لرغوني دورې دي او که د اسلام له ظهوره وړاندې منځنیو پېړیو او که بیا وروسته تر هغې په ټولو دورو کې مو شوالیه یا (نجیبه طبقه) درلوده، چې په هغو کې د اروپا د منځنیو پېړیو د شوالیه د خویونه راجمع وو. مګر په عمومي ډول د هغوی عیبونه په هغوی کې نه لیدل کېدله په بل ډول ووایو، چې زموږ نجیبه طبقه (شوالیه) د قوم له اصیلو خلکو اوقومي مشرانو څخه وو، چې اصلا د اجتماعي طبقه بندۍ په پېلامې کې، چې له هغې څخه په زرګونه کاله اوړي، کولای شو هغوی د خپلواکو په نوم یاد کړو او د بلې طبقې پېدا کېدل تر ډېره حده د اس په روزنه، د اسونو د رمو او ګلو په لرلو د اسونو په سپرلۍ ان سوارکارۍ پورې تړلي او مربوط وو.

موږ ټول پوهېږو، چې د (اریا) د کلمې لغوي مفهوم نجیب او ازاد و، په هغه صفت، چې اریایي ټولنې د خپل روزنتون په پیاوړتیا کې مخصوصا د امو سیند په سیمو او فرغانه کې هغه مهال، چې د پامیر له لمنو نه د

باختر تر وروستیو لویدیزو لویو برخو یې ژوند کاوه، هغوی به له خپلو بدو عناصرو نه د خپلې خپلواکۍ او اصیلواله دمفهوم خوندي کولو په خاطر د مرکزي اسیا خلکو ((توریا)) او تور پوستان په ویدي کې یې هندیان د (اسیو) په نوم یادول.

اریایي باختري ټولنې د هندوکش په شمالي برخو د امو سیند په سیمه کې، چې د دوی د ژوند روزنتون وو، له اس او د اسونو له ګلو سره یې ډېره بلدتیا درلوده او د امو سیند ، فرغاني او باختري سېمو اصیل اسونه چې تراوسه پورې شهرت لري، د اریا له ټولنې سره داسې منسوب او پیوست دي، چې نه شو کولای یو له بله یې جلا کړو او لکه څنګه، چې یې په لنډ ډول مطالعه کوو له نورو څخه د اریایي ټولنې د تفکیك او اصیوالې له نښنو نښانو څخه یوه هم د دوی اسونه او د اسونو درلودل و.

په پخوانیو اریایي ټولنو کې د (اریاسپه) په شکل یوه ترکیبي کلمه لرو، چې له دوه کلمو (اریا) او (اسپ) نه ترکیب شوې ده، د دې کلمې لغوي مانا (اریایي اس لرونکي) دي، چې په اصطلاحي صورت کې (اریاسوار) یا اریایي سوارکار) ترجمه کولی شو، د هغې مجرد مفهوم (سوارکار) دی، چې په وروستیو دورو په پهلوي ادب کې دا کلمه د (اسواران ـ په بڼه څرګنده شوې ده او زموږ د ادبیاتو په تاریخ کې یې مشخص مفهوم درلود، چې هغه د نجیبو او سوارکارو له طبقې څخه عبارت و، چې دا طبقه د دهقان له طبقې نه پورته ګڼل کېده، مګر په اروپایي ټولنه کې دهقان د شوالیه طبقې ترلاس لاندې غلام او بردهګان وو، حال دا چې د افغانستان د پخوانۍ او منځنۍ پېړۍ په ټولنه کې هم نجیبه طبقه حسابېدله، خو نه یوازې په اجتماعي چارو کې د سوارانو له طبقې وروسته شمېرل کېده، بلکې سوارانو د جنګي او زړورو اسونو ګلې درلودلې دهقانان یې په ځمکو کې په کرنه بوخت وو او د ټولنې فرهنګي طبقه یې تشکیلوله.

په دې کورنیو کې ډېر فرهنګي اثار، تاریخي او ادبي خاطرې خوندي وې او دوی ټول د فرهنګي میراث وارثین ګڼل کېدل. په افغانستان کې د نجیبو اسوارانو طبقې سوابقو ډېر امتداد پیدا کړی او اوږد وخت لري.

دباختر په ځمکه کې د دوی دپېداکېدلومراحل اواجتماعي پراختیا او پیاوړتیاکې دویدي په سرودونو او داوېستاپه متن کې مطالعه کولای شو.

د ویدي دورې اسپه کورنۍ په اوېستايي عصر کې د لویو کورنیو په شکل منځ ته راغلي او د اسونو ګله داري د ځینو کورنیو په منځ کې د شخصیت پیدا کولو عامل وګرځېد، چې په دې منځ کې سلطنتي کورنۍ، وزیرانو او نوموړکو پهلوانانو نوم وویست، لکه څنګه چې بلخ کې د اسپه سلطنتي کورنۍ ډېر شهرت لري او د کورنۍ د غړو نومونه یې په اوېستايي بڼه اروت اسپه، کشتاسپه او نور مشهور دي او د یو شمېر وزیرانو او قومي مشرانو نومونه هم پدې کتار کې راتلی شي، لکه ارجت اسپه.او کرماسپه او نور، چې د لهراسپ، ګرشاسپ او جاماسب په بڼه، چې له هغوی سره ډېره اشنايي لرو. په عربي اصطلاحاتو کې د داسې نجیبو سوارکارو په څېر اثار په اسانۍ سره موندلی شو، لکه (ابوالفوارس) او (ابوالاسوار) او د پښتو په (سور) او (سپور) کې هغه خاطره باقي پاتې ده.له همدې امله د دې لنډې لیکنې له مخې ویلی شو، چې په افغانستان کې د شوالیه وو تاریخچه ډېره اوږده او لرغوني سوابق لري، چې د اریایانو په اجتماعي تحول او د اسونو د ګلو په تربیه د سردریاب او امو سیند په سیمو کې پیل شوي دي، اریايي نجابت، زړورتیا او وسله والي د اس له کلمې سره یو ځای شوي په باختري ټولنه کې یې تبارز کړی پیاوړتیا او پرمختیايي موندلې ده.

د امو سیند سیمې او بیا د باختر او زابلستان سیمې د اصیلو اسونو په لرلو، چې شهرت یې په لرغونو وختونو کې په ختیځ او لویدیځ کې خپور و، پیل یې د اریايي اسوارانو غورځنګ او حرکت وو، چې د هغوی نقش د افغانستان په ټولنه کې و او که په پخوانیو وختونو کې او که هغه په منځنیو پېړیو کې ښکاره او څرګند و، چې د اروپا د شوالیه وو په پرتله د هغوی تاریخچه، څرګندېدنه او کارنامې ډېره لرغونتیا لري.

۸/۱۱/۱۳۳۸

# د سکندر مقدوني په مقابل کې مقاومت

ټول په دې پوهېږو، چې ولې او څه ډول سکندر مقدوني په ختیزو سیمو کې د ایراني امپراتورۍ، هخامنشي پر قلمرو برید وکړ، ټول په دې پوهېږو، چې یوناني عسکر په څومره چټکتیا د مدیترانې د سیند (بحر روم) له څنډو نه د هرېرود څنډو ته ورسېدل او په دې هم ټول پوهېږو، چې څنګه د هخامنشي دریم داریوش په درې جنګونو (کراتیک)، (ګوګامل)، (اربلس) کې ماته وخوړه او ځواکونه یې تیت و پرک شول.

پر دغه وخت له ختیزو ولایتونو پرته افغانستان د هخامنشي امپراتورۍ په لاس کې و او محلي امیران د (ساتراپونو) په نامه په هر ولایت کې نایب الحکومه او یا حکمرانان وو

لکه څنګه، چې د یوناني او رومي مؤرخینو له یادښتونو نه څرګندېږي، چې سکندر او یوناني لښکر د هرې رود (اریوس) د سېمې تر نیولو وروسته له ډېر سخت مقاومت سره مخامخ شول. دا مقاومت د هري رود له غاړې نه د اندوس (اباسین) تر غاړو پورې د کلاګانو په ساحو د لویو جلګو په میدانونو او د غرونو په لمنو کې هر ځای محسوسېده، خو په باختر کې مرکزي او ختیزو غرنیو سیمو، تنګو، لوړو او سختو درو کې د مقاومت ډېر شدت و او لا پسې ډېرېده،لکه چې د هغې انعکاس تراوسه زموږ د فوکلوري ادب په داستانونو او کیسو کې پاتې دی.

د سکندر په مقابل کې لومړی مقاومت د اوسني هرات په ((ارته کوانا)) کې، چې له ښار سره یوه ډېره مستحکمه کلا ده، منځ ته راغی.

د دې ولایت حکمران، چې ((ستي یرزن)) نومېد له خپلو ټولو ځواکونو سره کلا پرېښوده او ۲۰ فرسنګه لرې په یوه لوړه قطعه کې، چې سخت ځنګل یې درلود د مدافعې لپاره ځای ونیو. دا چې سکندر په ځنګله کې پرډېرو هراتیانو حمله کولای

نه شوه. نو ځنګله ته یې اور واچاوه او په دې ترتیب یې د هغوی مقاومت ختم کړ د دې لپاره. چې د بیا حملې مخه ونیسي، هلته یې یوه کلا د (سکندریه اریان) په نامه جوړه کړه، خو سکندر لا د سویل پر لور ډېره فاصله نه وه تللی. چې د هري رود سیمې زړورو خلکو د یونانیانو پر ضد پاڅون وکړ او اناګزیپوس د سکندر نظامي مشاور یې له یو ډېر شمېر یونانیانو سره وواژه.

وروسته هغې سکندر د فراه او سیستان پر لور ښکته راغی. چې هلته د سکندر په خلاف یوه توطئه د هغه د یو تن جنرال فیلوتاس له خوا کشف شوه. چې د محاکمې په نتیجه کې له تهمت نه پاك او پر ځای یې د خپل ګارد قوماندان دمتریوس په قتل ورساوه. سکندر د فراه رود هامون او د ارغنداو له سیمې نه په لږ څه اسانۍ سره تېر شو. لیکن چې هر ځومره مخکې تلو تر شا یې مخصوص د هري رود په سیمه کې ورته ستونزې پېدا کېدلې، ځکه چې د هغه ولایت حکمران ((ساتي برزنس)) او د منطقې غښتلي خلك پرله پسې د یونانیانو پر ضد پورته کېدل. په کلاګانو او استوګن ځایونو به یې حملې کولې.

سکندر په کراره. کراره د کابل سیمې ته رسېږي لومړی په مستقیمه توګه د هندوکش د سپینو واور خوا ته نژدې د پنجشېر د رود اوشتل(اوسنی برج عبدالله) خوا ته او بیا وروسته تر رود هغې خوا پروان ته رسېږي او ژمی همدلته تېروي

د هندوکش له اوسېدونکیو او د باختر له لویو سیمو نه دسکندر تېرېدل هغه ته ډېرې ستونزې منځ ته راوړې.

د باختر حکمران بسوس، چې د پاچاهۍ اعلان یې کړی و د سکندر د مخنیوي لپاره یې ډېر ترتیبات نیولي وو. وایي چې د باختر نوي پاچا امر کړی و. چې د خوراکي او ارتزاقي موادو زېرمې وسوزوي او د غنمو ګودامونه په تنګو ځایونو کې ښکته کړي او څاروي دې حلال کړای شي، ترڅو چې یوناني عسکر د خوراکي موادو د نه پېدا کولو له امله له مشکل سره مخامخ او په هلاکت ورسېږي، چې په ډېرو ځایونو کې د غلو د انبارونو د سوزولو په وجه یې سکندر ته ډېرې ستونزې مخې ته کړې. په شمالي صفحاتو کې لومړی ځای، چې سکندر ورغی هغه (اندراب) و. د باختر نوي پاچا ((بسوس)) او یو تن قومي مشر، چې ((ګز پارتس)) نومېد خلك یې د یونانیانو مقابلې ته هڅول نو د یونانیانو کار یې دومره ستونزمن کړ. چې پخپله سکندر او جنرالان یې پوره دوه کاله له دې خوا څخه د آمو سیند هغې خوا ته تلل، خو د ملي مقاوت په کمولو نه بریالي کېدل.

باختر سوارکارانو، چې لـه پخوا راهیسې د اس په سپرلۍ کې شهرت لري، د باختر په بېلا بېلو برخو کې به یې په ځانګړې او یو ناڅاپي توګه د یونانیانو پر لښکر حملې کولې، چې هغوی ته یې کار ډېر سخت کړ اوله ډېرو ستونزو سره یې مخامخ کړي وو.

تر دوه کاله جګړو او تېریو وروسته باختري سردار ((بسوس)) ونیول شو او یونانیانو، چې ډېرې زیاتې مرګ ژوبلې یې لیدلې وې، بریالي شول او د هندوکش جنوب ته یې مخه کړه.

یو شمېر نورې لویې ستونزې، چې سکندر ورسره مخامخ شو هغه له پروان نه د سند د رود تر غاړو دلاړې مقاومتونه وو.

سکندر او یوناني عسکر له کاپیسا نه د نجراو، تګاو، لغمان، کونړ، اسمار، سوات او بونیر پر لار د غرونو په لمنو او تنګو درو کې په تېرېدلو له ډېرو سترو ستونزو سره مخامخ شول.

په دغه غرنیو سیمو کې د کلیو اوسېدونکیو په عمومي ډول خپل کلي او کورونه پرېښودل او د غرونو سرونو ته وختل. له هغه ځایه به یې په یونانیانو باندې کاڼي او لویې کلکې ډبرې او پرښې راغورځولې او هغوی به یې په تنګو، تنګو ځایونو کې ایسارول.

د غرونو پر سر د کلاګانو نیول ډېر سخت او مشکل کار و، چې څو ځله د یوناني جنرالانو د سختو ټپونو سبب شو او حتی نژدې پخپله د سکندر ژوند پای ته رسېدلی و. د کونړ د درې اوسېدونکیو چې حتما د نورستانیانو نیکونه وو، ډېر کلک مقاومتونه وکړل، چې انعکاس یې زموږ په ملي داستانونو کې څرګند ېږي. په همدې ترتیب سره سکندر د افغانستان د غرونو په لمنو کې نژدې څلور کاله پاتې شو او تقریبا دوه په درې برخې عسکر یې د افغانستان په جنګونو کې له منځه لاړل او ډېر شمېر یې ټپیان شول، چې په همغو سکندریو کې چې د افغانستان په خاوره کې یې جوړې کړې وې مدفن(خښ) کړای شول.

دمخه تر دې، چې سکندر د هند د فتوحاتو نقشه راواخلي خپل عسکر یې بیا پوره کړل او ډېره برخه یې زموږ له هېواد نه زړور او جنګیالي زلمیان په خپل لښکر کې د عسکرو په حیث شامل کړل او د هغوی په مرسته یې د سند له رود هاخوا فتوحاتو کې ډېر برې ترلاسه کړ.

۲۷/۶/۱۳۳۷

# سکندر په عامیانه داستانونو کې

پر ختیزو هېوادونو د سکندر مقدوني د لښکرو یرغل، چې په هغه جمله کې زموږ هېواد هم راځي او دا یرغل زموږ په تاریخ کې ډېر ارزښت لري او هغه مؤرخینو، چې د هغو په وخت او یا یې وروسته له هغه احیاناً یې د پېښو ګزارش په ځینو مواردو کې له یو شمېر مبالغو سره ثبت کړي دي، خو په دې ټول پوهېږو. چې په ختیځ کې د سکندر په وړاندې پېښو دی څلور کاله د افغانستان د غرونو په لمنو کې په ډېر قهر متوقف کړی و. دوه کاله د هندوکش په جنوب او دوه کاله یې په شمال کې پاتې شو او د نفوذ د ډېروالي او د یوناني سلطنت د دوام په خاطر یې اووه یا اته کلاګانې (سکندریه) د دې هېواد په بېلا بېلو برخو کې جوړې کړې. چې په کلي ډول: هغو له جملې نه د هري رود په سیمو کې، فراه رود، اغنداو او په ځینو نورو برخو کې لکه پروان خبر یو او یو شمېر نورې یې د آمو سیند تر خوا سیران ته نژدې جوړې کړې وي، چې معمولاً د هغو ځینې پاتې شونې له ماروشاق (بالامرغاب) او د ریرش رودخانې یعني کوکچه تر آمو سیند (آی خانم) پورې پېدا کولی شو، چې د هغو په باره کې ګڼ شمېر مقالې له راډیو افغانستان نه خپرې شوې دي.

په دې کې شك نه شته. چې په افغانستان کې سکندر څلور کاله په جبري توګه پاتې شوی، لوی لوی د ښوالونه یې چاپېر کړي، کلاګانې یې جوړې او څو سوه یا څو زره یوناني ټولي یې دلته پرېښې دي. په همدغه وجه یې نوم، رسم الخط، فرهنګ ادبیات د مجسمه جوړونې هنر، طب او د هغو هنري نمایش او روزښت. زموږ په هېواد کې ژورې او دوامدارې خاطرې پرېښې دي، چې لرغون پېژندونکي ورځ تر ورځ ترې پردې لرې کوي او څرګندوي یې.

هغه څه، چې په دې مقاله کې یې یادونه کوم په عامیانه داستانونو او روایاتو کې د سکندر او د هغه د خاطرو یادونه ده، چې د اروپایانو په توګه یې اوسنی خوند اخیستی، چې د نظم او نثر ډولونه یې ځانګړی کتاب غواړي

په دې کې شك نه شته، چې په ټوله نړۍ او بیا په ختیزو هېوادونو او په ځانګړې توګه په هند، ایران او افغانستان کې په پاچاهانو او امپراتورانو پورې مربوطو ولسي فولکلوري داستانونو ډېر دود لاره او په ډېره دلچسپۍ به ضبط او

حو نه ي کېده او په دې کې هم شك نه شته. چې د سکندر نوم په لاندنيو نومونو کې ځای نيولی ((داراګان))، ((اکاسره))، هخامنشي پاچاهان او ساسانيان داستان و بونکي او شاعرانو د دارانامو، شاهنامو او خداينامو په کتار کې سکندر نامې هم راوړي او پر دې لار يې د سکندر او د هغه کارنامو ته د عوامو له خاطرو څخه د داستانونو او منظومو لاره پرانسته.

په افغانستان کې عاميانه داستانونو يو شمېر کلاګانو او د لويو چاپېرو ديوالونو نسبت سکندر ته ورکوي لکه د هرات ښار، کندهار او سکندري ښار يا سکندري حصار (له کلا چاپېرديوال) چې دا سرای خواجه تـه نـژدې واقع دی او همداسې څو نورې کلاګانې او ښارونه.

د افغانستان د خلکو مقاومت د سکندر او د هغه د يوناني عسکرو په مقابل کې په هغه داستان کې منعکس دی، چې دسکندراو د هغه د مور ملکه اولمپياس ترمنځه يې د مکاتبې په بڼه صورت نيولی او مـا د هغې ډرامې په ليکلو کې ځنې کار اخيتسی، چې سرليك يې د (پاروپاميزاد مېړونه) او يا (سکندر په افغانستان کې) دی. مور ټولو اوړېدلي او لوستلي دي، چې سکندر د دې هېواد لـه يـوې ښکلې نجلۍ سره چې (روشانه) نومېدله، واده وکړ. په جنګ کې د سکندر اوددې نجلۍ دبرخوردپه باره کې ډېر ښکلي عاميانه داستانونه موجود دي، چې لـه دغو څخه په جنګ کې دافغاني مېرمنو دزړورتوب او مېړانې عرف، عادتونه، محلي ودونو اونورتاريخي مطالب په لاس راځي، چې زمـوږ دهـېوادپه ګوټ ګوټ کـې تراوسه پورې د سکندر په هکله ډېرې کيسې په مختلفو بڼو نقل شوي او کېږي لکه:

د سکندر ملاقات له خضر سره، اب حيات پسې د سکندر هڅه، ظلمات تـه د سکندر ورتلل، د سکندر ملاقات له هېښنده حېرانوونکيو خلکو سره.

د سکندرمور د زړه جمې موندلو لپاره د يو کوهي د پاسه ورځي او هلتـه اوري، چې په هر قدم کې يو سکندر خښ دی او داسې نورې کيسې.

په دې کې خو هېڅ شك نه شته، چې د سکندر بريو شرق ته يو ټکان ورکړ او لکه چې اروپايان وايي د ختيځ او لويديځ رابطه يې جوړه کړه، خو بايد ووايو، چې بريو يې زموږ هېواد کې څلور کاله طول ووېست او دا چې د سکندر نوم پـه داستانونو او کيسو کې پاتې و هغه د ده په کلاګانو او لويو چاپېره ديوالونو او ښارونو کې د ده د يونانيانو ځای پر ځای کول و، چې د ولس لـه مېشتو خلکو سره بې په مرکو او مجلسونو کې ژبې او رسم الخط په پېړيو دوام وموند. چې د هغه نوم او کړه وړه په ولس کې د کيسو يوه برخه وګرځېده، چې سينه په سينه پاتې او خوله په خوله يې نقل وشو.

۸/۸/۱۳۳۷

# د سکندر او چنګیز د لښکرو په مقابل کې دهرات د (اورتاکانا) د کلا مقابله

د بهرنیو د یرغل او تېري په وړاندې مقاومت او مقابله د دې هېواد د تاریخ له عنعنوي ځانګړنو څخه ده. تاریخي شواهد راښيي، چې هر کله د یرغل شدت او جدت ډېر شوی دی، په هماغه تناسب یې په مقابل کې مقاومت ډېر شوی دی.

د تېري او تجاوز په مقابل کې د مقاومت او مقابلې روحیه د ټول هېواد د اوسېدونکیو په منځ کې یو شان وه. هلته د زمان او مکان موضوع مطرح نه وه، چې داخبره دپخوانیو وختونو په کیسوکې تراوسه پورې په هر ځای کې مشهوره ده.

د سکندر مقدوني او د چنګیز د اولادونو په مقابل کې د هرات د تاریخي ښار او د هري رود د سیمې مقاومت د ۱۵۰۰ کلو په اوږدو کې د دغه هېواد د ټولو اوسېدونکیو لپاره د اتلانو حیثیت لري.

کله چې سکندرمقدوني له خپل لښکر سره پر ۳۳۰ مخزېږدي د هري رود ښېرازه سیمې ته ورسېد د دې سیمې خلکو د (برزآن) په مشرۍ په مدافعه لاس پورې کړ. کوم آباد ښار، چې په دغه وخت کې د هري رود د حوزې مرکز و، په یوناني منابعو کې د (اورتاکانا) په نوم یادېده، چې دې ښار ډېر د نګ او کلک دېوالونه درلودل، چې هغه یې د ((آریامتروپسو)) یا ((آریا)) د ولایت د مرکز په صفت هم یاد کړي دي.

په دې کې شك نه شته، چې دغه مهال افغانستان د هخامنشي امپراتورۍ برخه وه او د سکندر تر رسېدلو دمخه د لویو ولایتونو، لکه بلخ، سیستان او د خراسان حکمرانانو د دریم دارا په مقابل کې پاڅون کړی او د هغه په قتل کې یې لاس درلود، خو د سکندر په رارسیدلو سره هر یو له یونانیانو سره د مقاومت په خاطر له خپلو هېوادونو څخه ور ووتل.

سره له دې، چې د هرات د خلکو مشر (برزان) د ښار چاپېر ښه قوي او لوړ دېوالونه درلودل او د دې سیمې خلك هم پرې راټول وو، نوموړي د خپلې نظامي نقشې له مخې له یوناني عسکرو سره په لومړۍ نښته کې تسلیمۍ ته حاضر شو او سکندر له ویرې خپل نظامي مشاور (اناکزیپوس) د هرات په کلا کې پرېښود او خپله د فراه پر لور روان شو. لافراه ته نه و رسېدلی، چې (برزان) د هري رود اوسېدونکیو په ملاتړ پاڅون وکړ او د سکندر نظامي مشاور یې په قتل ورساوه.

سکندر اړ شو، چې بېرته هرات ته ولاړ شي، کله چې هلته ورسېد د هراتي سردار (برزان) د پلویانو له خوا، که هغوی د (اورتاکانا) په لویه کلا کې وو او که دباندې ټولو ورسره مقاومت وکړ. کله چې کلا د سکندر د عسکرو له خوا محاصره شوه، نو هراتي سردار اړ شو هغو غرونو ته د مقاومت لپاره پناه یوسي چې ورته نژدې وو او ګڼ ځنګل یې درلوده، له دې ځایه یې سکندر ډېر ناراحته کړی و، خو هغه مهال چې یونانیانو ځنګل ته اور ورته کړ، نو بیا هراتي سردار (برزان) تسلمېدو ته اړ شو.

د سکندر مقدوني له یرغل نه (۱۵۵۰) کاله وروسته پر (۶۱۸)هـ ق کال چې ۱۲۲۱م کال سره سمون خوري د چنګیز خان له دهشتي توپاني ځپې هرات ته نژدې شوې. تولي چې د تاتار د خان زوی و او د پلار له خوا دنده ورسپارل شوې وه، ترڅو د نیشاپور له فتح نه وروسته هرات ته ولاړ شي او دا وخت د خوارزم شاه سلطان جلال الدین نکبریني له خوا ملك شمس الدین جوزجاني د هرات واکمن ټاکل شوی و. د هرات د تاریخي نامې د لیك او د روضةالصفا د خرګندونو په اساس د ۹۰ یا ۱۰۰ زرو په حدودو کې جنګي مېړونه د ښار د دفاع او د چنګیز له زوی سره د مقابلې لپاره جګړې ته آماده وو.

چنګیز او د هغه زامنو، چې د افغانستان په لوړو او مستحکمو کلاګانو کې له ځان سره مقاومت لیدلی و او زیان ور اوښتی و، نو دا یې غوره ګڼله تر پایه هڅه وکړي، چې له جګړې نه مخکې له خلکو سره ارتباط ونیسي، ځکه هغوی غوښتل، چې ښارونه او لویې کلاګانې پرته له جګړې په آرامۍ سره ځانته تسلیم کړي، نو ځکه یې لومړی استازي ورواستول، ملك شمس الدین تسلیمي ته غاړ کینښوده او ټول استازي یې ور ووژل، د هرات د لویې کلا شاوخوا د تولي او ملك شمس الدین د لښکرو ترمنځ سخته جګړه ونښته، هراتیانو او ملك شمس الدین جوزجاني د تولي له لښکرو سره پوره اوۀ ورځې جګړه وکړه اوپه اتمه ورځ ملك شمس الدین د یو غشي په واسطه ټپي او مړ شو.

د ده له مړینې وروسته د ښار مقاومت له ماتې سره مخ شو او د تاتاري شهزاده د ژمنې او وعدې له مخې د ښار دروازې خلاصې شوې او تاتاري لښکر ښار ته تر ننوتلو وروسته ۱۲ زره تنه هراتیان، چې ډېر شمېر یې جنګي مېړونه، کارکوونکي او د فیصلو کولو صلاحیت لرونکي اشخاص وو، ووژل. لکه څنګه چې د سکنډر د یرغل پر مهال خلکو په اجباري ډول تسلیمي غوره ګڼلې او بیا یې پاڅون کړی و او د سکندر نظامي سلاکار (اناکرزیپوس) یې وژلی و، همدغه شان پر ۶۱۸ هجري چې په زور یې تسلیمي پرې منلې وه، سملاسي یې له کوتوال څخه سرغړونه او دښار واکمن ملك ابوبکر منکتاي یې هم وواژه او د فیروزکوه د ملکانو له ډلې یې یو تن، چې اصلا سبزواري و او په هرات کې اوسېده، د خپل ملك په توګه وټاکه او بیا د ښار د ټینګښت او له چنګیزي لښکرو سره د مقابلې په فکر کې شول. لکه څنګه چې ۱۵۵۰ کاله وړاندې سکندر له سبزوار یافراه ته نژدې سیمې نه راوګرځېد او د (اورتاکانا) لویه کلا یې محاصره کړه، د هراتیانو او یونانیانو ترمنځ سختې جګړې پیل شوې، همدغه شان چنګیز هم کله، چې د هرات د خلکو له پاڅون او سرغړونې خبر شو د سکندر په څېر دی هم ډېر په غوسه شو او د دویم زوی (ایلچکدای نویان) په مشرۍ یې اتیا زره تنه واستول، چې مقابل مقاومت له ماتې سره مخامخ کړي.

لکه څنګه چې د سکندر په مقابل کې د هراتیانو دویم ځل مقاومت ډېر شدت درلود او ډېر وخت یې ونیو، همدارنګه د (یلچکدای نویان) په مقابل کې د هراتیانو دویم ځل مقاومت او دریځ له لومړي ځل نه ډېر کلك، پیاوړی او دوامدار و، ځکه چې نژدې اووه میاشتې وخت د ښار محاصرې ونیو په پای کې یې په ډېر زور او اجباري ډول پر جمادي اول ۶۱۹هجري قمري کال د هرات ښار تسلیم کړ او د تاتاریانو وینې تویونکیو عسکرو تر هغه، چې کولای شول خلك ووژل، ځایونه یې وسوځول او مالونه یې ترې یوړل. دې ضربې د یو قطعي هلاکت حکم درلود، ځکه چې د ځینو روایاتو له مخې د هرات په ښار کې له څلوېښتو تنو ډېر څوك پاتې نه وو، خو لکه څنګه چې وروسته له سکندر نه د هرات ښار اباد او معمور شو، همدغه شان وروسته د چنګیز تر مړینې د هغه د دریم زوی (اوګتای قاان) د سلطنت په دوره کې د هرات د ښار اوسېدونکیو وروسته له ۶۴۰ ه ق نه بیا ابادۍ ته مخه وکړه.

۲۵/۲/۱۳۴۰

# د هرې رود په سیمه کې د سکندریې ښار د اباديږپه هکله د سکندر او د هغه د مور مکاتبه

ټول په دې پوهېږو، چې سکندر په ۳۲۸ مخ زېږدي د ایران د هخامنشي څواکونو له ماتې او د درېیم داریوش له وژنې وروسته د هرې رود سیمې ته نژدې شو او ختیځ لور ته د یون پر وخت لومړی په هرات کې له لرغوني کلا سره مخامخ شو، دا لرغونې کلا چې په یوناني مآخذونو کې د ((اوتاکانا)) په نامه شهرت لري ډېره ستره او کلکه کلا وه، چې د هرات د خلکو د مقاومت مرکز ګڼل کېده، د هغې وینا له مخې چې پخپله یونانیانو لیکلې وایي، چې سکندر او د هغه جنرالان د لومړي ځل لپاره د یوې داسې مظبوطې کلا او جدي مقاومت سره مخامخ شوي دي.

دسکندر او د هرات د خلکو ترمنځ د جګړې، بري او ماتې کیسه او پېښه یوه ځانګړې موضوع ده، خو لکه څنګه چې په تاریخ کې یې یادونه شوې ده سکندرچې کله د دې خلکو مقاومت او بیا بیا پاڅونونه ولیدل، په وېره کې شو او هوډ یې وکړ، چې دلته یوه سکندریه جوړه کړي، چې هغه د (سکندریه هریوس) او یا د هرې رود په سکندریه شهرت لري.

د اسلامي دورو په ماخذونو کې د هرات د لرغوني ښار د جوړونې او جوړونکې په هکله ډېر داستانونه او مختلفې کیسې موجودې دي، چې یقیني توګه تر اسلام دمخه د پخوانیو زمانو په اسطورو کې یې انعکاس او انځور پېدا کولی شو.

شیخ ابو نصر عبدالرحمان د عبدالجبار فاني زوی اوتر هغه وروسته سیف د محمد زوی او د یعقوب لمسي دا داستانونه پرله پسې په خپلو آثارو او تالیفاتو کې را اخیستي او نقل کړي دي او بیا سیفي هروي په خپل وار سره د هغو انعکاس زموږ غوږونو ته رارسولی دی. ډېره عجیبه دا ده، چې دسکندرد ډېرو ستونزو انعکاس د افغانستان په غرونو کې د هري رود له سیمې تر امو سیند او سند پورې په شفاهي او لیکلي ډول له لرغونو اوسېدونکیو نه تر ۱۰-۱۱ هـ (۱۶ او ۱۷ مسیحي) پورې د دې هېواد د اوسېدونکو په منځ کې لاس په لاس ګرځېدلی او د هغو شفاهي او تحریري لیکنو نه ثرګند ېږي، چې سکندر د دې ستونزو په اړه له خپلې مور ملکه اولمپیایس سره په یونان کې مکاتبه درلوده.

په داستانونو کې د یوه له منځ نه په تحریري بڼه ماخذ په ماخذ او بالاخره د سیفي هروي په ذریعه تر موږ رارسېدلی دی، چې د هري (هرات) په سیمه کې د ښار جوړونې په اړه د سکندر له خپلې مور سره مکاتبه ده.

که چېرې دا واقعي تاریخ د تعبیرونو په قالب کې ونیسو، نو باید ووایو، چې سکندر دمخه تر دې، چې په هرات کې د ښار په جوړونه پیل وکړي له خپلې مور سره یې مکاتبه او مشوره کړې ده.

د دې داستان له مخې، چې سکندر د هري رود سیمې ته ورسېد او وې غوښتل چې د ستړې کلا جوړول پیل کړي، د سیمې له خلکو نه یې مشوره وغوښتله، مګر خلکو د دې پخوانۍ کلا د جوړولو مشوره ورنه کړه، سکندر دغلته پوره دوه کاله زړه نا زړه پاتې شو تر هغې وروسته یې مور د هغه د حال پوښتنه وکړه، بالاخره یې خپلې مور (ملکه اولمپیاس) ته ولیکل. چې د دې سیمې خلك زما اطاعت نه کوي او د هغې ستړې کلا جوړول،

چې زه یې غواړم د جوړولو مشوره هم نه راکوي. دسکندر مور له خپل زوی نه هیله څرګنده کړه، ترڅو د دې ښار د مختلفو ځایونو او کوڅوڅخه یوه اندازه خاوره وروا ستوي،چې دهغې له رنګ، بوی او خوند څخه د څه کیفیت تر معلوملو وروسته یوتدبیرونیسي.

سکندر یوګډی خاوره په څو غوټو کې خپلې مورته واستوله د دغه غوټو خاورې په مختلفه بڼه وې، یوه پسته خاوره یوه کلکه بلنه سپینه او څلورمه تړوره وه.

ملکه اولمپیاس د هري رود د سیمې د بېلا بېلو برخو خاوره په خپل دربار کې د فرش د لاندې خوره کړه او وروسته له هغې یې د یونان مشران او استازي راوبلل او دسکندرد انتظار مطابق یې په هري رود کې دسکندرله خوا د نوې سترې کلا د جوړولو مصلحت تري وغوښت د یونان مشرانو له سوچ او فکرکولو وروسته مخالفه رایه ورکړه او ویې ویل، چې د هري رود سیمه د یرغل پر لاره واقع ده او هلته د لویې کلا جوړول زموږ مصلحت نه دی..

کله چې مشران رخصت شول، ملکې هغه خاوره ټوله کړه او په بله ورځ یې بیا د قوم استازي راوغوښتل د خپلې پوښتنې او دسکندرد انتظارپوښتنه یې مطرح کړه. داپلاټولومشرانودبلې ورځې په خلاف په یوه خوله دهري رودپه سیمه کې دسترې کلا په آبادولو کې موافق وو او په دې کې یې خپله ګټه اومصلحت لیده.

ملکه اولمپیاس سمدلاسه پوهه شوه، چې د هري رود په خاوره کې کوم تاثیر شته، نو خپل زوی ته یې ولیکل، چې په هغه خاوره کې، چې تاسو یاست ډېر عجیبه تاثیر دی، چې د هغه ځای خلک یې هر یو د رایې مخالف او بې اتفاقه کړي دي، له هغوی نه مشوره مه غواړه او سمدلاسه د سترې کلا په هکله، چې په پام کې یې لرې اقدام وکړه وروسته له هغې، چې سکندرځنګه غوښتل د کلا په جوړولو یې پیل وکړ او لکه څنګه چې پوهېږو د افغانستان په خاوره کې یې لومړۍ لویه، ستره او مظبوطه کلا د هري رود په سیمه کې جوړه کړه، چې په یوناني ماخذونو کې د (سکندریه

هریوس) او یا د (سکندریه هریون) په نامه شهرت لري او کولای شو، چې هغې ته د هري رود سیمې سکندریه ووایو.

دا ستره متسحکمه کلا د یو شمېر یونانیانو مرکز او استوګنځی شو او څه موده دسکندرد نظامي سلاکار ((اناکزیپوس)) استوګنځی هم و، تر هغه وخته، چې سکندر د فراه رود پر لور لاړ او دا سلاکار د هرات د خلکو له خوا ووژل شو او دا ثابته شوه، چې د دې خاورې تاثیر لکه، چې نمونه یې یونان ته استول شوي وه، د هري رود اوسېدونکي په خپله خاوره کې د پردیو په پاتې کېدو او اوسېدنه راضي نه وو اوپه بیا بیا پاڅونونو له دښمن سره جنګېدل.

لکه څنګه چې ما وویل دا داستان پرته د ماخذونو له متونو څخه د افغانستان د اوسېدونکو په خاطرو کې ثبت دی او خوله په خوله یې نقل کوي.

لکه څنګه چې مې ۱۸-۱۹ کاله دمخه هغه د لومړي ځل لپاره واورېده د هغې په اساس مې یو تاریخي ډرام د (مردان پاروپامیزاد) په نامه ولیکه. دغه داستان پرته له دې، چې د سکندرپه مقابل کې یې د ملي مقاومت انعکاس او دسکندرپه ځوانو عسکرو د غرونو په لمنو کې څه تېر شوي و، لیا لسي څه چې زمونږ غورونو ته یې هم رارسوي.

هغه مخالفت او ممانعت، چې د هري رود پخوانیو اوسېدونکیو دسکندرپه مقابل کې د نوې سترې کلا د جوړولو په اړه کاوه رښتیني وګنئ او له بله پلوه د تاریخ په لحاظ دا هم څرګنده ده، چې سکندرمقدوني لرغوني، ستره او مظبوطه کلا په هري رود کې جوړه کړه.

۱۶/۱۱/۱۳۳۸

# سکندري سار یا سکندري کلا

د سکندر مقدوني شخصیت په افغانستان کې دومره شهرت لري، چې لوستونکي او نالوستي ټول هغه پېژني او یا یې لږ تر لږه د هغه نوم اورېدلی دی، دا د حېرانتیا ځای نه دی، چې سکندر مقدوني د هري یا هرات پر سیمه د حملې او یا تېرېدنې پر وخت تر اراکوزي (الرخج، رخد، کندهار) اکسوس (امو سیند) او اندوس (اباسین، سیند) پورې د دې سیمې د خلکو د شدید مقاومت له امله په مختلفو برخو کې کلاګانې جوړې کړې چې د هغو کلاګانو ځایونه د حوزو په نوموړو سیندونو کې چې په تاریخي ماخذونو کې یې یادونه شوې او د ځینو ځای او موقعیت هم تر یو حده د لرغون پېژندونکیو له خوا ټاکل شوی دی او ځینې نورې خاطرې یې د خلکو په حافظو کې پاتې دي.

د کوم حصار یا کلا په باره کې، چې دلته بحث کوو نظر ماخذونو او تاریخي کتابونو ته د خلکو پر ژبو ډېر شهرت لري او که تر دې یې څرګنده ووایو په هېڅ یو ماخذ او کتاب کې د دې سترې کلا یادونه شوې نه ده، مګر د سیمې اوسېدونکیو د هغې لپاره نوم ټاکلی دی او له سکندر سره یې د ارتباط په مناسبت په اولسي ژبه کې یې (سار سکندري) بولي.

دا ستره کلا او یا یې خرابې او پاتې شونې د پخوانی کاپیسا په سیمه (په اوسني کوهدامن کې) خواجي سرای ته نژدې موجوده ده که چېرته پخوانی د پښو لارې په نظر کې ونیسو، نو ویلی شو، چې دا کلا د کابل او خواجي سرای ترمنځ واقع وه او البته د کلا خرابه له سراي خواجي سره ډېر نزدېوالي لري او د جنوب ختیځ پلو ته د (۲) کیلو متروپه واټن واقع ده، کوم کسان، چې د دې زړې کلا د کنډوالو لیدلو سره علاقه لري، نو باید د تلو راتلو په لاره بلد وي او دا لنډ معلومات سیلانیانو او جهان ګرځندو ته هم ګټور دي. د سکندري کلا لاره همدغه د کابل شمالي پلو ته موجوده لاره ده. له کابل نه نژدې ۲۵ کیلومتره وروسته د ختیځ پلو ته د انګورو باغونه، زراعتي ځمکې او یو لړ غونډۍ تر سترګو کېږي.

دغه ځای کې باید موټر ودرول شي او په پښو د باغونو په کوڅو کې د خاورو غونډۍ پلو ته متوجه شي او د سیمې له خلکو پوښتنه کول که په هره نقطه کې حاضر وي یوه حتمي خبره ده. دلته د باغونو په منځ کې کوڅې، هوارې زراعتي ځمکې او د انګورو باغونه کوز څرګندېږي او په پورته خوا کې نږېدلې کنډوالې له ورایه ښکاري تر هغې، چې لویه ویاله یا وړوکی خوړ رارسېږي او د دې خوړ په هغه خوا کې له تیږو او خاورو جوړې غونډۍ د پاسه د لویې کلا کنډوالې څرګندېږي. د هغې سیمې د نږدې کلیو خلك دغه د خاورو ډېرۍ ته، چې شواهد او اثار یې په دننه کلا کې څرګندېږي معمولاً (سار سکندري) وایي او دا له احتمال نه بهر نه ده، چې د سار د کلمې نه یې مقصد (سار) (حصار) (شار) او یا (شهر) وي داسې لوستوال خلك هم شته، چې دې کنډوالو ته (حصار سکندري) وایي او که چېرته د ستراتیژیکې او (سوق الحبشی) له نقطې نظره وکتل شي، نو په قطعې توګه ویلی شو، چې دا کنډوالې د پخوانیو او کلکو کلاګانو پاتې شوني دي.

همدغه ویاله یا خوړ چې د مخه مو یادونه وکړه د کلا لویدیځ او شمال پلو ته یې یو ډول طبیعي خندکونه جوړ کړي، د دې کلا ډېرې برخې ګودال او شنېدلي دي چې نښې نښانې یې موجودې دي، نو په همدغه ترتیب نومورې کلا د شنېدلو دېوالونو د اوښو لارې او په چارچاپېره کې طبیعي خندق او لاره ده او خپله کلا د یوې موړې د پاسه، چې دا موړه د ډبرو او خاورو لرونکي ده، پرته ده.

د کلا چاپېره یو ډېر بردار (سورور) دېوال له مستحکمو برجونو سره موجود و او نن یې وران شوو دېوالونو د ماهي د شا په څېر بڼه غوره کړې ده. احتمال لري، چې دې کلا څلور دروازې درلودې ختیز او جنوبي برخو د دروازو موقعیت بڼه تشخیص کېدلای شي او پرته له شك نه ویلی شو، چې د دې کلا عمومي ستره دروازه جنوبي پلو ته ده. له دروازې نه، چې کومه لاره دننه تللې وه له لنډ شان دوزې وروسته یو برج ته ورغلې وه، چې دا د کلا مرکزي او لوړه برخه وه.

د سار سکندري په کنډوالو کې تراوسه کومه علمي پلټنه نه ده شوې او د هغې سیمې د لنډو کلیو خلك د دې کلا خاورې خپلو زراعتي ځمکو ته د سرې په ډول وړي. د دې خاورو د وړلو په وجه په ډېرو ځایونو کې په دهلېزونو کې څرګندې شوې خښتې، چې د دېوالونو په جوړولو کې ترې کار اخیستل شوی ډېرې غټې، غټې او خامې دي، د اندازې او لوېوالي له مخې د بګرام له خښتو سره هېڅ توپیر نه لري. لکه څنګه چې پوهېږو بګرام د دویمې مخزېږدي پېړۍ په نیمایي کې د یونانیانو پر وخت د لویو کوشانیانو په دوره کې جوړ شوی، چې له لومړۍ تر

دریمې مسیحې پېړۍ یې د خپل عروج دوره ترسره کړې، لکه څنګه چې یې د جوړولو استنباط له ق م نه کیږي، نو بیا (سارسکندري) د مقدوني سکندر له خوا جوړه شوې ده، نو باید چې هغه د پروان د سکندري ښار سره د یوې زمانې وګڼو.

دا کلا حتمي د کوشانیانو په دوره کې جوړه او آماده وه، چې د ابادۍ او جوړېدو د تحول تاریخ یې د کاپیسا بګرام له ښار سره په موازي ډول مطالعه کولی شو.

هغه مقالې، چې کابل راډیو ته مې لیکلي د هغو ابادیو په اړه دي، چې د کوهدامن کوهستان په سیمه کې دي، چې د هغو نسبت سکندر مقدوني او تر هغه وروستنیو یونانیانو ته کېږي، لکه د عبدالله برج ستره کلا او د پروان سکندري ښار، نو بیا داسې کوم دلیل نه لرو، چې (سار سکندري) دې په دې کتار کې ونه شمېرو.

وړاندې مو یادونه وکړه، چې تراوسه په دې کنډوالو کې کېندنې نه دي شوې، خو د خلکو له خوا د خاورو وړلو په وجه پخوانې شواهد لکه مسکوکات، نګینې، مرۍ او نور چې د یونانیانو او کوشانیانو په دورو اړه لري، موندل شوي دي، د دې دورې د مسکوکاتو شهادت د نوموړو دورو لپاره د دې تاریخي کنډوالو د ارتباط ښه نښه ده او د تاریخي سنجش او موازنې له مخې په اسانۍ سره سمون او مطابقت لري.

د بهرنیو پوهانو له ډلې څخه هغه چا، چې دلته لنډه شان مطالعه کړې ده مشهور فرانسوي ختیځ پېژندونکی مویو ګیرشمن دي، چې د دویمې نړېوالې جګړې پر کلونو په افغانستان کې د فرانسې د لرغون پېژندنې د پلاوي مدیر و او په اتفاق سره مو یو ځای د صدق آباد، ریزه کوهستان او د سار سکندري کنډوالو دپاتې شونیو څخه لیدنه ترسره کړه. نوموړی فرانسوي پوه دې ته متمایل و، چې دا کنډوالې د ((اورتسپانا)) د ښار پاتې شونې و بولي، چې معمولاً د هغې موقعیت د کابل سیمه ګڼي. بل فرانسوي ختیځ پېژندونکي موسیو فوشه د اورتسپانا د ښار موقعیت د بودايي کابل مربوط د چکرې او خورد کابل سیمه یادوي په هر حال دا ځانګړی بحث دی، چې د هغې شرح دلته نه شي کېدای او د سار سکندري د کنډوالو کیندنې د دې لنډې مقالې هدف یوازې د دې کنډوالو نوم، نښې او موقعیت پېژندل دي، چې له کابل نه د شمال په لور د ۲۵ کیلو مترو پر واټن پروت او ترڅنګ یې نن یو لوی او له خلکو ډک کلی (خواجه سرای) پروت دی.

۱۳۴۱/۵/۷

# ایوتیدم باختري یوناني پاچا

په باختر کې د یونان له لویو پاچاهانو څخه یو هم ((ایوتیدموس)) دی، چې هغه په ساده ژبه (اوتیدم) لوستلی شو. هغه نه یوازې په باختر کې د یونان د خپلواکې شاهي کورنۍ غړی و، لاچې بنسټګر او د سرکښ هم و، چې وروسته د (دیودوت) له کورنۍ څخه په باختر کې د یونان سلطنتي کورنۍ د هغه په نامه شهرت لري.

یوتیدم پر ۲۷۰ م زکال د بلخ د سلطنت په تخت کېناست او تر ۲۳۰ م زکال پورې یې نژدې څلوېښت کاله سلطنت کړی دی. لکه چې ټول پوهېږو، چا چې په باختر کې د یونانیانو مستقل سلطنت اعلان کړ هغه (دیودوت) و، مګر د هغه د تړواك لاندې سیمې ډېره برخه د هندوکش شمالي برخه وه یا وواېو، چې په باختر کې محدود پاتې شو او زوی یې دویم (دیودوت) هم له همغه ټاکلو پولو نه دباندې ونه وتلی شو، د پلار د واکمنۍ په حدوداتو کې پاتې شو تر هغې پورې، چې (ایوتیدم) ته وار ورسېد.

تر کومه چې تاریخي پېښې راښیي اصلا ایوتیدم د دویم دیودوت تر وژلو وروسته تاج او تخت ترلاسه کړی. لکه څنګه چې پردغه وخت یوناني شاهي دولت د (سلوسي) کورنۍ سره د باختر د نوتشکیله یوناني دولت سره سیالي او د ښمنې درلوده د یو شمېرنظریو له مخې دویم دیودوت دیو شمېر یوناني تحریکاتو له مخې د یوتیدم په لاس ووژل شو.

د باختر د يوناني پاچاهانو په ډله کې ايوتيدم پياوړی مقام لرونکی دی، ځکه چې هغه په سياست، واکمنۍ، فتوحاتو، نوې ابادۍ او همداراز د هغې دورې د تجارت په پراختيا او روابطو کې تر ډېرو واکمنو پورته ګڼل شوی. کله چې يوتيدم په بلخ کې واکمنۍ ته ورسېد، دوو مهمو مسئلو د هغه پاملرنه ځانته واړوله. يو د بلخ د سترې کلا ټينګښت او په هېواد کې د ابادۍ پراخوالی او بل د هندوکش دواړو خواوو ته د جغرافيايي واحد له نظره د ايالتونو، ولايتونو او سيمو ترمنځ اړوندي اوتړاو و.

استرابون يونانی جغرافيه ليکونکی، چې تقريبا د باختري يوناني پاچا (ايوتيدم) هممهالی و، بلخ يې د (اريانا مرغلرې) په صفت ياد کړی او د اريانا حدود يې د يو ستر هېواد په حېث ياد کړي د (اريانا د مرغلرې) صنعت او د (هزار قلعه) اصطلاح، چې دا زمان د باختر په باره کې ويل شوي، څرګندوي چې ايوتيدم د خپلې واکمنۍ په اوږده دوره کې د هېواد په مرکز او ولاياتو کې ډېر اوږده او تلپاتي کارونه کړي دي.

ايوتيدم د سلطنت پر تخت له کېناستو سره سم له يو يا دوه خطرونو سره مخامخ و له يوې خوا دلويديځ له پلوه د سلوسي يوناني شامي دولت په ځانګړې توګه د هغوی پاچا انتوکوش غوښتل، چې د هغه خپلواکي تر پښو لاندې کړي او له بله پلوه د هندوکش جنوب ته هندي (موريايي) دولت تېری کړی و او د ارغنداو د سيمې ترڅنګ نژدې برخې يې نيولې وې. دا وخت د باختر او شام ترمنځ جګړه وشوه انتيوکوش يوناني شامي د باختر پر لور لښکر وخوځاوه، د ده او د باختر يوناني پاچا ترمنځ لومړی شخړې د هري رود په سيمه او بيا يې د بلخ د لويې کلا په چاپېريال کې صورت ونيو او تقريبا دوه کاله د بلخ يوناني پاچا په محاصره کې پاتې شو بالاخره د باختر د خپلواکۍ د پېژندنې او د تېري کونکيو د پر شا تللو په اړ صلح منځ ته راغله.

وروسته تر دې انتيوکوش د هندوکش له درو څخه کابل ته ستون شو او د جنوب او لويديځ له لارو يې خپلې منطقې ته مراجعه وکړه. کابل ولايت او ارکوزي

(کندهار) څخه د تېرېدلو پر وخت یې د هندي موریایي څواکونه او د هغوی وروستی واکمن (سوناگازنس) شاته کړ او دا ځایونه یې تخلیه کړل. په نتیجه کې لکه څنګه، چې دا ختیز او لویدیز یرغلګر پر وړاندې تللو بریالي شوي وو، خپلو متقابلو خاورو ته راستانه شول او د باختري سلطنت خپلواکي یې ومنله او "ایوتیدم" چې ډېر وخت په لاتجه کې پرېوتی و له بلخ نه د هندوکش په دواړولویو سیمو باندې د یو مستقل واکمن پاچا په توګه وپېژندل شو او د (اریانا) ټول ایالتونه او ولایتونه یې په ځان راټول کړل په بله وینا د هېواد د خاورې وحدت یې عملي کړ او حتی د یادې شوې خاورې له قلمرو څخه د باندې که هغه شمال شرق پلو ته له پام نه هاخوا د سنګیانګ په لور وه او که هغه شمال غرب پلوته په پارتیا (د کشف رود او اترک حوزه) وه او که هغه لمر خاته پلو ته د اباسین په غاړه کې و، پر فتحو بریالی شو. یو له نویو کارونو څخه یې د هېواد په دننه کې د امارتونو تشکیل و، چې دوه یې د (پاروپامیزوس) او (اراکوزي) د امارت په نامه یادېدل لومړی امارت د (مارکوس) (مرغاب) د حوزې له نژدې نه چې هري رود هم وریکې شامل و او دویم امارت په جنوب لودیځ کې د ارغنداب حوزې ته نژدې په ډېرو برخو محدود و.

د ایوتیدم سکې د ده د اوږدې څلوېښت کلنې واکمنۍ او د پراخو لاس لاندې سیمو د سلطنت په وجه څو ډوله او ډېرې دي، چې د هغوله جملې څخه یې دوه ډوله ډېرې مشهورې دي، یوه یې ګرده نقره یې سکه ده، چې یو پلو ته یې له فولادي خولۍ سره دپاچا تصویر دی او بل پلو ته یې د (هرکول) مجسمه ده، چې په یوه لویه هواره تیګه ناست څرګندېږي. دویمه ګرده طلا یي سکه ده، چې په یو مخ یې د هر کول نیم ښي خوا ته مخ ښکاري او په بل مخ کې یې اس په ځغاسته دی او په هغې کې یې (بازیلوس ایوتیدموس) یعنې (ایوتیدم پاچا) لیکلي دي.

۲۰/۱/۱۳۳۸

# د کاپیسې ـ بګرام د ښار په پلان کې

# د یوناني او محلي ښار جوړونې بنسټونه

د تاریخ د متنونوپه شهادت ویلی شو، چې د کوهستان او کوهدامن په حوزه کې مو د کاپیسې په نامه لرغونی ښار درلود، چې په ۵-۶ پېړۍ کې د سیروس او ایراني هخامنشي داریوش له خوا اباد شوی و. د دې لرغوني ښار موقعیت په ځرګند ډول معلوم نه دی، خو په دې کې شك نه شته، چې په بګرام کې به د برج عبدالله ترځنګ واقع و، خو د پېړیو په تېرېدلو اوپه وروستیو دورو کې د نوو اباديو په جوړولو او هغه سیمه په زراعتي ځمکو له بدلون سره د هغه ښار اثار پاتې نه دي، نو موږ د بګرام په خرابیو کې دوه ساحې په مشخصه توګه لیدلی شو او تقرّیبا دواړه سره نښتي دي، چې زموږ د ورځنیو اصطلاحاتو له مخې یوه یې د ((برج عبدالله)) او بله یې د((بګرام)) په نامه ګڼلی شو، چې هغه دواړه دوه پېړۍ یا تر دې هم ډېر دمخه تر میلاده د یونانیانو له خوا جوړې شوې دي.

امکان لري، چې په برج عبدالله کې د دې سترې او کلکې کلا بنسټ پخپله سکندر ایښی وي او که داسې نه وي، نو باختري یونیانو به د هغه د امر په سر ته رسولو کې اقدام کړی وي، مګر د بګرام په باره کې د لرغون پېژندونکو د ښتینې کتنې نه ځرګنده شوې ده، چې دا ښار دوه پېړۍ دمخه تر میلاده د یونانیانو په لاس جوړ شوی دی.

د ښار جوړونې له نظره د بګرام د کنډوالو مطالعه ډېره پر زړه پورې ده او دا کار له کیندلو پرته ممکن نه و، خو له نېکه مرغه کله، چې په دویمه نړیواله جګړه کې د موسیو ګیرشمن فرانسوي له خوا کیندنې وشوې، داسې نتیجې لاس ته راغلې، چې د هغې په رڼا کې د بګرام د ښار پلان او تدافعي سیستم یې ځرګند شو او معلومه شوه، چې د ښار پلان د یونان د کلاسیکو ښارونو پر اساس وضع شوی او په دفاعي سیستم کې یې له محلي اساساتو نه کار اخیستل شوی دی.

نوموړی فرانسوي پوه د مطالعاتو له مخې د کاپیسې ښار د عمومي جوړښت له نظره د یوناني ښارونو په اصولو د (هیپودام) په شکل یعنې په مربع ډول جوړ

شوی و، چې یوې جادې یې له یوې ضلع نه تر بلې ضلع پورې امتداد درلود او د ښار عمده ځایونه د جادې دواړو خواوو ته جوړ شوي وو په همدې ترتیب د ښاري پلان له نظره د کاپیسې - بګرام ښار د یوناني ښار (دورا - اوروپس) له ښار سره یې کامل ورته والی درلود، چې پاتې شونې یې په امریکا کې د (یال) د پوهنتون پوهانو په لویدیزه اسیا کې کشف کړي وو.

د یوناني ښار جوړونې پر اساس د بګرام او دیورا ښارونه ډېر ورته والي لري، چې موسیو ګیرشمن یو شمېر ورته والی داسې بیانوي: په دواړو یادوو شوو ښارونو کې هغه دېوال، چې د جلګې په لور واقع دی مظبوط والي ته یې ډېر ارزښت ورکړی شوي دی په دواړو ښارونو کې هغه لارې، چې دسیند پلو ته وتلې دي، په سیند حاکمې دي، په دواړو ښارونو کې عمومي دروازې جنوبي خوا ته د جلګې پلو ته ویستل شوي دي او د ښار اساسي جاده له همغې دروازې نه پیل شوی او پای یې سیند ته رسیږي.

په دې کې شك نه شته، چې د دې دواړو ښارونو ډېر ورته والی د دې سیمې د اراضي د ورته والي پر اساس منځ ته راغلی، مګر د موسیو ګیرشمن په نظر د دې دواړو ښارونو جوړونکیو د یوناني ښار جوړونې له اصولو څخه خبر وو او د دواړو ښارونو جوړونه یې د یوناني ښارونو په موازنه ترسره کړې ده. لکه څنګه چې دا نظر د (یورا) په ښار کې ثابت دی، نو هېڅ بل دلیل نه شته، چې د کاپیسا - بګرام په اړه رصالت ونه لري. البته د دې یادونې حاجت نه شته، چې د بګرام د ښار په تدافعي اصولو کې د ایراني نظریاتو، چې محلي بڼه یې خپله کړې وه کار اخیستل شوی، چې د هغو اثر په یوناني ښارونو کې نه شته.

د (کاپیسا - بګرام) دښارجنوبي پلوته لویه ضلع او ورسره نژدې برخو او مخصوصا هغه لوی برجونه چې دښار په کنجونو کې وضع شوي دسیمه ایزې تدافعي مفکورې استازیتوب کوي چې سوابق یې په اردواو دهماغې زمانې په غربي نړۍ کې نه لیدل کیږي. تومورې فرانسوي لرغون پیژندونکی دخپلو پورتنیو نظریاتو دثبوت له پاره دلوستونکي پاملرنه دخوارزم یعني هغې سیمې ته اړوي چې دامو سیند دښي خوا ښکتنیو غاړو کې پراخه سیمه ده چې یوه موده دیوناني پلوو باختري واکمنو په لاس کې وه. پدې کې شك نشته چې پروفیسر تولستف روسي لرغون پیژندونکی چې ذافغانستان او شوروي د دوستۍ دټولنې مشر و خوارزم کې یې یو لړ پراخې کیندنې او څېړنې ترسره کړېدي لکه څنګه چې مې وویل دخوارزم ځمکه دامو سیند دکوزنۍ برخې پره لاره په دواړو خواوو لکه چې یې پورته یادونه وشوه پرته ده، لکه چې دوخت په تیریدلو بادونو شګه وړاندې راوړې اکثرا پخواني ښارونه یې پټ کړېدي او دښارونو خرابې چې هرڅومره دامو سیند تر لارو لرې پرتې دي زړې اوچې هرڅومره ورته نژدې پرتې دي نوې ښکاري.

دامفکوره لرغون پیژندونکیو داسې څرګنده کړې چې په درې لومړنیو مخزېږدیو پیړیو کې جوړ شوي دیوالونه برجونه نلري او تیرکشونه ډیر نژدې په خپله دیوال کې کښل شویدي چې(جانبازکلا) یې ډیره ښه بیلګه ده. لږ وروسته خو په همدې دوره کې په داسې حال کې چې دیوالونه تیرکش لري او ټول مربع شکله برجونه له ۱۸ نه تر ۲۶ مترو پورې څرګندیږي اوپرته له مربع او مستطیل ډولو کلاګانو څخه دګردوکلاګانو جوړول هم پیدا شوي. د دیوال په امتداد کې دبرجونو فاصلې دخوارزم دکلاګانو اوبګرا ترمنځ ورته والی پیدا کړی دی.

دبګرام ښار دستري کلا دبرجونو اودیوالونو اثار دموسیو ګیرشمن دکیندلو په وجه څرګند شو. دښاردلویې کلا اوږدوالی(۴۰۰) متره او عرض یې د (۴۵۰) مترو په شاوخوا کې و. دښار دستري کلا دپنډو دیوالونو اثار په درې خواوو ختیځ،لویدیځ او سویل کې معلومیدل او دبرجونو بنیادونه وروسته ترکوششونو څرګند شول. دښار شمالي پلوته یوڅوخوړونه دپنجشیر درودخانې پر لور متمایل وو. چې خامخا یې هغې خوا ته هم لاره درلوده چې اوس یې هورې د زراعتي ځمکې ښه خپله کړې دښاردیوال په خپل اوږدوالي او سورکې وتلي ننوتي ځایونه درلودل چې دعسکرو دځای پر ځای کولو له پاره یې ښارته استحکام ورکاوه، دښار جنوب غربي کنج ډیر کلك و څکه هلته دستر برج پاتې شونې موندل شوې دي چې یواځې غربي خواته دیوال ۵۰ متره اوږدوالی لري حال دا چې دشمال کنج برج په څوځله وړوکی و او فقط ۱۶/۶ متره اوږدوالی او ۸/۹۰ متره سور یې درلود.

دښار ستره دروازه چې دداخلیدلو اساسي لاره وه دجنوبي دیوال په منځ کې دکوهدامن دجلګې پر لور کښل شوې وه. له دغې لارې څخه دښار په منځ کې یوه کوڅه تیره شوې وه او دجنوبي ضلع لورته د رودخانې پر غاړه .دبرج عبدالله ترڅنګ ختمه شوې وه اوله همدغه ځایه دښار اوسیدونکیو اوبه اخستې

نو لکه څنګه چې په تاریخي نظریاتو دلرغون پیژندوونکیو پر خیړنو، دلویدیزې اسیا له پخوانیو کلاګانو اوښارونو او خوارزم سره یې شرح اودمقایسې یادونه وشوه دکاپیسا- بګرام ښار دډیر توافق لرلو پر وجه چې له یوناني ښارونو سره یې لري دهغې استحکام زموږ په محلي مفکورو اومنطق باندې استوار و.

دانقطه ډیر ارزښت لري چې دیوناني ښار جوړونې ته قانوني نظر کولی شي چې دبګرام په پلان کې یې مطالعه کړو. پدې چې لویو کوشانیانو دیونانیانو ځای ونیو خو په اصل کې دښار په پلان کې یې کوم ډیر بدلون رانه وست او ټول پخوانې جوړشوي اساسي خطونه پاتې شول چې لرغون پیژندونکي هم همدغه نظریه تائیدوي

۱۳۳۸/۲/۱۲

# پروان یاجبل السراج کې

# دقفقاز سکندریه

دمقدوني سکندر له عادتونوڅخه یو د ختیځ پر لور فتح شویو ځایونو کې دمستحکمو کلاګانو اوښارونو جوړول و چې دده په خپل نوم (سکندریه) باندې شهرت لري، لکه په مصر کې چې (سکندریه) له ۲۳۰۰ کلونو را په دیخوا په همدغه نوم موجود ده.

البته ددغو کلکو ښارونو او کلاګانوپه جوړولوکې داسیا دمختلفو نقطو اوافریقائی جنګیالیو اووسله لرونکیو خلکو دمقاومت روح ډیر دخالت لري، څکه چې سکندر ځای پر ځای داودانۍ دخپلو عسکرو داستوګنې له پاره دمجبوریت او اړتیا له مخې جوړې کړې نه دشوق او ښکلا لپاره.

سکندر دافغانستان دخاورې په مختلفو برخوکې دخپل تګ لورى له شمال لویدیز برخو یعنې له اوسني هرات څخه دسند رودترغاړو پورې ځوکلکې کلکې کلاګانې جوړې کړې چې دتاریخ دپاڼو په شهادت دهرات، فراه او کندهار له سکندریو نه پوره اطلاعات په لاس لرو، یوله همدغو کلاګانو یا سکندریونه همدغه د (قفقازسکندریه) ده چې دهغې محل یا موقعیت دپوهانو دڅیړنو په

رڼاکې دپخوانی پروان یا په جبل السراج کې دسالنګ ددرې خولې ته نژدې سیمه ټاکلې شو.

ولې مؤرخینو او یونانې جغرافیه لیکونکیو دامستحکمه کلا د(سکندریه قفقاز) په نامه یاده کړې ؟ په دې کې شك نشته چې دقفقاز دغرونو لړۍ. دترکیې په شمال ختیځ، دایران آذربایجان او دشوروي آذربایجان په سرحداتوکې پرتې او دیونان خاورو ته نسبتاً نژدې وې او یونانیانو هغه ښې پیژاندې.

کله چې ئې سترګې دهندوکش پرواورینه لوړه څوکه ولویدې نو دورته والې په وجه یې قفقاز وباله او تصور ئې کاوه چې دغرونو دغه لړۍ چې داسیا په زړه کې پرته ده دشرق نهائی حدودات دي او ددې لپاره چې دسکندر فتوحات یو خارق العاده پرمختګ وښیي فکر یې کاوه چې ددنیا پاي ته رسیدلی‌او په حقیقت کې دسند رود اود رود ترصدختیزې علاقې ددنیا د ختیځ پای ښکاریده.

او دپروان کلکه کلا (سکندر) تر اوسه زمونږ په منځ کې معموله او مشهوره ده، دپروان نوم زمونږ په لرغوني ادب کې د (پروانتا) دیو غرني نامه پر بنه په (اوېستا) کې یاد شوی دی چې همیشه سوړ باد چې دسالنګ له واورینو غرونو څخه راپورته کیږي لري او د(پروان باد) باندې مشهور دی، تر دې پورې چې امیر حبیب الله خان ۲۳۰۰ کاله دسکندر تر آبادۍ وروسته په هماغه ځای کې دیو ستر ارګ جوړول پیل کړل. که چیرته اولسی داستانونوته پاملرنه وشي داسې بریښي چې دسکندر له یرغل او دهخامنشیانو له بریو دمخه مو په (پروان) او (بګرام) کې مستحکمې کلاګانې درلودې چې دغوربند ، شتل، پنجشیر اوسالنګ سیندونو له اوبو څخه جوړ ډك سیند ددواړو کلاګانو په منځ کې تیریده .

په اولسي داستانونو کې داسې نقل شوي چې په یو وخت کې دوه پاچاهانو چې یو (مروان) او بل (پروان) نومید چې یو دبګرام او بل دپروان واکمن و د دواړو کلاګانو ترمنځ یې درودخانې دپاسه یوځنځیر غځولی او ددواړو کلاګانو په برجونو پورې تړلی شوی و چې دواړه برجونه په خپلو کې سره وصل شوي وو.

دواړو واکمنو په خپلو کې سره ویلي وُ چې کله ددښمن له خوا یوه ته خطر متوجې شي سم له لاسه به دځنځیر په خوځولو بل ته خبر ورکوي او دواړه به په ګډه دښمن له منځه وړي.

وایې چې له دې دواړونه یو تن دبې احتیاطۍ په وجه څو ځله بل ته دخطر خبر دځنځیر په واسطه ورکړ، کله چې به دویم ګړی سره له لښکر مرستې ته ورسید وبه یې کتل چې دښمن نشته او دوي پرې مسخرې کړیدي، کوم ځل چې په رښتیا

دښمن په کلا یرغل کړی و او دوي هر څومره دځنځیر په واسطه خبر ورکړ مرستې ته ونه رسیدل، ځکه چې بیا هم پرې دمسخرې شك شوی و، او په نتیجه کې کلا سقوط وکړ. داویلی نشو چې دابې احتیاطي دچا له خوا شوې وه خو نتیجه داشوه چې بګرام او پروان دواړو سقوط وکړ. کـه چیرتـه داداستان د سکندر دزمانې له یرغل او بریو سره تطبیق کړو نو ویلای شو چې لومړی بګرام او بیا پروان سقوط کړی دی.

سکندر د ۳۲۸ مخزیږدي کال دمنی پر موسم بګرام ته ورسید او دپنجشیر درود پر غاړه په اوسنی (برج عبدالله) کې پاتې شو او بیا له رودخانې نه هغه پلو ته په پروان کې دهندوکش دلوړ غره دپاي سیمه دسالنګ ددرې په خوله کې په ډیر تلوار دیوې مستحکمې کلاپه جوړولو پیل وکړ.

څرنګه چې سوړ ژمی او دهندوکش پر واورین غره داوښتلو امکان نه و نو دپروان دسکندر یې جوړولو له پاره ډیره هڅه او زیار ایستل پکار و. یوناني عسکرو اودکاپیسا ددرو خلکو په ګډه په دوه درې میاشتو کې کلا اودهغې برجونه اباد کړل او د سکندردخپلو یوناني عسکرو سره ژمی په همدغه کلا کې تیر کړ.

کله چې سکندر دراتلونکي کال پر پسرلي د((بسوس)) دمقابلې لپاره چې دپاچاهی اعلان یې کړی و دشمال پرخوا لاړ، یوشمېر عسکریې له دې ویرې چې دکاپیسا او کابل خلك کوم عکس العمل ښکاره نه کړي دپروان په سکندریه کې پریښودل.

دپروان دسکندریې داصلي ابادی کومه نښه نښانه پاتې نه ده، خو د ۱۹ پیړیو په اوږدو کې چې کومې سکه لرونکې پیسې هلته موندل شوي او اوس هم پیداکیږي څرګند وي چې دلته یو وخت دژوند کولو یومهم مرکزو.

۱۳۴۸/ ۸/۷

# په افغانستان کې یوناني میتولوژي

میتولوژي یوه یوناني ترکیبي کلمه ده چې په هغې کې (میت) او (الوزي). یعنې افسانه،داستان، د ډول ډول خدایانو کیسې او له هغوي سره معرفت او پېژندګلوي دزړې زمانې دقومونو کیسې دمعشوقواوودونو داستانونه، قهروغضب، دوستي اومخالفت دومره پراخ، زړه راښکونکي او رنګین دي چې دېخوانیو یونانیانو پرمختګ یې په هنر اومختلفوڅانګو لکه انځورګرۍ، پېګرۍ، موزیك او نوروکې همدوي ته مربوط او وابسته بولي، او وروسته دیونان له کلاسیکي دورې نه ددې میتولوژي یوناني داستانونو اغیزه داروپا په راپیداشوي هنر او ادبیاتوکې بې پدله نه ده.

یو له هغوموضوعاتو نه چې په ختیځ کې، د سکندر له برېدا او دافغانستان په سکندریو کې دیونانیانوترپایښت وروسته ددې دواړوپه روابطودیونان خاوره ددقت او کتنې وړ ده، په افغانستان کې همدغه دیوناني خدایانو دډولونو دکبسو انعکاس دی چې هغه هم دوه متقابلې جنبې لري، یودافغانستان داوسیدونکیو په منځ کې دیوناني میتولوژۍ،افسانوي،اسطوره ئي او داستاني خاطرو انعکاس دی او بل دیونانیانو په منځ کې دپهلوانانو او سبمه ایزې میتولوژۍ او ادب اړونوې اوودداستانونوتاثیر او انتشار دی، چې دلته یواځې دلومړۍ جنبې نه یعنې د افغانستان په غرنیو سیمو کې دیوناني خدایانو دډولونو له افسانوي اغیزې څخه لږ بحث کیږي هغه یونانیان چې د سکندر په وخت او یاوروسته له هغه نه دافغانستان په سکندریوکې ددې وطن استوګن شوي وو،د سکندر دامپراطورۍ او دیونانیانو په اسیائي اوافریقائي خاورو کې دسلطنتي تشکیلونو ترتجزیې اوړنګیدلو وروسته دهغوي رابطه دیونان له خلکو سره پرې شوه اوډیر شمېر یې دافغانستان په غرونو کې لکه دمحاصرې په ډول پاتې شول او ځمونږ دسیمو له اوسیدونکیو سره ورو ورو حل او یو ځای شول، دهمدغه یوځای والي په وجه

دهغوي عقايد او افکار په تدريج سره دهغوي دچاپيريال دخلکو په منځ کې ورداخل شول او کم کم ديوناني ميتولوژۍ کيسو ،دخدايانودډولونو نومونه او ديونان پخواني داستانونه زمونږ دسيمه ايزو کيسو سره يوځاى شوي.

يوناني صنعتګرانو، لکه مجسمه جوړونکيوانځورګرانو ددې داستانونو په رواجولو کې مهمه ونډه ترسره کړې او دباختر ديوناني پاچاهانو سکه لرونکې پيسې چې لاس په لاس ګرځيدلې ديوناني داستانونو او حماسو دخپريدلو له پاره ډيره ښه وسيله وه په همدې لحاظ د(باختري يوناني) شاهانو دواکمنۍ په مستقله دوره کې يعنې دمسيح له وخت نه دوه پيړۍ دمخه يوناني اسطورو زمونږ دهيواد دټولو اوسيدونکيو طبقو په منځ کې له وړاندې رواج موندلى و.

د لومړنۍ يوناني باختري سلطنتي کورنۍ بنسټګران ديودوت زوې او پلار وو چې په خپلو سکو کې به يې د (زوس) يعنې ديونانيانو دخدايانو دخداى سکه وهله او بيا هيلو کلس يوناني باختر پاچا چې دهندوکش په شمال کې پاچاهي کړې وروستى واکمن و، چې د (زوس) سکه يې په داسې حال کې چې په تخت ناست دى په خپلو سکو کې وهلې ده. همداراز ديوکراتيدس ديونان باختري سلطنتي کورنۍ دريم موسس بيا داپولون تصوير چې هغه يې دطوفان،طبابت، ادبياتو اوصنعت ځانګړې خداې باله دخپلو سکو پر مخ وهلى دى . او ديوناني، باختري دويمې شاهي کورنۍ غړو بياد (هرکول) تصوير ته په خپلو سکوکې ترجيح ورکړې.

لکه څنګه چې (هرکول) دپهلوانۍ او حماسي جنبه درلوده په افغانستان کې يې ډير محبوبيت ترلاسه کړى و، دهغه تصوير پرته له سکونه په بدخشان کې پريو نقره يي جام موندل شويدى ، چې اوس دلندن په برتش موزيم کې موجوددى او په دې جام کې له ديونيزوس سره چې دشرابو اوانګورو ځانګړى خداى ګڼل کيده يو ځاى ليدل کيږي. ديونيزوس هم په پخواني افغانستان کې حتى له سکندر نه دمخه شهرت درلود.

يوشمير په دې فکر او نظر دي چې يونيزوس اصلاً (ديونيسه) و يعنې د نيسته دښارځانګړى خداى او حامي و، چې ددې ښار موقعيت يو شمېرپه بګرام يوشمېر يې دلغمان په مندروړ او همدارنګه يو شمېر نور يې د هډې په سيمه کې ټاکي. ډيونيسته يا (ديونيزوس) دانګورو او شرابو ځانګړي خداې ددهقانانو او انګورتاک لرونکيو په منځ کې ډير شهرت پيداکړى و. اوترټولو ډير شهرت يې په کاپيسا او ننګرهار کې و، همدارنګه دباختراوبدخشان خلکو هم ښه پيژانده،ديو شمېر پوهانو له ډلې نه (مدام ترور) روسى په دې نظر دى چې کيداى شي په سيمه کې چې نوم

اونښان یې له مونږ څخه پټ دی داسې کوم ځانګړی خدای به و چې دیونان دشرابو له ځانګړي خدای سره به ډیر ورته و نو ځکه به یې دافغانستان په خاوره کې دډیر شهرت باعث ګرځیدلی وي. یو تن بل یوناني پاچا اګاتوکلس چې دهندوکش جنوب پلوته واکمن و هغه خپل ملاتړ بولي او خپل تصویر دیو داسې ځوان په بڼه چې دانګور تاك شنه تازه لښتیه دسر دپاسه د تاج په بڼه لري په خپلو سکو کې وهلې ده، پاتې دې نه وي چې دوه سوه کاله وروسته "پولونیوس دوتیان" دپاروپامیزاد یعنې دکابل په غرنۍ سیمه کې پریوغره د "دیونیزوس" عبادت ځای لیدلي او لکه څنګه چې یې تشریح کوي دعبادت ځای چارچاپیرونې ولاړې وې چې د اپخپله دیونیزوس کرلې وې، انګورتاك او پر ونو ختونکي بوټي پرې دپاسه ختلي وو، دونو ترڅانګو لاندې دهمدغه یادشوي ځانګړي خداي مجسمه یې له سپینې تیږې څخه دیو ځوان په بڼه جوړه کړې وه.

له دې کیسې نه څرګندیږي چې (دیونیزوس) دانګورو اوشرابو ځانګړي خدای دافغانستان دغرونو په لمنو کې (عبادت ځای) هم درلود او معمولا دخپل عبادت ځای چاپیر به یې انګور تاکونه کښینول او دځانګړي خدای مجسمه به یې هلته ایښودله، خودهغه ځای دموقعیت ټاکل مشکل کار دی چې پکې داعبادت ځای جوړ و. مګر له احتمال نه دباندې نه ده چې داځای به دکاپیسا او ننګرهار ترمنځ په هغو ځایونو کې چې هلته ډیر انګور لرو، په کوم ځاي کې و. باید هیر نکړو چې د (دیونیزوس) تصویر او مجسمه دواړه په بګرام کې دکیندلو پر وخت په لاس راغلې چې دیوښیښنه یې لوښې دپاسه دګداپه حال کې لیدل کیږي، او دهغه څېره دیوې ګښې ړیرې په لرلو په یوه فلزي پارچه کې هم په لاس راغلې ده.

لکه څنګه چې مو وړاندې ورته اشاره وکړه چې (هرکول) د (ژدپي تیر) زوی دیونان میتولوژي پهلوان په افغانستان کې ډیر محبوبیت درلود، وایي چې ددې قوي فوق العاده پهلوان په څېر یوبل پهلوان هم دافغانستان په غرونو کې مشهور و، تصور ونکړې چې دا پهلوان (رستم زابلی) دی چې دفردوسي له شهنامې سره یې شهرت ترلاسه کړی بلکه دلرغونو دورودحماسې پهلوانانو له ډلې څخه دی. لکه څنګه چې له یوناني کیسوڅخه راڅرګندیږي زمونږ هیوادته دهغوي دراتللو پر وخت یې ددې وطن په لوړو غرونوکې یو پهلوان له غشي اولندې سره په داسې حال کې لکه چې دغرونو دساتنې دنده ورسپارل شوي وي لیدلی و، چې دې پهلوان ددوي له هر کول سره ډیر ورته والی درلود.

۱۳۳۷\۶\۲۴

# په پخواني افغانستان کې

# دیوناني لیک دود رواج

سکندرمقدوني د (۳۳۱ - ۳۳۶) مخزېږدېو کلونو په اوږدوکې افغانستان له لویدیځه تراختیځه اوله شماله تر جنوبه دخپلو عسکرو په واسطه کچ کړ وروسته تر دې چې ددې وطن داوسیدونکیوله خوا له سختو مقاومتونو سره مخامخ او په ډیرو فتوحاتوبريالی شو.

سکندر مقدوني ددې بريو په جريان کې که هغه دسيمې دخلکو دمقاومت په وجه وْ او که دنظامي ارتياوو او غوښتنو په اثر وْ. اوکه دعسکرو دستړيا يانا روغتياپه وجه خو يو شمېر مستحکمې کلاګانې يې د(سکندريه) په نامه دهرې رود په حوزه، فراه رود، ارغنداو، دکابل رود، بلخ آب او نورو ځايونوکې جوړې کړې چې دتاريخ په پاڼو کې دسکندريه هرې، سکندريه پروفتازي، سکندريه اراکوزي، سکندريه قفقاز او دسکندريه اورنيس په نامه ثبت شوي. دپورتنيو کلاګانو له جملې نه يواځې ددوو کلاګانو ځاي اوموقعيت دکندهار په زاړه ښار او پروان کې تثبيت شوي دي. يونانيان په نسبتاً ډير شمېر په دې سکندريوکې پاتې او مېشت شول چې ديونان باختري حکومت له ۳۳۰ نه تر ۱۳۰ مخزېږدې پورې په دوه سوه کلنه دوره کې يې فرهنګ، معارف اويوناني هنر داموقع ومونده چې ديوناني باختري حکومت تراغيز لاندې دازادۍ په رڼاکې پرمختيا وکړي.

په دې دوه سوه کلنه دوره کې ديوناني ژبې دليکنې له پاره خامخا ديوناني الفباء توري کاريدل او پرته دده له وهل شويوسکو ځخه دمشهور (اشوکا) ډبر ليک چې دکندهار په چهل زينه کې کشف شوی په ښکاره څرګندوي چې ددريمې مخزېږدې پيړۍ په لومړيو کې يوناني ليک دود زمونږ په هيواد کې څرنګه رواج موندلی وْ.

په افغانستان کې ديوناني باختري پاچاهانو دواکمنۍ په دورو کې يوناني ليک دود خپور شو او وروسته له هغې په نورو پيړيو کې دلويو کوشانيانو او وړو کوشانيانو په دورو کې پاتې شو لکه څنګه چې يې ليک ساده او اسان و نوځکه يې ليک دافغانستان په محلي ژبو کې داستعمال وړ وګرځيد.

اصلا یوناني الفباپخپله په خپل ذات کي ۲۴ حرفه وه. خو دلویو کوشانیانو پر وخت دداسې یوې سیمه ایزې ژبې په صفت چې نوې باختري شوې وه دصوتي اړتیاله مخې یې د (ش) حرف دمخرج داداکولو له پاره په الفبا کې ورزیات کړ چې پردې اساس نوموړې الفبا د ۲۵ حروفو لرونکې شوه.

لکه څنګه چې ښاغلي لوستونکي او اوریدونکي خبر دي چې په دې وروستیو ۸ کلونو کې دسره کوتل په کیندلوکې یو شمېر دپام وړ ډبرلیکونه له یودیوال څخه لاس ته راغلي چې له تیږو او خښتو جوړ وو. یو له دې ډبرلیکونونه په یوه ستره تېږه کې حك شوی دی چې ۴۵ کرښې ورکې شاملې دي چې دادلوې ډبرلیك په نامه مشهور شوی، یوه بله مجموعه چې له ۵۳ ډبرینو پرچو څخه مرکبه ده له یوه کوهي نه په لاس راغلې چې په پخوانۍ دوره کې د عادي تېږو په حیث ترې دکوهي په دیوال کې کار اخستل شوی و.

دسږ کال په کیندلو کې څو بیلابیل ډبرلیکونه چې په دیولونو کې ځای په ځای نصب وو لاس ته راغلي او پرته له دغو څخه دسره کوتل دکشفولو پر وخت په جلا ډول څو دخښتو نورې ټوټې هم لاس ته راغلي دي دې ټولو ډبر لیکونو غربي پوهان دخه مودې لپاره په ځان مشغول کړي وو خو په پای کې فرانسوي پوه موسیو (بن ونیست) په دې بریالی شو چې ددغو ټولو ډبرلیکونو څخه په لاندې ډول څلور ډبر لیکونه وخیړي.

لومړی: هغه ستر ډبر لیك چې په یوه کاڼي لیکل شوی.

دویم : دهغه ۳۲ کاڼومجموعه ده چې له کوهي څخه ایستل شوی او یو ډول ډبر لیك تشکیلوي.

دریم : دهغو نورو ۲۱ کاڼو مجموعه ده چې هغه هم له کوهي څخه ویستل شوې
او یوبل ځانګړی ډبرلیك تشکیلوي.

څلورم : هغه خښتې چې په دیوال کې لګیدلي دهغو خښتو سره چې دکیندلو پر وخت په پراګنده ډول پرتې وې . څلورم ډبر لیك تشکیلوي.

داډبرلیکونه چې دکوشانیانو په وخت پورې اړه لري ټولې دیونانیانو په الفباء او لیك دود لیکل شوي دي چې له همدې څخه اندازه لګیږي چې یوناني الفباء اورسم الخط څومره دود و او په ځانګړې توګه دلویو کوشانیانو پر وخت دډیرې استفادې وړ و، دچینایي ګرځنده (هیوانتشنګ) په شهادت د اوومې زېږدې پیړۍ تر لومړۍ نیمایي پورې یې هم رواج درلود.

# په افغانستان کې یوناني لویې سکې

افغانستان دسکندر له فتوحاتو او دده دامپراطورۍ تر تجزیې اوتباهۍ دریمې مخزېږدې پیړۍ له نیمائی وروسته دمسیح تر دورې پورې پوره دوه سوه پنځوس کاله داسیایي یونانیانودتمدن اوفرهنګ مرکزؤ.

کله چې ۲۵۰ کاله دمخه تر میلاده دباختر واکمن (دیودوتس) دیوناني باختري سلطنت مستقل تشکیل اعلان کړ دهندوکش په شمال اوجنوب کې یې یو ډول ښکلې سکه ووهله چې دځینو ځانګړتیاو له امله له هغو سکو نه هم ډیره ښکلې وه چې یونان کې وهل شوې وې.

یوناني باختري پاچاهانو چې دواکمنۍ مرکز ئې عموماً (بکتریا) یا بلخ و ددوی یوه سلسله سکې چې نقش پرې وهل شوې و، اوډیرشمېرې لکه دښکلیو مډالونو په ډول له سپینو زرو جوړې دي چې اوس هم وروسته له ۲۲۰۰ کالوځلیږي، ددې غټو سکو په منځ کې یوشمیر ډیرې لویې دي چې قطر یې دوه نیم انچه اووزن یې تر ۱۶۸ ګرامو پورې رسیږي او دامیر حبیب الله خان دوخت له پنځه ګونوځخه ډیر غټې دي. ښایې چې ګران وطنوال خبر وي چې دپاریس په ملي کتابخانه کې یوه دسرو زرو سکه شته چې ۱۶۸ګرامه وزن اودوه نیم انچه قطر لري چې داسکه دیونان باختري سلطنتي کورنۍ ددریم موسس (ایکوراتیدس) پورې اړه

لري چې د ۱۶۵ ـ ۱۶۰ مخزېږدیو کلونو پـه منځ کې دبلخ سلطنت تـه رسیدلی او دټول افغانستان په خاوره یې واکمني کړې ده.

یوناني، دسروزرو سکه چې دغـټ والـي پـه وجه پـه ټولـه نړۍ کې سـاری نـه لـري دبلـخ د واکمـن ((ایوکراتیـدس)) ځانـګړې سـکه ده او ختمـاً پـر دې سـکه نقـش دافغانستان په خاوره کې وهل شوی دی.

ډیره عجیبه ده چې تر اوسه یوناني غټې سکې یـواځې پـه افغانستان کې لیدل شوي اوددې هیواد له خاورو نه لاس ته راغلي دي.

جنرال قریـه فرانسوي نژدې ۱۳۳ کالـه وړانـدې دامـیر دوست محمـد خـان دواکمنۍ پرمهال چې سردار کهندل خان پر کندهار اووزیر یارمحمد خان پر هرات حکومت کاوه افغانستـان تـه راغـی، هـرات، بلـخ اوکندهارتـه یـې سـفرونه وکـړل، نومـوړی پـه (قـره بـاغ) کې چـې (شـهرك) تـه نـژدې او دغـور شـمال پلوتـه واقـع دي دډیرغټو سکو په باره کې خبرې کوي چې تر اوسه یې دنوعیت دځرنګوالي په باره کې معلومات نشته.

جنرال قریه ددې سیمې دملك (سعادت ملوك) له قوله وائي چې د (قـره بـاغ) پـه کنډوالو کې ډیرې غټې طلایي او نقره یې سکې پیداکیږي چې زمونږ دوخت لـه سکو نه ډیرې غټې دي چې قطر یې ۳، ۱ انچوته رسیږي.

د ۱۳۵۱ زیږدي کال په شاوخواکې چې ((میجرتـات)) انګلیس پـه هـرات کې اوسیده همدغه سعادت ملوك ده ته یوه یـادوه درنې سکې وربښودلې وې نومـوړي ویلي وې چې په هغو سکوکې د سکندر نقش ځرګندیـده. دا پـه زړه پـورې موضوع ده چې فرانسوي جنرال یې سیمه ییز ملك (سعادت ملوك) تـه او هغـه ځه چې سعادت ملوك یې دانګلیس میجر لـه قولـه بیـانوي داسې ځرګندیږي چې د (شـهرك) ختیـځ لورته به خامخا کوم ښار وې چې دیونانیانو پرمهال به یو مهم مرکز شمېرل کیـده خو متاسفانه په ۱۱۳ کلونوکې ددې ځای او ددې سکو دځرنګوالي په اړه یوه خبره هم وانه وریدل شوه اودامهمه موضوع تراوسه په تیاره کې پاتې ده.

یوه بله ډیره مهمه موضوع چې ددې مسئلې پورې اړوند ده هغه دکابل پـه موزیـم کې دپنځوغټو نقره یې سکو شتوالی دی چې دایوناني نقره یي سکې په جهان کې تـر ټولـو غټـې سـکې وې، ددې سـکې پـه یـوه خـوا کـې نیـم مـخ او نیمـه شـاهي تنـه ځرګندیږي او داکټ مټ د (ایواتیدس) یوناني بـاختري پـاچادهغې سکې پـه څیـر ده چې له سروزرو جوړه او دپاریس په ملي کتابتون کې موجوده ده. ددې سکو پـه نقش کې ځرګندیږي فولادي (کسك) ژۍ لرونکې خولـه یـې پـه سرنوم یې (امیـن تـاس) او

دفاتح پاچا په نامه يې ياد کړی. داپاچا په افغانستان کې ديونان[illegible] په ډله کې ډير مجهول شخص نه دی. ځکه چې دهغه وړې سکې لر[illegible] کاله دمخه تر زيږدي يې دهندوکش جنوب پلو ته او دګندهارا پر ډيرو ختيزو سيمو يې واکمني درلوده، نوموړی خو تريوه حده بې نومه اوبې نښانه پاچادی چې په سملاسي ډول يې همدغه غټې سکې ګورو چې ((امين تاس فاتح پاچا)) پرې لولو.

داد (امين تاس) پنځه غټې دسپينو زروسکې چې ديوناني نړۍ ستري سکې ګڼل شوي، که له هغو سکو سره يو ځاې شي چې له دې وړاندې په افغانستان کې موندل شوي او يا په دې خاوره کې ليدل کيږي داثابتوي چې په دې هيواد کې ديونانيانو دواکمنۍ په لومړۍ دويمې او دريمې مخزيږدې پيړۍ کې دسرو او سپينو زرو پر غټو مډالونو اوسکو نقش لګول کيده. ددې پوښتنو ځوابونه شرح غواړي چې داسکې له کومه ځايه، څه وخت او په څه ډول دکابل موزيم ته راوړل شوي دي ؟. په کابل موزيم کې دنورو سکوپه ترڅ کې دسکو يوه لويه مجموعه يا کلکسيون موجود دی چې له ۶۰۰ سکو څخه مرکب دی او دامجموعه دځرنګوالي ، کميت اوکيفيت له نظره په باختر کې دهغو يوناني پاچاهانو دسکو چې دهندوکش شمال او جنوب پلوته يې واکمنۍ درلوده ډيره په زړه پورې او لويه مجموعه ده. چې دامجموعه دکندز دکلکسيون په نامه شهرت لري چې څوکاله وړاندې ديو رسمي ليك په واسطه دقطغن دنائب الحکومه له خوا څرګنده شوې وه دادکندز په بالاحصار کې ديو موټروان له خوا کشف کړاي شوې وه، چې ټولې سکې يې له سپينو زرو جوړې او په مختلفو يوناني پاچاهانو پورې يې اړه درلوده چې دغه وخت يې فرانسوي متخصصين په پاکولو مشغول دي. چې ددغه لوی کلکسيون په منځ کې پنځه سکې چې له سپينو زرو جوړې دي، هره يوه يې (۹۱) ګرامه وزن او دوه نيم انچه قطر لري.

۸_ ۱۰_ ۱۳۳۹

# مرکزي اسيا او چين ته دافغانستان

# دګريك او بوديك دمدرسې خپريدل

د (ګريك او بوديك) صنعتي مدرسې داسلام دظهور له دورو دمخه دمسيح دوخت په څلور پنځو لومړيو پيړيوکې په يو خاص مفهوم ټاکلې ځای لري، يا داسې ووايو چې ددې هنري مدرسې ترکيبي اجزاء له ختيځ ولويديځ ، يونان او هند څخه دافغانستان خاورې ته ورداخل شوي او بيا دلته دافغانستان دهنرمندانو په لاس اخته شوي، ترکيب شوي او همدلته يې روزنه شوې وه، څکه خودهمدغې کتنې له مخې يو شمېر پوهانو او دښکلو هنرونو کارپوهانو د (هندوافغان) دمدرسې په نامه ياده کړې ده.

وروسته له دې چې بودائی دين ددريمې مخزيږدې پيړۍ نه نيمائی څخه وروسته په افغانستان کې خپور شو، دمسيحي دلومړۍ او دريمې پيړۍ په اوږدو کې داهيواد دبودائي دين اوهنريو سترمرکز وګرځيد. دافغانستان په وياړلي تاريخ کې داوخت مرکزي اسيا، ختن، کاشغر اوچين ته دمبلغينو اوصنعتګرانو داستولو وخت دی لکه څنګه چې دلويو کوشانيانو په وخت کې دمرکزي اسيادخاورې دويشنې پر مهال ((سنګيانګ)) او ((ختن)) ازاد شول، د دين، فرهنګ او هنر لاره هم خلاصه شوه، په دې مقاله کې همدغه مطالعه کوو چې څنګه له افغانستان څخه يادو شوو سيمو ته دګريك او بوديك هنری مدرسه خپره شوه.

باور پدې دی چې همغه ډول چې بودائي دين له دوو خواوو دامو سيند د(سغد) له لارې او واخان ته يې دپامير دشرق لوري لاره پرانسته د (يونان اوبودائی) هنري مدرسې هم همدغه لاره تعقيب قدم په قدم دپورته يادو شويو لارو په اقتدار کاشغر،

ختن اود ((سنگیانگ)) نورو نقاطو ته یا په پخوانۍ اصطلاح چیني ترکستان ته داخل شو.

لکه څنگه چې سمرقند ته نژدې اودختن دعبادت ځای په خرابو او ویرانو کې د ((گریك او بودیك)) کشف شوي اثار ددې مدعا شاهدي وایي . لومړۍ نقطه چې ددې مدرسې شواهد هلته څرگندشوي هغه ( روك) ده چې دختن په ختیځ دهغه بودائي رنگه تصویرونوچې دعبادت ځایې په دیوالونوکې موندل شوي او سراویل استین انگلیس دهغو نقل اوعکس اخستی، دبودا له هغو مجسمو سره چې دننگرهار ولایت له هډې لاس ته راغلي ډېـ ورته والی لري . دهډې اثار په افغانستان او درواك اثار په ختن کې دواړه هم عصره او په مسیحي لومړیوپیړیو پورې اړه لري.

وړاندې دختیځ په لور په هغه نقطه کې چې سر اورل استین انگریز مدقق ددیوال تصویرونه موندل چې د (گریك اوردمن) له نمایش سره چې بې شکه په ۳- ۴ مسیحي پیړۍ پورې تعلق نیسي ورته والی لري، او گندهارا داثارو ترمنځ ددې اثارو ډیر نژدیوالی موجود دی.

دهغو پراخو اودوامدارو کشفیاتو په وجه چې له ۱۹۲۲ زېږدي کال نه وروسته د ۳۰ کالو په موده کې دگودارو هاکن اوبرتوپلاوو په هډه، بامیان او بگرام کې ترسره کړي ثابته شوې ده چې همدغه عوامل ددې سبب شوی دی چې له اسیائي خاورو ( گریکورومن) یعنې دلبنان، شام او عراق له سیمو څخه یې داکلاسیك صفت دگوبي سیمې ته انتقال کړی دی همدغه دافغانستان د (گریك او بودیك ) سبك اومدرسه ده.

دبامیان اوهډې دمجسمو گچین سرونه او رنگین تصویرونه او دمرکزي اسیا دبیلا بیلو برخو له هنري اثارو سره لکه د (رواك) او (میدان) اولړ څه لرې دگوبي په خوالکه (قزل ) او (کمتورا) او دچین مر (تورن هوانگ) پورې نژدې ورته والی لري چې دافغانستان دصنعتي مدرسې نفوذ ثابتوي.

دفرانسې دفقید ختیځ پیژندونکي ((رونه گروسه)) په عقیده دهډې دديوال انځورونه دمرکزي اسیاله اثارو سره دروم دامپراطورۍ دوروستۍ دورې داثارو ترمنځ دارتباط ښیي. همداډول دمیران په تصویرونوکې د بامیانو دمجسمو دطاق چې۳۵ متر اوږدوالی لري دښکلیواو رنگینو تصویرونوډیره اغیزه څرگندیږي اوپه مجسمه توږنه کي هم همدغه مطالب څرگنددي.

هغه له ګچ نه جوړ د (بودا) (بوديس اتوا) او کوشاني قبيلې دنورو سرونه چې دکابل دموزيم تاخچې اوالمارۍ پرې ښکلې دي راښيي چې هغه له هغو اثارو سره چې دختن له (رواك) څخه موندل شوي ديو قطار اثار دي او دومره سره نږدې او ورته دي چې ددواړو په منځ کې په اسانۍ سره توپير نشي کيداي.

دګندهارا او دافغانستان دنورو سيمو دهنري مدرسو نفوذ دچين په خاورو کې ۳ او ۴ پيړۍ پورې ځانګړي نه دي، بلکه هغه څيړنې چې ددرې تنو چين پيژندونکيو فرانسوي، الماني اوانګليسي يعنې (پول پليو) (فن لوکوك) او (سراوړول ستين) له خوادکاشغر په شمال (تمشك)، (کوتچه)، (قره شهر) او (تور خان) کې منځ ته راغلي عموما ددې ځايونو اثار ندي او د ۶-۷ او ۸ پيړۍ محصول ګڼل شوي دي.

همدغه شان ددې ځاې، هډې او تيکسلا دوړو مجسمو په منځ کوم ستر توپير نه تر ستوګو کيږي اود ګندهارا دمدرسې د نفوذ کولو ښه او برجسته مثال دی چې دوام يې دمرکزي اسيا په مختلفو سيمو کې تر اتمې پيړۍ پورې ثابتوي.

هغه مجسمه تورنې او د ديوال پر مخ دنقاشۍ سبك چې په افغانستان کې دبودايي وخت معمول و، پر مرکزي اسيا کې هم ځاي په ځاې ونه دريد بلکې دبودايي دين له پرمختګ سره پرمخ ولاړ.

د(تورخان) په سيمو کې چې دچين له سرحداتو سره تماس لري او په نورو نقاطو کې لکه ((مورتګ)) او ((بازاکليق)) کې د ګندهارا دهنري مدرسې هنري اثار په سترګو ليدل شوي.

فرانسوي ختيځ پيژندونکی (رونه ګروسه) يقين لري چې په نوموړو سيمو کې تر ۹ مه زيږدې پيړۍ پورې دهډې او تکسيلا دکارونوله مخې تقليد شوی دی اودامفکوره په نوموړيو سيمو کې دمجسمو دسرونوورته والی دهډې او تکسيلا اثارو سره ثابتوي. چې له تور خان نه ورتير شودګوبي صحرا جنوبي خواو ته ځينې برخې اواثار پوهانو ليدلي دي چې په هغوي کې دافغانستان او په ځانګړي توګه دباميانو اوقندنستان بودايي اثار بې اغيزې نه دي.

لنډه داچې پرته له دې چې په جزئياتو خبرې وکړو په عمومي ډول کولاي شووايواو ثابت کړو چې دمجسمه تراشۍ او دنقاشۍ دنورو ډولونومدرسې چې دعبادت ځاي پر ديوالونو دود وې هغه وخت چې له افغانستان څخه دبودايي دين رواج له سرحداتو دباندې ووت نو ورسره نوموړې مدرسو په تدريج سره کاشغر، ختن اوترچين پورې سرايت کړی دی.

۱۳۳۷\۵\۲۲

# په لرغوني افغانستان کې

# دموسیقۍ درې آلې

دخلکو پېژندنې څېړنو، فیلوژوي اوتدقیق دبشري ټولنو په منځ کې دخبرو پیل له آهنګونو اوشپیلیو څخه ثابتوي، وائي چې ټول بشري نژادونه پرته له رنګ، پوستکي او جغرافیایي سیمو دخپل ژوند په پخوانۍ او لومړیو پوړو کې دسندرو دډولونو دیو ډول په ویلو روږدي وو او ددې طبیعي ورکړې څانګړتیا کوم نژاد پورې اړه نه لري، لکه څنګه چې انسانان دژبو له ډېرو ډولونو په یوه ژبه ګړېږي نوخپلو کلمو ته یې وزن او اهنګ هم ورکړی، کله چې یې څو کلمې دوزن او اهنګ پیدا کړې ورسره جوخت یې دسندرو ویلو لاره چاره هم پیدا کړې ده.

دافغانستان په هیواد کې له ۳۰ حتی له ۵۰ زرو کلو دمخه دهندوکش په زړه کې دغار اوسیدونکیو ښکاریانو دژوند اثار موندل شوي او له هغه وخته چې دغار اوسیدونکي ښکاریان له غرونو او کمرونو څخه ښکته راغلي دي او دلویو خانو پر غاړو لکه: هیرمند واکسوس(آمودریا) اندوس (سند) هري رود، مرغاب، ارغنداب او کابل رود میشت شوي نو دمالدارۍ او کرهنې دورې یې تیرې کړې دي چې عجالتاً دکندهار د (منديګک) دتپې دکیندلو جریان چې ۵ زره کاله دمخه تر تاریخ یې دژوند دوره ترسره کړې زمونږ په مخکې دی.

داریایي ادبي اثارو دشهادت له مخې ویلی شو چې په ویدي عصر کې یعنې وړاندې تر هجرت کولو اودهجرت کولو په دوران کې سندرې ویل نځا او اتڼ کول په افغانستان کې داوسیدونکیو ترمنځ دود وو.

لکه څنګه چې شعر ویل دکورنیو په منځ کې یوه عنعنوي دنده ده، نوځکه یې دسندرو انتقال له یونسل نه بل نسل ته یو معنوي میراث ګڼل کیده نو خامخا دخلکو په منځ کې دسندروویل دود و.

(ویدې) سرودونه او اوېستایي (زرتشتي) ګاتا(سندرې) چې دهغو ډیره برخه په افغانستان کې منځ ته راغلې او داپخپله ددې څرګندویه ده چې سندره له سندر غاړي او سندرغاړي دموسیقۍ له یوې آلې سره تړلي توکي دي. پروفیسر (ګیټ)

اروپائي ختيځ پيژندونکی په دې عقيده دی چې " په ويدي زمانه کې موسيقي
خپله لومړنی دوره ترسره کړې وه"
دپروفيسر ګيټ په نظر اريايان په هغو پيړيو کې چې ددوو لويو سيندونو امو او
اباسين ترمنځ يې ژوند کاوه، نه يواځې داچې دموسيقی مفکوره يې په دماغ کې
پيداشوې وه، بلکې په دې برخه کې يې يو پړ هم وهلی و، تر کومه ځايه چې له
سندرو څرګندېږي دموسيقی درې ګوني الات يعنې هغه الات چې په پوکونه غږول
کيږی، هغه الات چې تار لرونکي دي او دريم بې تاره الات داټول په ويدي زمانه کې
دارياپانو ترمنځ په افغانستان کې معمول او رواج و او هر يو ځانته نوم درلود لکه
(دنوبهي)( وانا) او ( يونا).
دريګ ويد له شاعرانو څخه يو تن وايي چې "دشپيلی غږ دياما يعني جمشيد
له استوګن ځاي څخه اوريدل کيږي"
دټولو داستانونو او اسطورو پر اساس دياما يا جمشيد استوګن ځاي په بلخ
کې و او دا لومړی پاچاو چې په بلخ کې يې پلازمينه درلوده.
شپيلی دموسيقی يوه ډيره ساده اله ده چې دافغانستان دغرونو په لمنو کې
رواج لري او دا په ځانګړې توګه دځوانانو دموسيقی اله ده چې دمالدارې په
لومړيو وختونوکې دشپنو، هلکانو او ځوانانولخوا منځ ته راغلې. شپيلی په
افغانستان کې دملي موسيقی يو اله شميرو او ارتباط يې له بلخ اوباخترسره پرته
له دې چې ويدي ورته اشاره کړې نور داسې داستانونه هم شته چې دشپيلی يادونه
کوي دهغې له جملې څخه دچين زوړ داستان ديادونې وړ دي. هغه هم په دې ډول
چې وايي دچين پخوانی امپراطور (هيوان ـ تي) چې ترميلاد ۲۲۰۰ کاله وړاندې
يې ژوند کاوه، نو ږړي (لنګ ين) د.(يوان ـ يو) شمال پلو ته واستاوه ترهغې وروسته
شپيلی دچين دموسيقی اساس وګرځيد.
دفرانسې ديو مدقق شاوان له نظره (يوان ـ يو) دباختر يو برخه او يا ووايو چې
دافغانستان په شمالي برخو کې يوه سيمه ده او له دې پخوانې چينې داستان څخه
څرګندېږ چې ۴ زره کاله دمخه تر ميلاده دنل شپيلی دود له باختر نه چين ته تللی
دی او بيا هلته دچينې موسيقی اساس ګرځيدلی دی.
دتارلرونکو موسيقي الاتو تر ټولو پخوانی څرك اودرك دهندوکش دغرونو له
لمنو کې لګوو دا هغه (سرود) دی چې په ډير ساده او بسيط ډول جوړ او د دوه
تارونولرونکی دی چې نمونې يې اوس هم دافغانستان په نورستانونو کې لرو او
همدارنګه دکابل په موزيم کې يې اوس هم نمونه موجوده ده.
د ډنمارکي خلکو پيژندنې پلاوی له څيړنو څخه څرګندېږی چې وائي
دادموسيقی اله وړاندې له (سومريانو) يعنې له نن څخه څلور زره کاله دمخه يې
دافغانستان په غرونو کې وجود درلود له عملي څيړنو څخه داڅرګنده شوې ده چې

کوم اهنگونه چې نن نور ستانیان په خپلو موسیقي الاتو کې غږوي دادځلور زره کلو د مخه اهنگونو یاد دی چې په دې ترتیب یې اهنگونواو سرودونوله ځلور زره کلو را په دې خوايې خپله لرغوني بڼه خوندي ساتلې ده.

په دې ترتیب سره ویلای شو چې شپیلۍ او دموسیقۍ په آلو کې (سرود) په افغانستان کې کم ترکم ځلور زره کلن قدامت لري. دافغانستان دموسیقۍ په آلو کې کوم شی چې له تار لرونکیو پرته په دریمه ډله کې راځي تر ټولو طبعي اومروج ډول دی چې دافغانستان دخلکو دورځني ژوند په ټولو پړاوونو کې له ودونو نیولې تر ویالو کیندلو، عمراني او زراعتي چارو او رزم او بزم کې برخه لري. ډول له ملي افغاني اتڼ سره همیشه و او دی او لرغونتیا یې دموسیقۍ ددوه نورویادو شویو آلو په څیر زرګونه کاله دمخه یادولی شو.

دمسیحي دورې په پیل او درې ځلورو لومړیو پیړیوکې چې پژګری ټیکر توړنې او دعبادت ځایونو پر دیوالونو نقاشي دود شوې وه یعنې چې دلویوکوشانیانوپه دوره کې یې لکه دډیروادبي مظاهرو، موسیقي هم ډیر پرمختګ وکړ، اصلاً دکوشانیانو دوره چې له نیکه مرغه اوس یې د ډیرو جزئیاتو سره اشنا یو، داسې له عظمت او پرتم نه ډکه وه چې د واکمنو پاچاهانو تر سیوري لاندې یې دځانګړې پاملرنې او هڅونې په وجه معماري، مجسمه جوړونې، ادبیاتو اوموسیقۍ ډیر پیاوړتیا او پراختیا تر لاسه کړه.

دننګرهار ولایت دهډې داسې توږل شوې مجسمې په لاس لرو چې موسیقي غږونکي یې یواځې نه بلکې په اوسني مفهوم د (بالت کنسرتونو) نمایش کوي. نڅا کوونکي او موسیقي غږونکي یې له ډول او دبلې سره په میدان کې ښکاري.

دنڅاکوونکیو دحرکاتو شرنګ او دموسیقۍ غږوونکیو موزون اهنګ اوپه ډله ایزه توګه ددوي غږونه بې له هغو بې ساډبروځخه زموږ ژوندیو غوږونو ته رسوي. لنډه داچې دموسیقۍ له اساسي ډلو څه درې نمونې: شپیلۍ، سرود او ډول له ۴-۵ زره کلو نه را په دې خواد افغانستان له غره ییزو ابادیو کې دود لري اوزمونږ دخلکو له عنعنوي ژوندانه سره یې سمه پیاوړتیا او پراختیا کړې او دلومړنیو ابتدائي وختونو بیلګې یې تر اوسه دغرونو په تنګو او ژورو درو اوهمدارنګه دغرونو دننه په کلکو کلاګانو کې شته او حتی یوشمیر لرغوني سندرې، غږونه او زمزمې لاتر اوسه په بشپړه توګه هیرې شوي نه دي اوانعکاس یې غوږونوته رسیږي.

۱۳۳۷/۶/۱۱

# په لغمان او کندهار کې

# داشوکا ډبر لیکونه

((اشوکا)) د ((بندوسارا)) زوی د ((چندراګوپتاموریا)) لمسي دهندي (موریائي) کورنۍ دریم پاچا چې د ۲۳۲ او ۲۷۴ مخزېږدي دوریمې پیړۍ په لومړۍ نیمائي کې واکمن و.

نوموړی دهندي پاچاهانو په ډله کې یو لوی پاچا و چې وروسته د "کلنګا" د مشهورې جګړې، چې له یونیم لك تنوڅخه ډېر پکې مړه شول دوینو ویالـه او خیرې څیرې جسدونه ولیدل سمدلاسه یې حال بدل شو، له ډیرو هیلو اوخواهشاتو څخه تیرشو ځان غوښتنې او بشري سرغړونې یې په ځان کې ختمې کړې او دیـو مذهبي مشر (راهب) په توګه وپیژندل شو چې دخپلې واکمنۍ پاتې کلونه یې دفقر او روحانیت په ښه تیر کړل.

لکه څنګه چې دهغو جګړوپه وجه چې دده نیکه ((چندراګوپتا)) او یـونـاني ((سلوکوس نیکـاتور)) ترمنځ پیښې شوې وې ، او ((سلوکوس نیکـاتور)) پکـې دافغانستان جنوبي سیمو ته په شا راغی داسیمې دارغنداو تر حوزې پورې دموریا دامپراطورۍ تـر تـاثیر اونفـوذ لاندې شـوې او دې وضعـې دپنځوسـوکلونو په شاوخوا کې دوام وکړ.

دغه وخت چې اشوکاد (موريا) په تخت کښيناست دموريا د کورنۍ نفوذ لا دافغانستان په جنوبي برخو کې لږ ډير برلاسی و.

خو کوم کار چې (آشوکا) په وار سره تر سره کړ هغه دادوس په لويديځ کې فتح شويو سيمو ته دبودايي مبلغينو استول وو لکه څنګه چې تول په دې پوهيږو چې ددې کار په کولو سره بودايي دين دخپله (آشوکا) له وخت نه يعني ددريمې مخزيږدې پيړۍ دلومړۍ نيمائي نه وروسته ورو ورو د افغانستان په خاوره کې خپور شو چې څه دپاسه يوزر کاله يې دوام وکړ او دهغه ديانت دحيرانتيا وړ اثار اوس هم په افغانستان کې پاتې دی.

دآشوکا دواکمنۍ دوره يوه روحاني او اخلاقي دوره ده چې په هند کې دهغه اخلاقي نصيحتي فرمانونه دتيږو پر ستنونقش کړاي شوي چې (وهمه کمبهاني) يعني (اخلاقي ستنې) ورته وايي او تر اوسه په افغانستان کې ددوه اخلاقي ستنو نښې نښانې چې يوه له بلې ډيره لري يعني په (ډرونته) دجلال آباد او لغمان تر منځ او بله دکندهار په زوړ ښار کې پيدا شوي دي.

هغه ډبر ليك چې پکې دآشوکا دزيږېدنې ځاي ډرونته ښودل شوې ده. د مثلث په بڼه ده چې لس انچه اوږودوالی او بر يې اته (۸) انچه دی چې اوس هم دکابل په موزيم کې خوندي دی. ددې ډبرليك عکس دلومړي ځل له پاره دکابل مجلې په يوه ګڼه کې خپور شو او نارويژی پروفيسر مارګنستين دلومړي ځل له پاره هغه په اروپا کې لويديزو پوهانو ته وروپيژاند او دوه تن پوهان ((پرکلند)) و ((التهم)) دهغې ليکنې په ژباړنه او مطالعه بوخت شول او دوروستي ځل لپاره پر ۱۹۴۹ ز کال پروفيسر(هنيګ) (په لغمان کې داشوکا د (آرامي) ډبرليك کشفول) تر عنوان لاندې دهغه په چاپير يال يوه مقاله خپره کړه.

داډبر ليك په آرامي ليك دود ليکل شوی او اته نيمې کرښې لري خو لکه څنګه چې ياده شوي ډبره ماته او دمثلث بڼه يې خپله کړې، تر ډيره ځايه يې کرښې نيمګړې شويدي او له ترجمې څخه يې مسلسل مضمون په لاس نه راځي سره له دې هم داخلاقي درس روح ترې څرګنديږي، چې مفهوم يې دهغه پاچا له ډبر ليك څخه چې دکندهار په زاړه ښار کې پيداشوی ؤ اخستلای شو.

دکندهار ډبرليك چې دچهل زينې سيمې ته نږدې دکندهار د زاړه ښار دکنډوالو شمال پلوته د(کندهار ــ ګواکران) اوسنی سرك ته نژدې کشف شويده داپه دوه ژبو او دوه ليك دودو مشتمل او جوړ ډبر ليك دی، يعنې په يوناني ژبه او ليك دود او همدارنګه په آرامي ژبه او ليك دودليکل شوی دی.

اشوکا دخپلو خاصو او ګڼو اخلاقي ښیګڼوله مخې خلك دحیواناتو له زورولو او وژلو همدارنګه دماهیانو له ښکار نه منع کړل او وایې چې همغه شان چې مادانسان له وژلولاس واخیست شاهي ښکاریان دې دحیواناتو او ماهیانو له ښکار څخه لاس واخلي.

دموریاپاچا خلك د مور، پلار اومشرانو اطاعت ته رابولي دنفسیاتي خواهشاتو دله منځ وړلو او ټولو ژوندیو ته ددرناوي بلنه ورکوي داجمله هم په ډبر لیك کې راغلې چې دده (پیواسي) دترحم او مهربانۍ له مخې دځمکې په مخ ټول انسانان نیکمرغه اوخوشحاله شول.....

(پیوداسې) چې دلته دکندهار په ډبر لیك کې یې یادونه شوې ده د (اشوکا) بل نوم دی چې دهغه په یو شمېر نورو ډبر لیکونوکې هم لیدل شوی دی. په همدې ترتیب دډبرلیك په متن کې کومه ناڅرګنده خبره نشته او معلومیږي چې دموریا پاچا که په لغمان کې چې دګندهارایوه برخه ده او که دکندهار په زاړه ښار چې دارغنداو دحوزې ترڅنګ دختیځ له ډیرو پخوانیو ښارونو څخه دی په دواړو ځایونو کې یې یادښت پر ډبرو لیکونو شته چې یو یې یواځې په (آرامي) ژبه او لیك دود دی او بل یې په دوه ژبو اودوه لیك دودونو یوناني او آرامي باندې لیکل شوی دی.

اشوکا به داډول فرمانونه اخلاقي ستنې زیاتره دکاروانونو لارو ته نږدې دتیریدونکیو دلیدلو لپاره نصب کولې ترڅو په لاره دتیریدونکیو خلکو دپاملرنې وړ وګرځي.

تر کومه ځایه چې لیدل کیږي د (ډرونتې) او کندهار ډبر لیکونه ددوه لویو لارو پر سر او دهغه وخت ددوه پخوانیو ښارونو ترڅنګ یو په ګندهارا کې پخوانۍ هډې ته نږدې او بل په کندهار کې دلویې لارې په سر زوړ ښارته نږدې په یوه لویه تیږه کې کیندلی شوی دی.

له دې دوه ډبر لیکونو څخه څرګندیږي چې له میلاد نه دمخه ددریمې پیړۍ په اوږدوکې، هډې او اوسنی جلال اباد ته نږدې او همدارنګه کندهار ته نږدې دوه لویې مرکزونه اوښارونه اباد و اودکاروانونو تګ راتګ هم تقریباً له همدغو لارو ترسره کیده.

دکندهار ډبر لیك په یو لوړ ځای دلارې په لور مایل ډول واقع دی ترڅو یې لا روېانو وګوري، ددې ډبرلیك له وضعې نه پخپله څرګندیږي چې دیو مشخص

ترتیب له مخې دلارویانو دلیدلو له پاره پر همدغه ځای او په همدغه بڼه جوړه کړای شوي ده.

ددې ډبر لیك له مخې په څرګنده ویلای شو چې ددریمې مخزیږدې پیړۍ په اوږدو کې آرامي لیك دود په افغانستان اوپه ځانګړي توګه په جنوبي افغانستان کې معمول او رواج و او یو بل ډبر لیك هم په همدغه ژبه او لیك دوه په(ټیکسلا) کې کشف شوی دی، ترټولو مهمه په دریمه م ز پیړۍ کې دیوناني لیك دود ارزښت او څرګندیدل دي.

مونږ همیشه فکرکاوه چې داژبه او لیك دود دیوناني باختري پاچاهانو دواکمنۍ په دوره کې تر (۲۵۰) مخزیږدي وروسته ورو ورو معمول اودود شوي ده، خو ګورو چې په دریمه مخزیږدي پیړۍ کې اویالږ تر لږه ددریمې مخزیږدې پیړۍ په نیمائي کې نوموړې ژبه اولیك دود دی حتی په جنوب غربي افغانستان کې معمول او خوره ده او دومره ارزښت یې درلود چې هغه به یې دډبرلیکونو دلیکنې پر مهال له آرامي ژبې او لیك دود څخه مخکې ګڼله.

۱۳۳۷ \ ۴\۲۰

# په کندهار کې داشوکا ډبر

# لیک کشف

## (هغه ډبر لیک چې په دوه ژبو یوناني او ارامي لیکل شوی)

په افغانستان کې ۱۳۳۷ ه ش کال په پیل کې یو ارزښتمن ډبر لیک کشف شو چې دتاریخ له نظره په افغانستان کې دبودائي دین دپراخوالي، فرهنګ او ادبیاتو له مخې ډیر ارښتناك و.

داډبرلیک په دوو ژبو (یوناني) او (ارامي) اوهمدارنګه په دوه لیك دودونو یوناني ارامي باندې لیکل شوی دی. او هغه په افغانستان کې ددواړوژبو او لیك دودو دخپریدلوله املّه هم ډیرارزښت وړ ده، چې دادی‌لومړی یې دکشف دڅرنګوالي په اړه ځوکرښې لیکو او بیا پخپله دډبرلیك اودهغې دیوناني ژباړې په اړه خبرې کوو.

د ۱۳۳۷ کال په دویمه نیمائي کې مې یو شخصي لیك دیو پخواني دوست عبدالباري اشنا له خواچې پخوا په کندهار کې داحمد شاهي لیسې مدیر و ترلاسه کړ، چې په هغې کې یې دکندهار له یوه سپین ږیرې سره دخپلې مرکې په اړه څرګندونه کړې وه، هغه دحمل په ۱۵ نیټه لیکلی و. چې دکندهار په ښار کې دسرپوزي غره ته نژدې یوه ډبره څرګنده شوې چې پر مخ یې یو ډول لیك کیندل

شوی اودسپین ږیري په ملګرتیا یې هغه ځای او ډبره لیدلې دي. لکه څنګه چې دښاغلي اشنا دلیک نه څرګندیدله ډبر لیک په کندهار کې چهل زینې ته نږدې دسرپوزې دغره په پوزه کې په یوه طبعي ستره ډبره کې کیندل شوي او تر اوسه خاورو اوختو لاندې پټ و، کله چې دوخت په تیریدلو دسیمې بزګرانو له دغه ځایه خاوره وړې ده نوموړې ډبر لیک کشف او راڅرګند شو.

داډبر لیک چې خبر مې ورته دکابل په راډیو او نورو افغاني مطبوعاتو کې خپور کړ دهغه ارزښت له مخې چې لري یې دپېژند ګلوۍ وړ یې بولو او دادی تاسوته یې درپېژنم. داډبر لیک دکندهار دزاړه ښار دننه دسر پوزې کلي ته په ځوسوه متری دپوزې دپای په برخه کې یو توږل شوی ستر کاڼی دی چې له چهل زینې وړاندې ددوه کاڼو لرونکیو تپو په مخ کې واقع دی. داډبر لیک هغه سرک ته ډیر نږدې دی‌چې له موجوده کندهار څخه دارغنداو په لوري تللی او هغه سرک ته هم ډیر نږدې دی چې له عمومي سرک نه دکندهار د زاړه ښار دکنډوالوپر لوري تللی دی.

هغه لویه ډبره چې لیکنه پرې کیندل شوی مستطیل شکل لري چې اوږووالی یې دوه متره پنځوس سانتي اوسوريې یو متر اولس سانتي دی. ددې لویې ډبرې په منځ کې دمربع په شکل غیر منظمه سطحه د(۵۵) سانتي په اوږودوالي اود ۴۵ سانتي بر او همدارنګه (۵۰) سانتي ښکته پلو ته پاکه او صافه شوې ده او د ډبرلیک متن په دوه لیک دودونو یوناني او ارامي لیکل شوي او کیندل شوی دی. دډبر لیک په پورته برخه کې مضمون په یوناني لیک دودلیکل شوی چې ټوله شمیره یې دیارلس نیمې کرښې ده او بیا دارامي لیک راځي چې شمیره یې اوه نیمې کرښې ده.

وړاندې تر دې چې ددې مهم ډبر لیک نقل او عکس (روما) او (پاریس) ته ورسیږي ما صرف دهغه ډبر لیک دموقعیت له مخې چې داراکوزي ولایت دکاروانونو دپخوانۍ لارې ترڅنګ واقع دی اوداچې په دوه لیک دودونو یوناني او آرامي لیکل شوي ښه اټکل کړي و چې داډبر لیک دریمې ق م پیړۍ پورې اړوند اود (موریا) کورنۍ لوې پاچا (اشوکا) پورې مربوط دی لکه څرنګه چې پر نوموړي ډبر لیک کې په یوناني ژبه لیک شوي دالیک نسبت آرامي لیک ته اسان دی، په روم اوپاریس کې پوهان ددې لیکنې په ترجمه بوخت شوي دروما په ختیځ اولویدیځ کې په مجلو او دپاریس په (لوموند) ورځپانه کې په دې باره کې مقالې لیکل شوي اوخپرې شوې دي.

اشوکا دهندي (موريا) کورنۍ هغه پاچا دی چې پر هند دلس کاله واکمنې وروسته يې افغانستان ته دبودايي دين دتبليغ له پاره مبلغين راواستول داهغه وخت و چې دافغانستان په شمال باختر کې يوناني باختري شاهانو تازه په واکمنۍ پيل کړي و. اودافغانستان په جنوب کې دسلو سي کورنۍ (سلوکوس نيکاتور) يوناني پاچا ترماتې وروسته دموريا دکورنۍ موسس (کوپتا) داندوس (سند) له شاوخوا څخه دافغانستان جنوب پلوته دارغنداو تر غاړو پورې يې خپل نفوذ ته پراخوالی ورکړی و. دکندهار په سر پوزه کې داشوکا دډبر ليک مضمون سراسراخلاقي اوعبارت دنوموړي پاچا له نصيحتونو څخه دی.

څنگه چې ټول پوهيږو اشوکا عادت درلود چې خپل اخلاقي نصيحتونه.به يې دفرمانونو په بڼه په ډبر وليکل اوتيتول لکه چې ډير دډبرو فرمانونه يې په هند کې کشف شوي دي. اويوله دغو فرمانونوڅخه دجلال اباد په ډرونته کې پر يوه توږل شوې ستره ډبره موجود و چې يوه ناقصه پارچه يې دکابل موزيم ته رسيدلي اوهلته خوندي ده.

موسيو روبرت دفرانسې دادبي متون او ډبر ليک داکاډمۍ غړی اوداروپا دختيځ مجلې مدير دواړه دې نتجې ته رسيدلي دي "چې (اشوکا) پاچا دکندهار په ډبر ليک کې په خپل مستعار نوم (پيوداسي) يادشوی او څرنگه چې يې پخپله دټولو موجوداتو له ازارولو او زورولو څخه لاس اخستی دی بايد چې دهيواد ټول ښکاريان او صيادان د حيواناتو له وژلو او دماهيانو له نيولو څخه لاس واخلي. چې په ځمکه کې لاخوشالي او ارامي خوره شي، سپارښتنه شوې ده چې دمور پلار او مشرانو ته اطاعت او دنفسياتي خواهشاتو مخنيوی دې وشي او په ځانگړې توگه دې دهر ژوندوي له زورولو ډډه وشي"

په همدغه ترتيب داشوکا کوم ډبر ليک چې تازه دکندهار زاړه ښار ته نژدې کشف شوی ديو شمېر اخلاقي پندونو لرونکی دی چې ۲۳۰۰ کاله دمخه ليکل شوی.

دارامي ډبر ليک متن تر اوسه لوستل شوی نه دی، خو ډير احتمال لري چې دمضمون متن يې ديوناني ډبر ليک له متن سره توپير ونه لري اوددواړومتنونو مضمون يو شی وي.

د(اشوکا) يا د(کندهار دسرپوزي) ډبر ليک لومړنی يوناني ډبر ليک دی چې اوس په افغانستان کې کشف کړاي شوی، تر دې وړاندې په سره کوتل کې ډبر ليک کشف شوی و. چې يوازې په يوناني ليک دودليکل شوی او ژبه يې دافغانستان

دژبو له ډلې یوه محلي ژبه ده. دکندهار ډبر لیك لومړنی ډبر لیك دی چې زمونږ په هیواد کې په یوناني ژبه او لیك دود لیکل شوی. نو داچې له آرامي ژبې نه پورته کښل شوی څرګندیږي چې زمونږ په هیواد کې دیوناني ژبې ارزښت ددریمې مخزیږدې پیړۍ په نیمائي کې ډیر زیات و.

دکندهار ډبر لیك لومړنی ډبر لیك دی چې په دوه یوناني او ارامي ژبو لیکل شوی، ددې لپاره چې نوموړی ډبر لیك په دوه ژبو او دوه لیك دودونو لیکل شوی په همدغه وجې یې ارزښت ډیر زیات دی او دیوناني ژبې په مرسته به دپوهانو معلومات دادبي جزئیاتوپه اړه او دآرامي حروفو دلیکلو په برخه کې پراخوالی ومومي.

هیله لرو چې ژر به پوهان ددې ډبر لیك د (ارامي) متن په لوستلو بریالي او په دې برخه کې به بله مقاله خپره کړي.

په ډبر لیك کې راغلي چې د (پیوداسي) دترحم اومهربانۍ له مخې دځمکې ټول انسانان نیکمرغه اوخوشاله شول.

په کندهار کې دیوناني ډبر لیك دمتن اساسي مفهوم لکه څنګه چې یې وړاندې یادونه وشوه په اخلاقي نعمتونو مشتمل دی. ددې ډبر لیك (آرامي) متن اووه کرښې لري چې تر اوسه کوم شخص یا علمي موسسې دهغې په ژباړه لاس نه دی پورې کړی. خو احتمال لري چې دهغې مضمون به هم ددې ډبر لیك دیوناني برخې سره یوشان وي.

داروپایي علمي حلقې په روما او پاریس کې هغه ډبر لیك ته چې تازه په کندهار کې کشف شوی ډیر ارزښت ورکوي او د ا ډبر لیك په لرغوني افغانستان کې دتاریخ،ادیبانو، ژبې پیژندنې او دژبو دتاریخ له نظره ډیر ارزښت لري، ځکه چې دالومړی ځل دی چې یوډبر لیك په دوو ژبو (یوناني) او (آرامي) لیکل شوی او زمونږ دهیواد له یوې مشخصې سیمې نه په لاس راغي.

۱۳۳۷\۱۲\۲۱

# په افغانستان کې دبودیزم خپریدل

پنځلس کاله دمخه مې دافغانستان تاریخ دلومړي ټوك په ۳۴۲ مخ کې د "محفل مذهبي واعزام مبلغین" تر سر لیك لاندې ولیکل چې " دا شوکا له سترو کارونوځخه چې دواکمنۍ یوولسم کال ( ۲۵۹ مخزیږدې) اټکل کیږي دمذهبي محفل ریاست، دشاهي ښکار موقوف کول، یادعیاشۍ منع کول اوترټولو لوی دمبلغینو داستولومفکوره ده" دا محفل په ( پټالي پوترا) چې عبارت له (پټنه) ځخه دی دایر شو او دهغې په اثر اشوکا تصمیم ونیو چې دبودایي دین د خپریدلو لپاره به دهند جنوب اولویدیځو هیوادونو ته مبلغین استوي.

ټول پوهیږو چې دغه مهال دیوناني شامي سلوکوس نیکاتور دموریاکورنۍ دموسس چندراګو پتامور له لاسه پر ۳۰۵ م ز کې دمقابلې په ترڅ کې ماته خوړلې وه اوله ګندهارا ځخه تر ا راکوزي ( له کابل نه تر کندهار) پورې دموریا کورنۍ برې موندلی و اواشوکا ډیره هڅه کوله چې په فتح شویو سیمو کې بودایي دین مروج کړي نودهمدې مطلب د تر سره کولو لپاره یې د (مجهان کیته) ( دهمهاره کیڅه) او( مهاره کیته) په نامه څو تنه مبلغین دکابل او ارغنداو د سیمې په لور واستول او په همغه ترتیب چې پوهیږو ددریمې م ز پیړۍ له نیمائي نه وروسته بودایي دین دافغانستان په خاوره کې له لمر خاته ترکاپیسا اوله کابل نه دشمال په لور تر بلخ پورې اوهمدا راز دجنوب لور ته ډارغنداو تر سیمې خور شو. تر اوسه پورې داسې فکر کیده چې دنوموړي دین دخپریدلووخت نظر جنوب ختیځ ته دلویدیځ او شمال

پر لور ژر صورت نیولی، خو کیسه داسې نه ده څکه چې داوخت د هندوکش جنوب دموریا دکورنۍ ترلاس لاندې وُ او په شمال کې یوناني باختري پاچا واکمن وُ.

بودايي دین له ګندهارا څخه دارغنداو سیمې ته ډیر ژر حتی پخپله د (اشوکا) په وخت ددریمې م ز پیړۍ په نیمایي کې خپور شوی دی.

چیني ګرځنده( هیوان ـ تسنګ) چې کله داوومې عیسوي پیړۍ په لومړۍ نیمایي کې له (کاپیسا) نه ننګرهار ته ورغی په بګرام او دجلال اباد په هډه کې ورته یو شمېر دعبادت ور ځیزونه اټکلیده څکه چې دمبلغینو داستولو له وخت نه دعبادت ور ځایونو تر جوړولو پورې ډیروخت پکار و، مګر داشوکا داخلاقي ډبر لیك په رښا کې چې تازه دکندهار په زاړه ښار کې موندل شوی او دهغه ډبر لیك له مخې چې ۲۵ ـ ۳۰ کاله دمخه دجلال اباد په ډرونټه کې لاس ته راغلي څرګندیږي، خومره چې دبودیزم دخپریدو په هکله فکر کیده له هغې څخه ډیر تیزو، او یو شمېر عبادت ځایونه په ننګرهار او کاپیسا کې پخپله داشوکا په وخت ددریمې م ز پیړۍ په نیمائي کې جوړ شوی وو، چې خاطرې اونوي پیداشوي ځیزونه یې دچیني ګرځنده (هیوا تسنګ) تر وخت اومې مسیحي پیړۍ پورې له منځه تللی نه وُ.

اصلاً داشوکا له خوا په یوستره مذهبي غونډه کې فیصله وشوه، ترڅو دهندوکش جنوب ته دغربي هیوادونو په لور چې په هغې کې پخوانی افغانستان هم شامل دی یو شمېر دبودايي دین مبلغین واستوي،داغونډه د ۲۵۸- ۲۵۹ م ز په شاوخوا کې دهند دبیهار په ضلع د (پټنه) دښار په ( پټاپوترا) کې تر سره شوه لکه چې وړاندې یې یادونه وشوه یوشمیر مبلغین دافغانستان په لور هم واستول شول.

اشوکا استولي بودايي مبلغین یوائې په افغانستان کې تم نه شول بلکې دلویدیځ پر لور یوناني شامي شاهانو او دلویدیزې اسیا شاهانو ته لاړل او لاتر هغې لرې دافریقا په شمال کې دمصریوناني واکمنو ته هم ورغلل اودهغو پاچاهانو دنومونو په استناد، چې یادونه یې داشوکا په پنځم نمبر ډبر لیك کې شوی، ویلای شو چې دبودايي دین مبلغینو دمدیتراني په ختیزه سېمه کې داسیايي اروپايي او افریقايي هیوادونو لکه مصر، یونان او شام کې یې خپل تبلیغونه وکړل، خوله افغانستان څخه لرې داسیا لویدیځ لور ته یې چندان تاثیر ونکړ او حتی په افغانستان کې هم نیمه ختیزه خواد(کندهار ـ بلخ) دخط ختیځ لور ته دادین ومنل شو او په هغه نیمه لویدیزه خوا کې زردشتي دین لږ ډیر باقي پاتې شو او بیادا سلام

دمقدس دین دمبلغینو ترارارسیدلو هم ځایې پر ځاې و. لکه چې ددې مرحلو کلیات موږ ټولو ته روښانه دي.

کله چې اشوکا په ډبر لیك کې داسیا له یوناني واکمنو سره دبودائي دین دمبلغینو داستولو په اړه کې خبرې کوي دیونان باختري دمستقل سلطنت دموسس (دیودوتس) په باره کې څه نه وایي له دې وینا څرګندیږي چې تر دې وخته لاباختر خپلواکي تر لاسه کړې نه ده، لکه څرنګه چې په ډبر لیکونو کې دسلو سي شامي کورنۍ دیو تن ( انتیاکا ) یعنې دویم انتیوکوش دنوم یادونه شوې ، په ښکاره څرګندیږي چې باختر تر اوسه دسلوسي شامي کورنۍ دواکمنو له خوا اداره کیده.

نن دامسئله روښانه ده چې اشوکا پر ( ۲۵۸ م ز ) پرلویدیز په لور دبودایي دین دمبلغینو په استولو لاس پورې کړی و او " دیودوتس" پر ۲۵۸ م ز دیوناني باختري دولت خپلواکي اعلان کړې په دې ترتیب ددې دواړو پیښو ترمنځ د(۸) کلونو په شاوخوا کې مهالنی واټن دی.اوورانږدې تر دې چې یوناني باختر خپله خپلواکي اعلان کړي، داشوکا مبلغینو دافغانستان په ختیځ او جنوب لویدیځ کې له ګندهارا څخه دارغنداو تر سیمې پورې دبودایي دین په تبلیغ لاس پورې کړ. او دافغانستان په یوه برخه کې دموریایانو دبریو ارزښتناکه پایله همدغه دبودائي دین د نظریاتو خپریدل او چې وروسته دهغوي دسیاسي واکمنۍ له نسکوریدو څخه چې تر پنځوس کلونو یې ډیر دوام ونکړ. بودیزم ځای په ځای پاتې شو ریښې یې وځغلولې پرمختیا یې وکړه او پراختیا یې وموندله او زر کاله یې ډیر یې دوام وکړ او افغانستان دلومړۍ مسیحي پیړۍ په پای کې ددویمې پیړۍ په پیل کې دبودائي دین دیو ستر مرکز په حیث وپیژندل شو چې مبلغین یې کاشغر ، سنکیانګ او چین ته ورسیدل او دافغانستان په مرکزي غرنیو برخو کې دنهمې مسیحي پیړۍ تر پیل پورې موجود پاتې و.

۱۳۳۷\۱۳\۱۲

# شابهار

## په غزني کې بودايي "شاهي عبادت ځای"

هغه مقالې چې " دشابهار په دښته کې دغزنوي عسکرو درسم ګذشت میدان" او د "شابهار میدان اونغاره خانه "په نامه دي د ۱۳۳۷ هـ ش کال په اوږدو کې مې ژوندون مجلې او کابل راديو ته وليکلې، دادواړه مقالې پر ۳-۴-۱۳۳۷ او ۷-۹- ۱۳۳۷ نيټو له راډيو خپرې شوې ( ددې دواړو مقالو متن ددې اثر په دويم ټوك کې راخستل شوی)

شابهار مې داستاد ابوالفضل بیهقي دليکنو، امير فرخي اوامير عنصري له قصيدو څخه دعسکرو درسم ګذشت په میډان او دغزنوي عسکرو دعرض په ځای کې شرح ورکړې ده.

(شابهار) دغزنويانوله دورې دمخه او همداراز له اسلامي دورو وړاندې اصلاً دبودايي دين لويې عبادت ځای و. چې دموجوديت ربښتينوالي يې پر ۱۳۳۸ کال دلرغون پيژندونکي دهڅو په نتيجه کې کشف شو.

دسلطان محمود غزنوي دارامګاه باغ او دروضې دکلي جنوب لويديځ ته په درې کيلو مترۍ کې دلويې او پراخې دښتې په منځ کې (چې حتماً همغه دغزنويانو دوخت مشهور دشابهار دښته ده) يوه دډبرو غونډۍ پرته ده چې نن دعوامو په ژبه

(تپه سردار) (تیپه نقاره) او د (بتخانې) په نومونو یادیږي داهر یو نوم فولکوري توضیح لري چې دلته یې دشرحه کولو امکان نشته اویوائې د (بتخانې) وجه تسمیه دپاملرنې وړ ده او راښیي چې دزمانې په تیریدو، ورانیو او کنډوالو سره سره دعوامو دخاطرو په دفتر کې دبوایي عبادت ځای په واقعي مفهوم او بودتون پاتې دی.

(شابهار) یو ترکیبي نوم دی او له دوه وییو څخه جوړ دی (شا) چې همدغه د (شا) دکلمې متعارفه ده او بل (بهار) چې داکلمه دسنسکریت (یهاره) څخه اخستل شوې ده چې نسبت یې بودایي عبادت ځای ته کیده چې په سلګونو او زرګونو (ویهار) کلمې مو دافغانستان په بیلا بیلو برخو کې لکه هډه، کاپیسا، کابل، بامیان، غزني، بلخ، فرخار، سمنګان، کندهار او نورو ځایونو کې درلودلې چې له هغو څخه یو دبلخ د (نوبهار) خاطره پاتې ده او ډیر شهرت لري، چې داهم ترکي نوم دی او اصلاً له دوه کلمو (نوا) او (یهاره) څخه جوړه ده چې لومړۍ د(نوي) او دویم هماغه دبودایي عبادت ځای مانا درلوده او دا (نواویهاره) په دري ادب کې (نوبهار) شو که تردې پکې نوره زیاته څیړنه وکړو د(نوبهار بلخ) په شهرت به بسیا شو.

ترکومه ځایه چې دګرځنده چینایانو له یادښتونو اود عربي منابعو له تذکرو څخه څرګندیږي دسلګونو اوزرګونو ویهارونواوبهارونو ترڅنګ مو ډیرې او شاهي عبادتګاوې درلودې چې یو شمیر یې دشابهار په نامه او صفت مشهورې وې.

پرته له شکه په کابل، هډه، بګرام، غزني، بامیان او حتماً په نورو هغو ځایونو کې چې پورته مې یادونه وکړه (شاویهار) او (شابهار) نومونه درلودل چې دهغو دموقعیت ټاکنه به دلرغون پیژندونکیو هڅې اوڅیړنې روښانه کړې.

لکه څنګه چېددې اتو کلونو په ترڅ کې دایتالیا دلرغون پیژندنې پلاوی د غزني (شابهار) له کیندنواو څیړنو وروسته دهغه ځای موقعیت، شکل او ابادۍ دطرز ترڅنګ نور ډیر جزئیات روښانه شوي دي ددې کشفیاتو په ترڅ کې برهمي لیکنې چې دریمې یا څلورمې مسیحي پیړیو پورې مربوطیږي او نورې له ختینې بودایي وړې مجسمې او ددې ترڅنګ د ۱۰ – ۱۲ متري لویو مجسمو دشواهدو پیداکیدل اونور ددې عبادت ځای دجزئیاتو نور اړخونه دي چې څرګند شوي ددې ټولو شرح په دې لنډه لیکنه کې امکان نه لري.

دغزني دشاه بهار عبادت ځاي دلويې صوفي چارچاپيره څونورې وړې صوفي هم کشف شوي چې څلورو خواو ته زمينې لري چې دغزني بت پرستانو دنورو ډيروبيهوده کيسو ترڅنګ فکر کاوه چې (کله چې بودا دهوا له څپو راښکته شو په همدغه ځاي کې چې دغزني د (شا بهار) عبادت ځاي دی کيوت، البته چې په بودايي داستانونوکې يې دښکته کيدو ځاي د (شانکارا) په نامه چې بنارس ته نژدې يوه سيمه ده ښودل شوی دی.

په دې وړوکي مقاله کې اساسي مقصد دادی چې (شابهار) دغزنويانو په دوره کې درسم ګذشت اومذهبي جشنونوشريك ميدان وُ، اصلاً تر اسلام دمخه د اوسيدونکو دبودايي دين عبادت ځای و چې د (شاهي معبد) يا عبادت ځای په نامه ياديده او ددې ډبرينې غونډۍ څخه دغزني ښار ډير لرې ښکاريده.

لکه څنګه چې مې شل کاله دمخه ( دافغانستان پخواني تاريخ) په دويم ټوك ۵۴۳ او ۵۴۴ مخونو کې اوهمدارنګه (دافغانستان تاريخ) په دويم ټوك چې پر ۱۳۳۶ کال دتاريخ ټولنې له خوا چاپ شوی شرحه ورکړې چې يو له شابهارونو څخه دکاپيسا يا بګرام او يا هم دګلبهار په لمنوکې دغوربند ددرې په خوله کې واقع و چې دجبريل دزوې ابراهيم په امر ديحی دزوي فضل پر وخت چې دهارون الرشيد زمانه وه پر ۱۷۶ يا ۱۸۶ ه ش کال وران کړای شو.

ددې لپاره چې دغزني د (شابهار) په هکله علمي هڅې جاري دي نوځکه ډير دجزئياتو په نتايجو پسې نه ګرځم او هيله لرم چې په دې اړوند به په راتلونکي کې له هره اړخه پراخې مقالې وليکو.

۹-۶-۱۳۳۹

# په افغانستان کې بودايي

# مبلغين

افغانستان او هند لکه دنورو هېوادونو په څير سره خوا تر خوا او متقابل واقع دي چې په بېلا بېلو تاريخي مواردوکې يې يو پر بل نفوذ او اغيزه درلودلې چې اثار اونښې نښانې يې په دواړو هيوادونو کې محسوسيږي.

په افغانستان او هند دواړو هيوادونو کې متقابل اثار او اغيزې ډيرې غښتلې دي چې شواهداو نښې نښانې يې ډيرې څرګنديږي.

پر افغانستان هندي بنستيز او پراخ اغيز دبوديزم خپريدل دي چې دسند داندوس له رود خاني څخه يي دراتيريدوله ورځې څخه په افغانستان کې ددوام د وروستۍ ورځې پورې له زرکلونو څخه واوښت او ددې يوزر کلونو په اوږدو کې يې ددې هيواد داوسيدونکو په فکر او دودانيوپه جوړښت کې ژور او پراخ اغيز ترسره کړی دی.

داچې څنګه، څه ډول او کله بودايي دين په افغانستان کې خپور شو؟ دې پوښتنې چې ددې هيواد پر برخليک يې يو بشپړ بدلون رامنځ ته کړی، دپوهيدلو او پلټنې وړ ده.

ټول پوهیږو چې بودايي دین په ۶ م ز پیړۍ کې له (ساکیاموني بودا) سره دهند په خاوره کې څرګند شو، چې نژدې درې پیړۍ دادین دهند په خاوره کې محدودو، تر هغو چې د (موریا) یا په پخواني هند کې دلومړي سلطنتي کورنۍ له خوا منځ ته راغی.

(چندراګوپتا موریا) ددې سلطنتي کورنۍ موسس و او ددې لړۍ ددویم پاچا (پاندوسارا) تر مرګ وروسته یې زوي (اشوکا) واکمنۍ ته ورسید او نوموړی دواکمنۍ پر لسم کال ۲۴۹ م ز کال بودايي دین ته ورداخل شو چې ددې دین دېر مختیااوپیاوړتیاله پاره یې ډېرې هڅې او هلې وکړې.

ددې زماني له مهمو پیښو څخه یوه هغه دیوې لوی مذهبي غونډې جوړیدل وو چې په (پتالي پوترا) یعني اوسنۍ (پټنه) کې چې هغه مهال دموریا د امپراطورۍ پلازمینه او دهند له مشهورو ښارونو څخه شمېرل کیده ترسره شوه.

غونډه دمشهور عالم (موګالي پوتاتیسا) په ریاست او د روحاني مشر اوپاچا (اشوکا) تر سرپرستۍ لاندې وشوه، په دې غونډه کې ډېر ارزښتمن تصمیمونه ونیول شول، دبیلګي په توګه دمذهبي قوانینو تنظیم، ترتیب اودبودائي دین دخپریدلو دپاره دهند په دننه اوله سرحدي حدوداتو نه دباندې دمبلغینو استول په هند کې دمذهبي غونډې ډېر پام جنوب پلو په ځانګړي توګه د "سیلان" خاورو ته و لکه څنګه چې اوس بودايي دین په هندوستان کې له منځه تللی مګر دسیلان په جزیره کې په ښه قوت او قدرت دوام لري او دهغه هیواد رسمي دین پیژندل شوی.

بله نقطه چې مذهبي غونډې ته دپاملرنې وړ ده هغه داندوس (سند) درود لویدیزې خوا سیمې یعنې داوسنی افغانستان خاورې وې چې هغه وخت یې دجنوب یوه برخه دارغنداو تر سیمې پورې دموریایانو له خوا فتح شوې وه او په نیمه نوربرخه کې شمال لور ته یونانیان مېشت وو. کشمیر او ګندهارا ته دمبلغینو داستولو دموضوع یادونه داشوکا په یو شمېر ډبرلیکي فرمانونو کې شوې ده، مثلاً "۱۳" نمبر فرمان دمبلغینو داستولو په باره کې دی او کومو ځایونوته چې یې استولي هم لوستل کیږي. همدغه شان په "۵" نمبر فرمان کې دنوروځایونو په ترڅ کې د "ګندهارا" دنامه یادونه هم شوې ده، تر کومه ځایه چې له دې منابعو څخه څرګندیږي، یو له دې مبلغینو څخه چې دکشمیر اوګندهارا په لور استول شوي وو

مجهان تیکا یامدهیان تیکا نومیده، پرته له هغه دوه تنه نور هم له هغه څخه لرې دسند درود لویدیز پلو ته استول شوي چې نومونه یې په لاندې ډول دي:

"دهه ماراکي تا" او " مهاراکي تا" چې دهمغه په جغرافیایي اصطلاح یو یې "لویدیز هیوادونو" ته او بل یې یونان ته استولی وُ.

لکه څنګه چې دهند لویدیزې سیمې داوسني افغانستان سیمې دي او یونانیانودهمدې هیوادله شمال برخې څخه دبحر روم تر غاړو او مصر دخپلې واکمنۍ په کړۍ کې راوستی و، نو په اسانۍ سره اندازه لګیږي چې داشوکا مبلغین ګندهارا أو دافغانستان نورو سیمو ته تر راتلو وروسته دلویدیز پر لور ورلندې تللي دي.

په دې کې شك نشته چې په خپلو ډبر لیکونوکې په ویاړې چې مبلغین یې "یاوانا" یعنې یونانیانوته استولي دي. دتیر کال تر پیل پورې چې داشو کا ډبر لیك په کندهار کې کشف شوې نه وه دا ( یاوانا) یې ډیر لرې لټاوه، مګر اوس څرګنده شوه چې دکندهار په یوه سکندریه کې چې دارغنداو رودخانې ته نژدې ده ډیر شمېر یونانیان میشت وو او اشوکا ډیره هڅه کړې ده چې دوي بوذایي دین کې داخل کړي نو ځکه یې دهغوي په ژبه فرمان په هغه ډبر لیك ورته کیندلی و چې تازه دچهل زیني ترڅنګ موندل شوی دی.

نو ویلاي شو چې بودایي مبلغین داشوکا په ژوندانه ددریمې م ز پیړۍ په لومړۍ نیمایي کې ددین دتبلیغ له پاره دافغانستان جنوبي برخو ته راغلي او دغه دین ته په رونق ورکولو کې بریالي شوي، ځکه چې څه دپاسه یو زر کاله دادین په دې خاوره کې تم شوی.

۱۴-۳-۱۳۳۸

# کوشانیان دافغانستان په تاریخ کې

دخیړنې دلمنې په پراخیدو او ددرسي، مسلکي او افغاني کتابونو دخپریدو په وجه به نن سبا په افغانستان کې داسې څوك نه وي چې هغه د (کوشان) یا (کوشاني) نوم نهٔ وي اوریدلی دالوړ او مشهور نوم هغه اوازه ده چې دګاونډیو هیوادنو لریوسیمو ته هم رسیدلی دی.

کوشانیان د (سیستي) یا(یوچي) په نامه توکی له مرکزي اسیا څخه پورته شوی،په افغانستان کې یې دیو ځواکمن او مقتدر سلطنت په تشکیل لاس پورې کړی او دهند او پاکستان دپراخې نیمې قارې په فتوحاتو بریالي شوي دي.

له دې سره سره دکوشانیانو تاریخ درې پړاوونه لري چې لومړی یې په مرکزي اسیا او دریم یې په نیمه قاره هنداو پاکستان کې تیریږي او هغه ستره اومهمه مرحله یې چې منځنی پړاو دی په افغانستان کې تیره کړې ده، اودادکوشانیانومهمه او تاریخي دوره ده چې دهغې په اوږدو کې دافغانستان دمدنیت خیزې خاورې له خوې بوې او کړو وړو سره وخت تیر کړ او دباختر دمتمدنو خلکو له مدني خاورې سره په تماس یې دسلطنت نظام جوړ ددین، فرهنګ ، رسم الخط ادبیاتو، هنر صنایع او پرتمینو ودانیو خاوندان شول.

لکه څرنګه چې ختیزې چیني (منابع) او لویدیزې یوناني منابع رابښيي کوشانیان دهغو سختو جګړو په ترڅ کې چې له هیوانګنو یا (هنونو) سره منځ ته راغلي په ۷۰ م ز کې دامو له سیند نه راتیر او په باختر کې یې دیوناني باختري پاچاهانو کورنۍ ونیوله، ددوي داوسیدلو تر ټولو مهم مرکز دهندوکش په شمال کې دبغلان سیمه ده، چې دکوشانیانو ددین اوفرهنګ اثار او نښې نښانې یې له مختلفو برخو څخه کشف شوي دي.

کوشانیان پنځوس کاله دمخه ترمیلاده دکابل اوکاپیسا حوزو ته ورداخل شول او دیونانیانودوروستی پاچا ځاي (کابل) یې ونیو، او په بګرام کې یې دیوناني ښار ترڅنګ یو لوی، نوی او مستحکم ښار جوړ کړ اوداښار دلویوکوشانیانو دکورنۍ ددوبي پلازمینه شوه.

ددوي پلازمینه (پایتخت) مود دې له پاره یاد کړ چې لویو کوشانیانو پرته له بګرامه دوه نور مرکزونه هم درلودل چې یو یې په (پاروشاپورا) یعنې پیښور کې او بل یې دګندهارا په یوه منځنۍ نقطه کې و.

دلویو کوشانیانو دوره دمسیح له پیل نه پنځوس کاله وړاندې شروع او ددریمې مسیحي پیړۍ تر لومړۍ نیمایي پورې دوه پیړۍ وخت نیسي او دا دوه پیړۍ دپخواني افغانستان په تاریخ کې له لویودوروڅخه شمېرل کیږي.

له څنګه چې ساساني ایران دساسانیانوپر وخت (ایرانشهر) نومول شوی وهمدارنګه افغانستان دکوشانیانو پر وخت پر کوشانشهر یې شهرت ترلاسه کړی و.
وروسته له هغې چې کوشانیانو په کوشانشهر کې میشت او ځاي په ځاي شول دنورو هیوادونو دفتح کولو له پاره ې دشمال شرق په لور چیني ترکستان یا سنکیانګ ته اودشرق په لور یې دهندنیمې قارې او پاکستان ته مخه وکړه.

په پخواني افغانستان کې دلویو کوشانیانو دوره یوه لویه عمراني(آباده)، مذهبي هنري او ادبي دوره ده چې دهغې اثار او شواهد دسکو، عبادت ځایونو لوړو چوترو، تورل شویو مجسمو په بڼه پاتې دي چې دهغې دورې دهرې پاتې شونې ډلې مطالعه ځانګړې څېرکي. رسالې او کتابونه غواړي.

دکوشانیانو دورې ته ځکه (لوي) صفت ورکړی شوی چې په دې دوره کې په مختلفو برخو کې لکه حیاتي، مدني، مذهبي او فرهنګي چارو کې ډیر بې ساري

پرمختګ په خپله کوشانشهر( دهغې دورې افغانستان) او نورو فتحه شویو سیمو کې ترسره شوی دی.

په دغه دوره کې ډېر پرتمین بودایي عبادت ځایونه په ګندهارا (هډه اوپیښور) په کاپیسا کې دپهلوان غره ترڅنك، بګرام کې، دچاریکا د لویدیځ لور ته په توپ دره کې او نورو ډیرو سیمو کې جوړ کړاي شوي دي ،داعبادت ځایونه یواځې دبودیزم له پاره ځانګړي نه و، لاچې په دې عصر کې ډیرو مذهبونو آزادي درلوده، یوله هغو کلونوعبادت ځایونو څخه چې بودیزم پورې اړه نه لري هغه دسره کوتل اورتون دی چې لـه شپږ کلونو راپه دې خوا دافغانستان په شمال کې کشف شوی دی.

دافغانستان کوشاني مبلغینو بودایي دین دختیزي اسیا تر وروستیو ځایونو خپور کړ،همدارنګه ګلکاري په نوي او مذهبي رڼا کې ددې جوګه شوه چې ډیرې ښکلې ابادۍ او ګنبدونه یې جوړ کړی چې دیو شمېر پاتې شونو په لیدلو یې نن ورځ هم خلك حیرانیږي.

په افغانستان کې دیوناني بودایي مجسمه تورونې مدرسې ډېر پرمختګ وکړ او په ځانګړي توګه دکوشانیانو په دوره کې ددوه پیړیو په اوږدو کې یې بې شانه پرمختیا او پیاوړتیا وموندله چې په دې دوره کې دوړو او ډیرو لویو مجسمو جوړول دود و. پخپله کوشانشاهانو او دسلطنتي کورنۍ غړو دمجسمو او کالبدونو توږلو ته ډیر زیات ارزښت ورکاوه چې دافغانستان له بیلا بیلو سیمو څخه ددې حقایقو شواهد راڅرګندیږي.

دافغانستان په پخواني تاریخ کې دسیاست او اداري چارو له نظره دکوشانیانو دوره یوه لویه دوره ګڼل کیږي اوهره ورځ دنویو توږل شویو مجسمو، ډبر لیکونو،سکو اومډالونو موندل په پخوانیو اسنادو ورزیاتیږي چې دلویوکوشانیانو ددورې عظمت دافغانستان،ختیځ او اسیا په تاریخ کې ثبت او سجل کیږي.

۱۳۳۸-۱-۵

# کجولوکدفیزس

## دافغانستان لومړنی کوشاني پاچا

کوشانیان چې د (یوچي) قبیلې په نامه دمرکزي اسیا د(سیستي) له کتلې څخه بیل شوي او دډیرو فتوحاتو دترسره کولو په وجه یې دختیځ په لور پر هند او پاکستان کې شهرت ترلاسه کړی. خو وړاندې له مرکزي اسیا او هند څخه یې په افغانستان کې ځانګړی او اساسي نقش لوبولی دی او دهغوي دوره چې په لویو او وړو کوشانیانو ویشل شوې دلرغونی افغانستان له لویو تاریخي دورو څخه ده.

داکوشانیان چې د(یوچي) په نامه یې هم یاد کړی دی. ځانته کورنۍ او پاچاهان لري چې د هغو لومړی سلطنتي کورنۍ د (کدفیزس) په نامه یادیده او لومړی پاچا یې "معمولاً کدفیزس" یا "کوزولاکدفیزس" نومیده او په (۸۷-۴۰مسیحي) کې ژوندی و، زیاتره په دې عقیده دي کله چې کوشانیان دآمو له سیند نه راپورې وتل او دهندوکش شمال لور ته دباختر سیمو ته ورسیدل، دوي پنځه قبیلې وې او هرې قبیلې خپل مشر لاره په دوي کې دیوې قبیلې مشر ( کجولوکزفیزس) څلور نورو ته تر قناعت ورکولو ورسته دپاچاهی اعلان وکړ دهغه نوم په چیني ماخذ کې د (کیوتسوکیو) او دهغه په خپلو سکو کې د ( کوزولا کدفیزس) یا (کوزولوکدفیزس) په بڼه یادشوی دی. دده نوم داول یالومړني مانا

ورکوي (کوزولو) یا (کوزولا) اویاهم (کجولو) همدارنګه دویمه کلمه دده د کورنۍ نامه دی، نو په همدغه مناسبت هغه د (لومړی کدفیزس) په نوم هم یادشوی،

کله چې دوي له امو سیند نه دهندوکش شمال لوري ته راتیر شول دپنځو واړوقبیلو مشرانو دملوك الطوایفي په ډول واکمنۍ درلودې ترهغې چې د (کوي شوانګ) دقبیلې مشر چې همدغه (کجولا) و پر نورو یې بري ومونداوپه ۲۴۰ م کال کې یې دپاچاهۍ اعلان وکړ. داوخت دباختر اصلي اوسیدونکی چې دچیني منابعو له مخې یې (تاهشیا) ورته ویل، دوي سوداګر او مالدار خلك و چې دهغوي مالداري او شتمني دکوشانیانو ددولت په جوړښت کې ډیره اغیزه درلوده.

کله چې کوشاني لومړی فیزس دپاچاهۍ اعلان وکړ، دخپل نفوذ دډیر والي لپاره یې ددوو خواوو څخه په فعالیتونولاس پورې کړ. یو لویدیځ خوا ته د(پارتیا) په لور او بل دهندوکش جنوب خوا ته د (کي پن) او (کاونو) یعنې دکاپیسا (کوهدامن او کوهستان) او کابل په لور.

دکوشانیانولومړی پاچا کجولاکدفیزس دکابل سیمه دیونانیانو له وروستني پاچا (هرمایوس) څخه ونیوله او داخبره دهمغه وخت سکې په ښه ډول څرګند وي. ځکه اوس داسې سکې په لاس لرو چې په هغې کې دکوشانیانو دلومړي پاچا (کجولاکدفیزس) اودیونانیانو په کابل کې دوروستي پاچا (هر مایوس) نومونه لیکل شوي له هغو سکو څخه معلومیږي چې کابل ته دکوشاني پاچا په رسیدو یې دیونان واکمن ترماتې وروسته دهغه له سکو څخه کار اخستی اویوازې خپل نوم یې پکې ورزیات کړی دی چې یو څه موده وروسته یې دخپلو سکو په جوړولو لاس پورې کړی، هغه وخت یې دیوناني پاچا نوم( هرمایوس) له منځه وړی، او خپل نوم یې په سکو کې کیندلی دی.

له ویلو دې پاتې نه وي چې په همدغو سکو کې یې هم ځانته د (کوشانیانو دینادا رئیس) ویلی دی او له دې څخه هم څرګندیږي چې کوشانیان دقومي عنعنوي عادت له مخې دپاچاهۍ پر مقام هم دریاست دمقام خطاب باك نه بولي. خوهمدغه دکوشاني رئیس چې په ترتیب سره یې دخپل نفوذ او واکمنۍ لمن پراخه کړه، نو خپل القاب یې له لوې نه پسې لوی کړل، تردې پورې چې ځانته یې (شاه شاهان) او (داسمان زوي) وویل. لکه څنګه چې ټولو ته معلومه ده دادګاونډیو هیوادونو دایران دپاچاهانو او دچین دامپراطورانو القاب وو.

دکوشانیانو لومړی پاچا کجولا کدفیزس چې کله په کابل کې دیونانی وروستی واکمن دنفوذ ساحه تنګه کړه او ټول ځایونه یې تر ونیول نو بیا یې دادرانه (شاهنشاه او داسمان زوي) القاب ځانته غوره کړل چې وروسته تر هغه نورو کوشاني شاهانو هم پسې تکرار کړل.

وړاندې مو وویل چې (کجولاکدفیزس) خپل ځان د( دیندار) په صفت هم یادکړی، باید ووایو چې کوشانیان له هغه وخته چې دامو پر سیند د هندوکش شمال لور ته راتیر شول دیندار خلك وو او ټولو کوشاني پاچاهانو ددین داصلاح او پیاوړتیا لپاره ډیرې هڅې کړي او ددوي لومړی پاچا (کجولاکدفیزس) هم یو ډیر دیندار شخص وو.

دچینایي منابعو له مخې لومړی کدفیزس څه دپاسه (۸۰) کاله ژوندی و. او دهغې اندازې له مخې چې هغوي یې ټاکي باید په ۷۸ م کال کې مړشوي وي، ځکه چې دواکمنی نیټه یې په ۴۰ م کال کې ټاکي، نو په دې حساب به یې ۳۸ کاله واکمني کړې وي.

کله چې کجولا کدفیزس دهندوکش جنوب پلو ته راغی دکاپیسا اوکابل په سیمو یې بسیا ونکړه اودخپلې واکمنۍ ساحه یې په هیواد کې جنوب پلو ته تر وروستي سرحده او همداشان لویدیځ لور ته تر وروستي سرحده وغځوله.

دکجولا کدفیزس مرکز اوپلازمینه(کاپیسا) یا بګرام و او دسکو په کیندلو کې یې دیونانی ((هرمایوس)) او دروِمن دامپراطوري لکه د ((اګوست)) ((کونستانتن)) او ((کلودیس)) دسکو تقلید کړی دی. دابايد هیر نه کړو چې دروِمي امپراطورۍ سکې دتجارتي راکړې ورکړې په وجه افغانستان ته راوړل کیدې، تو ځکه کوشاني پاچاهانو دخپلو سکو په کیندلو کې دهغو له سکو نه تقلید کړی دی.

۱۳۳۷\۶\۱۹

# کنیشکا تاریخي پاچا او امپراطور

کنیشکا دافغانستان ،هند او مرکزي اسیا په لرغوني تاریخ کې پیژندل شوی او مشهور نوم دی، دښوونځیو له زده کوونکیو نیولي بیا تر پوهانو پورې ټول دنوموړي شخصیت په اړوند لږ ډیر معلومات لري، اودالږ ډیر معلوات نظر په زمان اومکان سره توپیر لري، په دې مانا چې دمرکزې اسیا په پخوانیو منابعوکې کنیشکا دبودايي دین دمبلغ په توګه اومشهورې (یوچي) قبیلې ته منسوب ګڼل شوی، په هند کې ډیر شمېر خلکو هغه دبودائي کیسو له مخې دیو نیمه افسانوي او نیمه خیالي پاچا په توګه معرفي کړی.

•په دې کې شك نشته چې دهند له فاتحانو څخه یو هم کنیشکادی او هغه لکه دافغانستان دمخکنیو پاچاهانو په څیر په تدریج سره له بګرام اوګندهارا څخه لومړی ځان دپیښور سیمې ته رسولی او بیا دپنجاب له سیندونو څخه ورتیر او دهغه اثارو په شهادت چې دډیلي په جنوب کې موندل شوی، ځان یې دهندوستان مرکز اولاتر هغې هم وړاندې رسولی وُ.

کنیشکا په هند کې ډیر مشهور دی، دبنارس، ډهلي او ګنګا د سیمې هندیانو نوموړی دیوهندی پاچا په توګه پیژندلی، خودمرکزي اسیا اوهندوستان دمورخینو او منابعو له نظره یو مطلب په کُلي ډول لویدلی او هغه داچې کنیشکا په افغانستان دکوشانیانو یومقتدر پاچاؤ.

یو ډیره ارزښتمنده او په زړه پورې نتیجه چې دسره کوتل په کیندلو کې زمونږ لاس ته راغلې داده چې دکنیشکا په اړوند چې څنګه، هندي بودایي منابعو فکر کاوه هغه خیالي، تصوري، اونیمه داستاني پاچا نه و، بلکه حقیقت او تاریخي وجودیې لاره، چې تر کلونو انتظار وروسته مو دهندوکش په شمال کې دپخواني بغلان له ولایت څخه لوې عمراني اثار، سکې، مجسمې او دهغه ډېر لیکونه تر اوسه کړي دی، نوځکه هغه یو ځل بیا دتاریخ په پاڼو کې په واقعي څیره دیومقتدر او باعظمته پاچا په حیث ګورو.

دهغو معلوماتو په رڼا کې چې په دې وروستیو وختونو کې تازه دسره کوتل دکیندلو په ترځ کې تر لاسه شوی څرګنده شوي ده چې کوشا نشاه کنیشکا ددویمې مسیحي پیړۍ په دویمه نیمایي کې دهندوکش دواړو خواو ته یو مقتدر دولت تاسیس کړی و، چې دلرغوني افغانستان دډیر مقتدرو دولتونو په قطار کې شمېرل کیږي.

دتازه معلوماتو په رڼا کې کنیشکا تردې وروسته هندي واکمن ګڼلی نه شو، بلکې هغه باید په صحیح او اساسي ډول دافغانستان کوشاني پاچا او دهندوستان فاتح وګڼو.

لکه څنګه چې محمود زابلي، سلطان غیاث الدین او معز الدین غوري په افغانستان کې مقتدر اوپیاوړي دولتونه تشکیل او پلازمینې یې هم په فیروز کوه او غزني کې موجودې وې. وروسته له هغې هر یو په خپل وار سره دهندوستان په بیلا بیلو سیمو کې سوبې وکړې، هلته یې مرکزونه جوړ او په هغه پراخ، هندوستان کې یې واکمن وټاکل، لوی کنیشکا هم وړاندې تر دې چې په هندوستان کې سوبې وکړي دلرغوني افغانستان په دننه اوتر ټولو سرحداتو پورې یې یومقتدر دولت تشکیل کړ چې په کوشاني دولت شهرت لري، البته چې وړاندې ترکنیشکا نور هم په کوشنانیانو کې واکمنی ته رسیدلي دي خو دکنیشکا پر وخت دکوشانیانو قدرت خپل لوړ حد ته رسیدلې و.

دعلمي، هځواو لرغون پېژندونکيو دڅېړنو له مخې چې په دې وروستيو اتو کلونو کې منځ ته راغلې په قطعي ډول ثبوت ته ورسيده چې کنيشکا دافغانستان په شمالي برخو کې غالبا په بلخ او حتماً په غوري او بغلان کې لوی مرکزونه او ښارونه درلودل او پرته له شکه دحکمرانۍ يو ستر مرکز يې داوسني پلخمري جنوب لويديځ لور ته په شل کيلو ميترۍ کې په سره کوتل کې و، او تر دې حده يې واك او ځواك موندلي و، چې پرته له مبالغې کولی شو نوموړی دروم دامپراطورانو اودچين دفغفورانو په قطار کې وشميرو، ددې دواړو لويوختيزو او لويديزو هيوادونو امپراطورانو له کوشانې دولت سره ددوستانه اړيکو احتياج محسوساوه

نو ويلای شو چې کنيشکا پاچا دافغانستان دمقتدر و پاچاهانوله ډلې څخه و چې دفتوحاتو له مخې يې دهندوستان زړه ته ځان ورساوه ډيرې سيمې يې فتح او دکوشاني افغانستان فرهنگ او تمدن يې په لوی هندوستان کې خپور کړ او هلته يې دخپل واك چلونې لپاره يو شمېر ښارونه او مرکزونه جوړ کړل.

۱۲_۱_۱۳۳۹

# سور کوتل

له ۱۳۳۰ (۱۹۵۱ ز) کاله راپدیخوا نه څوکاله کیږي چې د (سره کوتل) نوم په کورنیو او بهرنیو جرایدو او علمي مجلو کې اخستل کیږي او ورځ په ورځ دانوم نور هم پورته کیږي. ولې دانوم دفرهنګ، لرغون پیژندنې اوتاریخ ډګر ته راووت ؟

سورکوتل ، لکه دتیروشویو سلګونو کلونوپه څیر کوتل نه دی، بلکې دلرغون پیژندنې او دافغانستان دتاریخ یوه حیرانوکې نقطه ده او نه اویاکاله کیږي چې هلته دافغانستان دمذهبي میراث ښکلي او پرتمینې بیلګې کشف شوي دي.

دافغانستان داسلامي عصر په تاریخ او ادبیاتوکې دبلخ او ګشتاسپه، زردشت او دقیقي، زردشتي دین او دبرزین مهر اومهر بر زین عبادت ځایونه، مزدیسنادین، زردتشتي حکیمان (طبیبان) او همدارنګه دتوران او دتورانیانو دحملې کولو او په نتیجه کې یې زرتشت دوژلو موضوع په څو څو ځله راغلې ده اوداسې څوك نشته چې دنظم او یا نثر دلوستلو پر مهال یې دا نومونه اوریدلي نه وي له دې حرفونو څخه دلرغونو دوروانعکاس له یوه عصره تر بل عصره اوله یوه نسله تربل نسله په تکرار تر موږ رارسیدلي دي.

مونږ ټولو اوریدلي وو چې په بلخ او دباختر په سیمو کې یو شمېر عبادت ځایونه وو مګر هیچا ویلي نشول چې چیرته؟ نه اویا کاله دمخه په یو ناڅاپي ډول یوه یادوه داسې ښتې چې دیوناني الفباء حروف پرې لیکل شوي وو دیو لږعلمي

هڅو ترځنګ دلوې مذهبي عبادت ځاې آثار دسره کوتل ترځنګ غونډۍ کې ځرګندي شوي، چې بیا وروسته دکیندلو په دوام سره لانوره هم ځرګنده شوه چې دایو لوې عبادت ځای و ځکه چې ددې ځای مرکز یا داور تانه له ایرې او نور شواهد څخه پرله پسې راڅرګند شول چې په پاي کې دغه عبادت ځای تقریبا رښتینې بڼه غوره کړه.

ایادغه اورتون یا عبادت ځاي دپخوانی باختري مزدیسنایي دین پورې چې عوام یې اتش پرستي بولي کومې اړیکې لري؟

دکوشاني دورې دیوشمیر آثارو له مخې چې ډیر شمیرې په کنیشکا پورې اړه لري او دهغو مجسمو لـه مخـې چـې دکوشـانیانو دکورنـۍ دغـړو انځورونـه پـرې جوړدي، ځرګندیږي چې دسره کوتل عبادت ځاې پـه دویمـې زېږدې پیـړۍ او پـه ځانګړي توګه دمقتدرپاچا کنیشکا او دهغه یوتن وارث هوویشکاپورې اړه لري، پردغه ترتیب دزرتشت او دکنیشکا او هوویشکا د زمانې ترمنځ زر یا یو زر دوه سوه کال فاصله ده.

نوویلاي شو چې دادکوشانیانو عبادت چې دبغلان په سره کوتل کې دود و، سره له دې چې دباختر دزرتشتي عصر خاطرې ترې ځرګندیږي خو هغه یو ځانګړی دیـن وُ اوپـه دې دیـن کـې ډیـرو سـلطنتي سـپېڅلتیاوو او پـاکیزګی یـا (کولـت دیناستك) په لوړه کچه یوځاې والی او ګډون مونډلی وُ.

دکاپیسا دپخوانیو کیسو نه یوه کیسه چې چینائي ګرځنده هیوا ن تسنګ هغه په اوومه مسیحي پیړۍ کې اوریدلې وه، نکل کاوه: (کله به چې کنیشکا په قهر شو ټول ځان به یې داور لمبه شو) برسیره پردې په دغه دوره کې به اور له سلطنتي قدرت څخه دجلا کوونکې علامې په توګه هم شمېرل کیده، لنډه داچې کوم مزدك یا عبادت ځاې چې په سره کوتل کې کشف شوی، ددې مزدك شهرت دلویو کوشانیانو پر دوره دویمه مسیحي پیړۍ کې دکنیشکا اوهویشکا پر وخت کې خپل اوج ته رسیدلي وُ، او دیوډول ځانګړي دیـن نمـایندګي یـې کولـه، چـې پـه آتش پرستـۍ کـې دکوشـاني سلطنتي کورنـۍ دپاکـۍ اوپـاکیزګۍ لـه پـاره یـو اخـلاص موجود وُ. چې ددې عبادت ځاي په حساسو برخو کې دکوشاني شاهانو دمجسمو موجودیت پورتنۍ مفکوره تائیدوي.

داور پرستو عبادت ځاي يا سره کوتل چې په پخوانی نامه يې دبغلان داور پرستو عبادت خاي بللی شو. دايو لوی او باعظمته ځای و ځکه ((بکولانګو)) يا بغلان چې يو لوی ولايت پر دغه نامه يې شهرت تر لاسه کړی و. ددې لوی باعظمته ومجلل عبادت ځاې دمرکز ختيځ لوري ته پر غونډۍ کې و. ډيرې زينې يې درلودې چې تقريبا (۷۰) پله پايې يې شمېرل شوي چې هر پته يې ۷ متره عرض درلود چې د بغلان دجلګۍ له خوا دغونډۍ په لور جوړې وې. دخوشحالۍ په لويو ملي ورځو کې به دبغلان اوسيدونکيو حتی دلريوسيمو خلکو هم دالمبې ليدلاى شواې او دلمبو په منځ کې به دکوشاني پاچا کنيشکا مجسمې له ډيرو ليرو سيمو ښخه څرګنديدې.

هغه لوی ډبرليك چې له نوموړي ځای ښخه په لاس راغلي دکوشانيانو دعصر په يوناني رسم الخط ليکلی شوی او پردغه ډبره دوه ځله دکوشاني پاچا کنشکا دنامه يادونه شوې ده او له دې ښخه پوهيدلای شو چې دغه مقتدر امپراطور دهيواد دمختلفو مذاهبو اواديانو مرسته او ملاتړ خپله دنده ګڼله، او ددې عبادت ځاې په جوړولو کې مستقيم دخيل و. کنيشکا دخپل بودايي ديانت په لرلو او دين ته په ځانګړې پاملرنه يې عبادت ځايونه ډير ښکلي او پرتمين کړي وو.

دافغانستان په شمالي برخه کې (بغولانګو) بغلان دخپل جغرافيائي پراخ مفهوم په لرلو دکوشانيانو دلومړی فرهنګي مرکز حيثيت درلود، او دعلمي هڅو په وجه دهرې ورځې په تيريدلو ددې سيمې دخاورو لاندې نوي شواهد راڅرګنديږي او په افغانستان کې چې دکوشانی دورې پر دوه زره کلن تاريخ کومه پرده پرته ده، هغه ورو ورو لرې کيږي.

۱۸-۶-۱۳۳۷

# هخامنشیان اودتاریخ پرمخ دافغانستان خاورې

هرهیواد تـاریخي، دمخـه ترتـاریخ،لرغونـې (پروتوهسـتوار) داسـتاني اونیمـه داستاني دورې لري، چې په هرې یوې مې څومره چې دراډیـو دخبرونو ټاکلي وخت مناسبه ګڼله رڼاچولې ده.

اوږدې دورې، تـاریخي،ترتـاریخ دمخـه درسـم الخـط اولیکنـې دورې دي، چـې زمونږ دهیوادلیکلي تاریخ دارپایانودیوې قبیلې هخامنشیانو له کورنۍ څخه پیـل کیږي.

اصلاً اریائي قبیلې چې هند ، افغانستان او ایران ته خپرې شوې دي یو وخت په شمال کې دامو سیند په اوږدو کې دسردریا او دخزر په څنډوکې یـوځای اوسیدلې، او بیـا وروسـته لـه بیلابیلـو لاروڅخـه دجنـوب پـر لـوري ښکتـه راغلـي دي، چـې دلویدیځ پر لوري دزګروس له غرونو اوښتي اودختیځ پر خواداباسین ترڅنډو خپرې شوې دي. لویدیځ لور ته له غیر اریائي وګړو سـامیانو (آشوریانو) سره اوهمدارنګه دختیځ پر لور داندوس یاسند پر لور له (دراویدي) وګړو سره مخـامخ شـول او ډیرې خونړۍ جګړې یې ترمنځ پیښې شوې . چې دلویدیـځ په جبهـه کې (مـاد) اریایـانو د (اشوریانو) مقـاومت مـات کړ او ددې په تعقیب سره د (هخامنشي) قبیلې دایـران جنوب پلو ته دفارس په سیمه کې دیـو مقتـدر سلطنت پـه جوړولـو بریالـی شـوې، او

ددې ټبر مؤسس لوی (سیروس) یا (کوروش) و، چې دلرغونې زمانې دستروشخصیتونو اونابغه وو په ډله کې شمېرل کیږي چې پر "۵۵۰ م ز" واکمنۍ ته رسیدلی دی، او پایخوږ یې بیا تر "۳۳۰ م ز" پورې ددوه سوه کلونو په اوږدو کې واکمني ترسره کړې چې دهغوي په ډله کې څو تنه (داریوش) او (خشایارشاه) ډیر شهرت لري .

دهخامنشیانو دولت چې لومړی یواځې دفارس په ولایت کې محدود و، ورو ورو یې دختیځ اولویدیځ پر لور پراخوالی وموند .تر دې پورې چې دولایتونو شمیره یې له ۲۸ څخه واوښته اوپراخوالي ساحه یې دهغه وخت دخلورو نویو اومشهورو سیندونو لکه داینوب ،نیل ، شیعون او جیحون ترسیمو یې پراخیته وموندله اودغه وخت لومړنۍ اریایي اوتاریخي امپراطوري منځ ته راغله

تاریخي دوره یا دافغانستان راټول شوي تاریخ همدغه دایران دهخامنشي له کورنۍ نه پیل کیږي،ځکه چې ددې دورې په یو شمېر کانو کې دځینو ځایونو اودهمغو سیمو دخلکو او حتی دسترو شخصیتونو دنومونو یادونه په میخي خط شوې ده .... او دیوشمیر شخصیتونونومونه یو شمېر مطالبو سره دتاریخ زړه ته سپارل شوي دي،نو ویلای شو چې ۵۵۰ م ز کال اویاد شپږمې م ز پیړۍ نیمائي دافغانستان دتاریخي دورې پیل دی، اوتراوسه داسې کوم ډېر لیک چې ددې خاورې په تاریخي پیښنو پورې اړه لري نه دي موندل شوي نو باید چې همدغه کال او همدغه زمانه دافغانستان دتاریخي دورې پیل وګڼو.

په دې کې شك نشته چې په دغه دوره او دغه زمانه کې دهندوکش شاوخوا سیمو کې ختیځ ، لویدیځ، شمال، جنوب پلو ته ټول خلك آباد وو اوډیر زراعتي،معدني او حیواني پیداوار یې درلودل، خلکو یې دوخت وسله په لاس درلوده او په هر ولایت کې دقوم مشرانو او سردارانو واکمني درلوده او دغه ټول ځیزونه له یوناني او ایراني منابعو هخامنشي پاچاهان په باختریش (بلخ) هارموا (دهري رود حوزه) هراویتي ( هر مندحوزه) زرنګا یادرانجیان (سیستان) تت ګوش ( غزنۍ مرکزي سیمې ) او ګندارا (ننګرهار او ټول مشرقي سمت) باندې تر یو لړ یرغلونو وروسته واك وموند او ددې ولایتونو نوم او شهرت دهخامنشي امپراطوري په فتح شویو ولایتونو کې وشمیرل شو.

دهخامنشیانو داداري دول ، څرنګوالی، دمالیاتو اخستل او نور ډیر مطالب مفصلې رسالې غواړي، خو یوعمده ټکي دادي چې بیا هم قومي او سیمه ایزو سردارانو په هر ولایت کې نفوذ او حکومت درلود چې استان بانو او ستاتراپانو به دهمدغو مشرانو په مرسته خپلې نائب الحکومتي دندې سرته رسولې.

ددې مقالې دلیکلو اساسي مقصد دادی چې دافغانستان دخاوري دمختلفو ځایونو او مشهورو شخصیتونو نومونه او همدارنګه ددې خاورې دیو شمېر تاریخي پیښو شرح په همدغه د هخامنشیانو په دوره کې لیکل شوې، او دافغانستان دتاریخ ډولو نه له همدغه وخت نه پیل کیږي.

دولایتونو دنومونو له یادونې دمشهورو شخصیتونو له کتنې او دځانګړو حیواناتو له لیدنې پرته دهرې سیمې خلك له خپلو سیمه ایزو جامو سره پر جمشید تخت یادهخامنشیانو پر پلازمینه په لویوتوږل شویو مجسمو کې ثبت او نقش شوي دي.

دافغانستان په لرغوني تاریخ کې دهخامنشیانو دوه سوه کلنه دوره دفرهنګ، معمارۍ سبك مطالعه، ادب او هنر له نظره ډیر ارزښت لري.

مونږ دفرهنګ او هنر په دنیا کې ډیر ځیزونو په یونانۍ دورې پورې تړو. داځرګنده ده چې دیونانیانو دوه سوه کلنه دوره حتماً پر ټولو هنري اوفرهنګي برخو اغیز لري، خو باید هیڅکله تر هغې وړاندې دهخامنشیانو دوه سوه کلنه دوره هیره نکړو. ځکه چې دډیرو فرهنګي، هنري او ادبي مسائلو پیل په هغې دورې پورې اړه لري. دایراني یوناني هنر، آرامي اوخروشتي لیك دود، یوشمیر معماري سبکونه دعمومي لاروجوړول، دلارو په اوږدو کې دکاروان سرایونو دجوړولو مفکوره. داړیکو پراخول دبحري لارو پیژندل او نور ډیر مطالب په دې دورې پورې اړه لري. باید ووایو چې دیونانیانو ددورې پیل له همدې دورې څخه کیږي.

۱۳۳۸-۱۱-۷

# بغلان

## دافغانستان په شمال کې دکوشانیانو لومړنی اداري اوفرهنګي مرکز

دنړۍ ختیځ پیژندونکی او په ځانګړي توګه هغه چې په اسیا کې دناځرګندو سیمو په اړه لږ ډیر معلومات لري، هغه ټولنه چې دمرکزي اسیاپه شمال دبیکران په لویو دښتو کې کوچیان یا دخیمو اوسیدونکي وو او دمسیح له وخت نه څو پیړۍ وړاندې خواره واره شوي وو چې د (سیت) او یاد(سیتي قومونو) په نامه یې یادوي.

مورږ دخپلو اوګاونډیو په فرهنګي او ادبي حلقو کې دغې ټولنې ته چې دمسیحیت له ځرګندیدو څخه پیړۍ دمخه زموږ دهیواد شمالي پولو بعني دآمو دسیند خواوو ته رانژدې شوي وو د (توراني) او (تورانیانو) په نامه یې یادولي شو.

هغه خلك چې موږ یې تورانیان اوغربیان یې سیتې بولي دآس په سپرلۍ کې ډیر ماهر،غشي ویشتونکي، جنګیالي، کېږدۍ اوسیدونکي او دنورو ډیر صفاتو لرونکي وو چې (اوستا او هشنامي) پیژندلي ډیرو دغسې قومونو دژوند په بیلا بیلو دورونو کې مدنیت هم درلود چې نر ډیره حده یې دیرغل، ښکار اوسوارکارۍ جنبه خپله کړې وه، دزور او ځواك ترڅنګ یې سترتیا هم درلوده، دسروزرو ځینې ځیزونو،نورو ګاڼو او دهغوي وسلو به دپړك وهلو په وجه سترګې بربښولې .دهغوي له قبرونو څخه چې معمولاً په ګنبدي ډول دخاورو له ډیریو نه جوړ دي دزیوراتو، وسلو اوحتی په هغو ځایونو کې چې هوا ډیره سړه ده. لکه سائیبریاکې دبافت ځنې ټوټې او یو شمېر قالینچې چې اکثرا دآستونو دپلان په بڼه جوړې دي لاس ته راغلي

دي. داډولنه جوپه پر جوپه لکه :اسکايي، تخاري، کوشاني او نور وخت پر وخت له مختلفو لارو څخه داسيا له شمالي او شمال ختيځو برخو نه لويديځ لوري ته راغلي دي او يو شمېر يې زموږ له هيواد سره موازي له سنددريا او آمو سيند څخه راتير او زموږ په هيوادکې تيت شوي دي.

دچين دپخوانيو مورخينو څخه يو تن دوه پيړۍ دمخه ترميلاده د (لويديځ هيوادونه) په نامه يوکتاب وليکه چې دلومړي ځل لپاره يې زمونږ دهيواد په اړه ليکنه کړې ده او هغه دغه دسيتي قبيله يعنې کوشاني (يوچي) يادکړې او هغوي يې په وړو او لويو ويشلي دي. حقيقت دادی چې يوچيان هغه مهال په کوشاني نامه مشهور شول چې په لومړي قبل ميلاد پيړۍ کې له آمو راتير او په باختر کې ميشت شول، او بيا وروسته ترهغې چې له پنځو قبيلو څخه يوه چې (کوي شوانګ) نوميده پر څلور نورو غالبه او دوروستي يوناني باختري پاچا هيلو کلس ځاي يې ونيو او د (کوشان) او (کوشاني) په نامه او صفت مشهور شول.

کوشانيانو دهندوکش په شمال کې ديونانيانيانو ځای ونيو( يوناني باختري) شاهان دهمدغه غره جنوب لور ته دکاپيسا حوزه کې بګرام ته داوسني کابل شمال لور ته خپل سلطنت ټينګ کړ. کوشانيان ياخودهندوکش ستونزمنې لارې او يا دمينځنۍ او يا په بګرام کې ديوناني باختري ځواکونو دمقاومت او يا خو هم دځواکونو دلاډير والي په وجه دافغانستان په شمال کې دباختر په لويديزو برخو کې پاتې شول،او په مختلفو سيمو کې په ځانګړي توګه دبلخ اوکندوز ترمنځ يې دجنګي کلاګانو اوښارونو په جوړولو لاس پورې کړ.

چې داوسني بلخ دحصار په لاندې بنيادونو کې ديو لړعلمي څېړو په ترڅ کې د کوشانۍ دورې اثار ددې وينا ثبوت دي.

هغه څه چې زه غواړم په دې مقاله کې يې څرګند کړم هغه دهندوکش په شمال کې دکوشانيانو د اداري،ودانيز او فرهنګي مرکز بغلان پيژندنه ده.

په دې کې شك نشته چې ددې وينا ثبوت هغه مهال څرګند شو چې هلته په سره کوتل کې اورتون او عبادت ځاي کشف کړاي شو او مخصوصاً وروسته دکنيشکا او هوويشکادډېر ليك له موندلو څخه چې په هغې کې لوی کوشانشا لوستل شوی داخبره لاثابته شوه چې دکوشانيانو دعروج ددورې يو لوې عبادت ځای په همدغه ځاي(بغولانګو) کې آباد و. بغولانګو دهمدغه بغلان پخواني نوميز

شکل دی چې اصله معنا یې د (اورمرکز) او (اور ځاي) دی او دخپل تاثیر اوشهرت په وجه یې دټول ولایت نوم په همدغه نامه ونومول شو.

لکه څنګه چې دهځو ،علمي څیړنو او یوناځاپي کشفیاتو نه اندازه لګیږي دکوشاني عصر دودانیزو اثارو شواهد دغه عبادت ځای او دې یوې نقطې ته لکه سره کوتل ځانګړې نه وو، بلکه دغه ټوله پراخه ساحه لکه (غوري) (دهن غوري)، (بغلان) او (دهن شیر) په برکې نیولې ده. دغونډیو او تپو دپاسه او په هوارو برخو کې چې اوس زراعتي ځمکې شوي دي په دغو ټولو کې دلویو کوشانیانودعصر دآبادۍ شواهد په پټ و څرګند ډول محسوسیږي.

په بغلان کې دغونډۍ دپاسه چې په تیرو وختونوکې (کافه ستاره) جوړه شوې یوه مجسمه په لاس راغلې دبغلان دبزکشۍ دمیدان په هغه برخه کې چې دغونډۍ دپاسه دنندارچیانو لپاره ځای هوارېده دعقاب په بڼه یوه توږل شوې مجسمه او نور څیزونه په لاس راغلي.

اودسره کوتل له تپې نه دوه کیلو متره لرې ختیځ لوري ته په هوارو زراعتي ځمکو کې یوه صفه چې له تیږو او خښتو جوړه شوې وه کشف شوې ده چې جګوالی یې (۱،۵۵ متره) اوږودوالی یې (۱۷،۵۰ متره) او پلنوالی یې (۱۴متره) دی. ددې صفې دپاسه یو شمېر پایې او دمجسمو ټوټې ولیدل شوې چې دتناسب له مخې ویلای شو چې دغې مجسمو پنځه متره جګوالی درلود اوتر اوسه معلومه نه شوه چې داستنې په کوم منظور جوړې او په صفه کې ځای پر ځای شوي دي.

له سره کوتل عبادت ځای څخه ددوه کیلو مترو په فاصله ایسته لویومجسمو چې پنځه متره لوړ والی لري دبغلان کوشاني عصر ته ډیر ارزښت ورکړی دی.

لنډه داچې داټول شواهدورو ورو تثبیتوي چې کوشاني پاچاهان دمخه تر دې چې دهندوکش سیمه یې بغلان ته اکلې وه، او په دغه ۶-۷ کلونوکې داسې شواهدلاس ته راځي چې ددې مفکورې ملاتړ کوي،دتاریخ دنیاتراوسه دلویوکوشانیانو دژوند له فصل نه په هیڅ خبر نهٔ دی او دالومړی ځل دی چې بغلان ته متوجه شول، په دغه وخت کې اودافغانستان په دغه نقطه کې دکوشانیانو دوراندې وختونو عظمت او لویوالی تر سترګو کیږي.

۱۳۳۷-۱-۱۶

# دبغلان ارزښت دلرغون پېژندنې له نظره

لرغون پېژندنې په دغه وروستيو پنځوس کلونو کې دکشفياتو او کيندلو په نتيجه کې څرګنده کړه چې په عمومي توګه دافغانستان خاوره دلرغونيو آثارو اوبېلابېلو دورو دخرابيو له نظره ډېره غني ده.

په دغو وروستيو پنځوس کلونو کې ددې هيواد په ځينو ځايونوکې څېړنې او کيندنې شوي دي او يو شمېر سيمو لکه هډه، بګرام،باميان بلخ، شترك، فندقستان، ککرك، ايبك، کندوزاونورو شهرت پيدا کړی او له هغو سيمو څخه کشف کړای شوي آثار دکابل په موزيم کې موجود دي.

په دې کې شك نشته چې ددغو ټولو سيمو کشف کړای شوي آثار دتاريخي اوفرهنګي دورو له نظره يوشان نه دي يوشمير آبادۍ چې هغه دبودائي دين عبادت ځايونه وو مشهور شوي، لکه هډه او باميان،همدارنګه په ځينو نورو ځايونو کې داسلامي مدنيت دآبادېوشواهد لکه په غزني او لشکرګاه او هرات کې په لاس راغلي دي.

بغلان چې دلته يې په اړه لږ څه بحث کووهغه سيمه ده چې په دغه وروستيو کلونو کې يې ډېر ارزښت پيدا کړی اوپه هغه شرح چې ورته دپاي ټکی ږدو په حاضر دم وخت کې دلويو کوشانيانو په عصر کې دفرهنګ او آبادۍ له نښو نښانو سره ارتباط لري.

بغلان په حاضر وخت کې دهغې سيمې نوم دی چې دپلخمري شمال ختيځ لور ته يې ۶۰ يا ۷۰ کيلو متره مربع ځای نيولی دی اودرې نوی ښارونه دپل خمري، بغلان صنعتي او بغلان اداري پکې جوړ شوي دي. تر ۵ کاله دمخه بغلان د همدغه مساحت په

لرلو چې یادونه یې وشوه دقطغن ولایت پورې اړوندو اودنویو اداري تشکیلاتو له مخې یو ځانګړی ولایت وپیژندل شو اواداري مرکز یې دیو لړتغیراتو اوبدلونونو څخه وروسته همدغه بغلان وټاکل شو او دموجوده قطغن ولایت اداري مرکز بغلان اداري یابغلان دی چې له هغو مهمو او ارزښتمندو کنډوالو څخه چې دچم کلا په نامه یادېږي.

داوسني بغلان جنوب لویدیځ لور ته دغوري په نامه یوه بله سیمه لرو چې په داسې ډول دپلخمري کوچنی ښار ددې دواړو سیمو تر منځ پروت دی. له دهن غوري څخه دهغې لوې لارې په سر چې له غورې څخه دایبك تاشقرغان اومزار شریف په لور ورځي دخاورو اوډبرو دیوې غونډۍ په څنډه کې چې په سره کوتل مشهور دی، فرانسوي لرغون پیژندونکی پلاوي دیوې لوی آبادۍ په کشفولو بریالی شول چې دلویو کوشانیانو په دورې پورې اړه لري.

دفرانسې دکیندلو او سپړلو دپلاوي مدیر موسیو شلوم برژه دسره کوتل دکیندلو او نتایجو په باره کې مقالې خپرې کړې. خو لکه څرنګه چې سږ کال په دغه ځای کې دکیندلو مرحله پاي ته ورسیده پوښتنه پیدا کیږي چې راتلونکي کال به په کوم ځای او کومه نقطه کې دکیندلو اوسپړلو کارپیل کیږي؟

دبغلان په یوه برخه ( سره کوتل) کې خو په ښکاره ډول یو عبادت ځای څرګند شوی دی خو ددوي د مجسمه جوړونې،معمارۍ او په ځانګړې توګه دژبې او رسم الخط له ژورې مطالعې نه ثابتیږي چې دا ولایت داسیمه او دانقطه د لویوکوشانیانو پر وخت دمسیحي په دریو لومړیوپیړیو کې ډیره آباده او پر مخ تللې وه، نو ددغه ځای نورې کیندنې به دکوشانیانوپه عصر نوره ډیره رڼا هم واچوي.

په دې کې شك نشته چې دبغلان له سره کوتل څخه کشف شویو شیزونو کې هغه څه چې ډیرارزښت لري یو شمېر ډبرلیکونه دي چې دافغانستان په هیڅ یوه نقطه کې داسې یوډبرلیك نه دی کشف شوی چې دکمیت له مخې له دې ډبرلیك سره سیالي وکړي.

پوښتنه داده چې ایا په دغو کشف کړاي شویو ډبرلیکونو کې داسې یو هغه شته چې دبغلان دنامه اصل او پخوانی ډول بغولانکو او بغلانګ نوم ترې کشف شوی وي؟ هویوتن داکسفور له استادانو څخه متسرهیننګ په دې بریالی شو چې دبغلان دنامه پخوانۍ بڼه ولولي. همدارنګه په یو بل ډبر لیك کې دکوشانیانو دلوې پاچا کنیشکا نوم دوه ځله لوستل شوی نه دی؟! هو ښایي داډبر لیك پخپله دکنیشکامربوط نه وي تر کومه چې فکر کوي احتمال لري دالیکنه په هوویشکا اویادلوې کنیشکا دکورنۍ په کوم غړي او

جانشین پورې اړه ولري. نوهغه څه چې ښه څرګند دي هغه څه دپاسه ۶۰ ډبرلیکونه دي چې تړول په کوشاني دورې اوپه ځانګړې توګه په کوشاني پاچاهانو پورې اړه لري.

زموږ دهیواد په تاریخ اولرغون پیژندنه کې ددې ډبر لیکونوپیداکیدل چې ټول دلویو کوشانیانو په دورې پورې اړه لري ډیر ارزښت ور دي. حتی ویلی شو چې ددې کشفیاتو ارزښت نه یواځې دافغانستان لپاره، بلکې دګاونډیو هیوادونو هند، ایران او ماوراء النهرلپاره هم ډیر دی.

ددې ډبر لیکونو په رڼا کې دکوشاني عصر له ژبې او رسم الخط څخه ورو ورو پرده پورته کیږي او کومه کومه ژبه چې په دې ډبر لیکونو کې کارول شوې ده هغه سیمه ایزه لهجه ده چې اروپائي پوهانو دباختري یا بلخي ژبې په نامه نومولې ده او موسیو هیننګ باور لري چې دسره کوتل دډبر لیك ژبه له خوارزمي، سغدي اوپارتي ژبې سره قرابت اونژدې والی لري.

ددې ډبر لیکونو رسم الخط یوناني دی چې دکوشانیانو په وخت کې یې پوره رواج درلود، دسره کوتل دکیندنې له نتایجو او په بغلان اونورو برخو کې ترامو سینده دخاورو له کتنو څخه ډیر داسې عوامل څرګند شوي دي چې دهغې له مخې ویلای شو چې دافغانستان له نورو برخو څخه دغې برخې دکوشاني عصر تمدن اوفرهنګ ډیر پراخوالی درلود.

په همدغه سیمه کې دسره کوتل په څیر نورې غونډۍ هم شته چې ډیرې پاملرنې وړ دي له هغې جملې څخه یوه هم (چم کلا) غونډۍ ده چې داداري بغلان په لس کیلو مترۍ کې د جمیر دنهرشمال لور ته پرته ده. په اوسني وخت کې چم کلا دمربع په شکل یوه غونډۍ ده چې هره ضلع یې نژدې دوه سوه متره اوږدوالی لري، او یواځې په جنوبي ضلع کې یې یوه ګرده وتلې برخه لیدل کیږي چې ددې غونډۍ کیندل به بې شکه دکوشانیانو په برخه کې ډیر معلومات راکړي، او پرته له دې غونډۍ نورې هم داسې شته چې له هغې ډلې نه یوه دآی خانم غونډۍ ده چې هغه بیا دآمو سیند خوا ته نژدې پرته ده او له هغه ځایه لوې دتیرو سرتاقونه موندل شوي دي نوطبعاً دکیندلو او څیړنو په نتیجه کې به دکوشانیانو او یونانیانو په دوره ډیره رڼا واچوي. نو ویلای شو چې بغلان او دهغه ځای کیندنې اوڅیړنې په افغانستان کې دکوشانیانو دعصر دتمدن دڅرګندولو له پاره ډیر زیاتې ارزښتمنې دي.

۱-۱-۱۳۴۱

# سره کوتل نړیوال هنري باختري مقام ـ تثبیت کړ

پر ۱۸۳۰ ز کال یوشمیر لویدیز او ختیز پوهان دهنداوافغان دخاورو په پوله دکابل دسیند په کوزنیو برخوکې (چې په حقیقت کې همغه پخواني ګندهاراده) په یو ناڅاپي توګه دیو نوي هنري مکتب له شته والي سره مخامخ شول چې هغه ته یې د (ګریك وبودیك) دمکتب نوم ورکړ.

نوموړی مکتب دهندي دودیزواثارو، سبکونو او ځیروبرعکس نوې ځیرې درلودې، په هغوکې دیوناني هنر نفوذ او کره وره ډیر څرګند و، مشهور فرانسوي ختیځ پوه "فوشه" په همدغه نامه دګندهارایې صفت موضوع هم ورزیاته کړه اود (ګندهارګریك وبودیك) په هر ځای کې شهرت وموند او ددې هنري مکتب نښې نښانې ورو ورو په سلګونو زرګونو اودلس زره ګونو په شمېر دکابل سیند په اوږدو کې دهندوکش په غرنیو سیمو کې دسنددرود تر غاړو پورې وموندل شوې دکابل، پیښور اولاهور موزیمونو چې ددې اثارو مرکزونه دي، ټول خلك حتی دعوامو طبقه یې له دې اثارو سره اشنا کړه،دامکتب د نوم، صفتونو، ځانګړو مشخصاتو

اوجغرافیایي ساحې له نظره مشهور شو، خو له هغه وخت نه تر اوسه څه دپاسه یوه پیړۍ تیره شوه، مګر اصلي مبداء یې دپردې دننه پټه پاتې ده.

ددې څه دپاسه یوې پیړۍ په اوږدوکې بیلا بیلوختیز پوهانو نوموړې موضوع ته مخه وکړه او ددې مکتب دپیل په اړه ډول ډول مفکورې اونظریات منځ ته راغلل چې په پای کې دوه ډلې شوې او حتی په مقابله یې لاس پورې کړ. هغې ډلې چې فوشه یې په راس کې واقع وه وویل چې ددې مکتب په منځ ته راتللو کې دبحرالرومي دغاړو یوناني هنردخیل دی او دویمې ډلې چې دانګلوساکسن پوهان پکې راټول وو په دې اړه یې دفوشه نظر رد کړ او زیاته یې کړه چې دګندهارا دهنر په مبداء کې دیوناني رومي هغه هنر دخیل دی چې درومیانو په روم کې دامپراطورۍ په وخت یې دتجارتي تلو راتلو په مهال دختیځ په دې سیمه کې ترسره کړي دي، او بیا دانګریز(مسترویلز) دبګرام په آثارو ډیره اتکاء کوي او دګندهارا دمکتب په مبداء کې درومیانونقش قاطع ګڼي.

ددې دواړونظریو طرفداران په یوه خبره کې سره متفق دي،او هغه داچې پخپله باختر په هیڅ وجه دګندهارا دمکتب په تشکیل کې کوم اغیز او دخالت نه درلود او نه یې لري.

په سره کوتل کې کیندلو،ختیځو اودتیرو مجسمو اوپه ځانګړي توګه دکوشاني شهزاده ګانو دډبرین مجسمو ترکشفولو وروسته چې په یو ناڅاپي توګه یې ددواړو پلویانو په ادعاګانو دباطل کرښه راښکله او دایې څرګنده کړه چې نه یواځې ددوي دادعاګانو پر خلاف دګندهارا دمکتب په تشکیل کې دخالت لري، بلکې ددې هنر او ددې مکتب مبداء باختري هنر دی چې هغه په صحیح توګه د دورو په ترتیب سره (یونان باختري) او( یونان کوشاني) دمکتبونو په نومو یادولای شو.

موسیوهاکن له دویمې نړۍ والې جګړې دمخه او په کندز کې له یوعبادت ځای نه راپیدا شوویو آثارو وروسته چې دادهندوکش په شمال کې دمجسمې جوړونې لومړۍ نښې نښانې وې، دلومړي ځل له پاره پر ۱۹۳۶ز کال دانظریه رامنځ ته کړه چې دګریک وبودیک دمکتب مبداء باید دهندوکش په شمال دباختر په سیموکې ولټول شي.

دامفکوره نورو ختیځ پیژندونکیو نه یواځې داچې په ارامۍ سره رد کړه بلکه بې ارزښته یې وګڼله، ترڅو چې په دې نژدې وختونوکې له سره

کوتل څخه نوې اوتازه نښې نښانې وموندل شوې اوپه غوڅه توګه يې څرګنده کړه چې دګندهارا دهنر بنسټ په شمال کې دباختر له سيموڅخه دی.

دکوشاني له هغه مجسمو سره دسره کوتل دآثارو ورته والی چې دګنګا د (مات) او (ماتورا) په سيمو کې تردې وړاندې کشف شوي وو او ارتباط يې له هيڅ يوې هندي مدرسې يامکتب سره نه و، نودامفکوره پياوړې کوي چې کوشاني باختري هنر دمسيحي په لومړۍ اودويمه پيړۍ کې دومره پياړوی اوپراخه شوی و چې دآمو سيند له سيمې څخه ترګنګا پورې يې عمومیت حاصل کړی و چې دهغې تاثير په مختفلو هنري مکتبونو لکه دګندهارا په ګريك او بودايي مکتب باندې ثابت وي. په بل عبارت دګندهارا دګريك اوبوديك مکتب همغه دباختري کوشانيانومکتب دی چې بودايي دين او فلسفي ددين له نظره هغې ته يوه خاصه جنبه ورکړې ده او کوشاني امپراطورانو په ځانګړې توګه کنيشکا او هونشکا دنظامي قدرت او سياسي حمايت له نظره چې له مختلفو مذاهبو سره يې ترسره کړيدی، چې په هغه جمله کې دبودايي دين په باختر کې ديونان کوشاني هنري مکتب په پراخوالي کې پوره ګډون لري.

# د کنیشکا عبادت ځای

په بودايي کیسو کې راغلي دي چې (کنیشکا) لکه دموريالوي پاچا (اشوکا) په څېر اتیازره خیریه او مذهبي ودانۍ ترخپل واک لاندې سیموکې جوړې کړې وې.

سره لدې چې داشمیره دمبالغې جنبه لري، خودکوشانیانو دلوی پاچا دپراخې آبادۍ په رابطه دهغه شوق، نیکې هیلې او اراده ترې څرګندیږي.

لکه څرنګه چې کنیشکا دکوشانیانو ترټولو لوی او تر ټولو مقتدر پاچا دی (۱) نو خامخا یې دخپلې واکمنۍ په دوره کې ډېرې پرتمینې او ښکلې ودانۍ جوړې کړې دي او لکه څنګه چې دافغانستان په دننه او دهند په شمالي برخو کې یې دخپل پراخ قلمرو په ساحه کې یې له ټولو مذهبونو او ادیانو څخه ملاتړ کاوه، نو دټولو مذهبونو او ادیانو لپاره یې عبادت ځایونه جوړول.

لومړنۍ ودانۍ چې په حتمي او یقیني توګه یې نسبت پخپله کنیشکا ته کیږي هغه دپېښور په علاقه کې دبودايي دین یوه لویه عبادتګاه وه چې دهغې استوپې دځلورو سوو قدمونو په شاوخوا کې جګوالی درلود او دډبرینو لوړو سوړو دپاسه په دیارلس طبقو کې له لرګي نه جوړه وه او ۵۸ کاله دمخه پر (۱۹۰۹). کال دیو اوسپنیز صندق ترکشف وروسته چې دکنیشکا نوم اوصورت پکې ثبت دی، دلومړي ځل لپاره لومړۍ مذهبي

ودانې چې ددې لوی کوشاني پاچا له خوا جوړه شوې وه دعلم نړۍ ته وروپيژندل شوه.

وروسته له نژدې پنځو کلونو راپه ديخوا دادی دعلم نړۍ ديوبل خبر په اخستلو بريالۍ کيږي چې دايو بل عبادت ځای دی او داهم دکنيشکا په وخت کې جوړه کړای شوې او دهغه په نامه پورې تړلی دی،داودانۍ دبغلان له عبادت ځای څخه عبارت ده چې هغه ( دبغلان عبادت ځاي)(دکنيشکا عبادت ځاي) او په نورو نومونو يې هم يادولی شو.

او په عامه توګه يې د(سره کوتل مزدك° په نامه شهرت ترلاسه کړی دی چې ما په دې باره کې پرله پسې مقالې دانيس په ورځپاڼه ، ژوندون او آريانامجلوکې ليکلی دی.

هغه لاسوند چې داوينا دهغې په اتکا ليکل شوې ده،عبارت له يوستر ډبر ليك څخه دی چې په يوه ناڅرګنده نيته کې په باختر"بلخ" کې په يوناني ليك دود ليکل شوی دی او دوه ځله پکې دکوشاني پاچا کنيشکا دنامه يادونه شوې ده *سزه له دې چې تراوسه متاسفانه د ۱۵ مياشتو په اوږدوکې موسيو"ماريګ" بلژيکي متخصص چې نوموړی دفرانسې دکيندلو دپلاوي غړی دی، ددې تاريخي سند په لوستلواوبشپړه ژباړه بريالی شوی نه دی، خو ددې ډبر ليك ديوې يادوو کړښو لوستل څرګند وي چې دالويه ودانۍ دکوشاني کنيشکا په امر اواراده جوړه کړای شوې ده، په دې ډبر ليك کې کنيشکا دفاتح پاچا په توګه ياد شوی دی او داسې څرګنديږي چې کله يې دعبادت ځای دجوړولو کار پای ته ورساوه، نو په خپل نامه يې ونوماوه يعنې کنيشکا عبادت ځای يې وباله.

لکه څنګه چې مې وړاندې يادونه وکړه دکنيشکا نوم په ۱۹۰۹ کال کې ديو وړوکي اوسپنيز صندق پرمخ ولوستل شو چې دپيښور په عبادت ځای کې وموندل شو،همدارنګه بايد يادونه وکړو چې دکنيشکا نوم دهغې مجسمې پر لمن هم ليکل شوی دی چې دډهلي په جنوب کې د "ماتورا" په سيمه کې موندل شوې او اوس د"ماتورا" په موزيم کې ځای په ځای ده خو هغه څه چې ډير او په ځانګړې توګه دعبادت ځای دجوړولو له پاره څرګند وي،همدغه په بغلان کې دسره کوتل ډبر ليك دی چې دعبادت ځای او

---

* دکنيشکا رساله، ددې مقالو دليکوال تاليف کړې اثر ته دې مراجعه وشي.

دکنیشکا کیسې کوي. اودهغه په نامه یې شهرت درلود، په همدغه مو هغه په دې مقاله کې چې زمونږ دځېړنو پیل دسره کوتل له کشفیاتو څخه کیږي د "کنیشکا عبادت ځای" په نامه یادکړ.

لکه څرنګه چې په سره کوتل کې دکیندنو دکار وخت له یونیم کال څخه نه ډیریږي، اوتر اوسه په دوه دریو علمي هڅو ډیرې نه دي ترسره شوي نو ځکه دیادې شوې مودې له معلوماتو پرته دکار دپای په هکله څه ویلای نه شو اوشاید دډېر لیکونولوستل بیا ډیر وخت ونیسي، خو اوس چې څه لیکو او وایو په ډیر احتیاط سره یې وایُو او مقصد ترې دیو لرغوني او ارزښتمن ځای له کشفولو څخه دعوامو او دراډیو افغانستان داوریدونکو خبرول دي، چې زمونږ دهیواد شمال ته دبغلان په ولایت سره کوتل کې چې دپلخمري شمال لویدیځ پلو ته په ۱۸ کیلو متری کې پرهغه لویه لاره چې بغلان، سمنګان او مزارشریف ته تللې پریوه غونډۍ حتماً یوه ستره عبادت خانه وه چې له یوشمیر ډبرلیکونوسره کشف کړای شوه. او دهغې له مخې ویلای شو چې کوشانیانو په بغلان کې ډیرې آبادۍ درلودې او لوی کنیشکا دیوې غونډۍ دپاسه په خپل نامه یوه ستره عبادت خانه جوړه کړې وه.

۱۳۳۷-۸-۴

# دکنیشکا مجسمه

دافغانستان دمختلفو کورینو دپاچاهانو له جملې څخه له پخوانیوزمانوڅخه تر اوسه یواځې دیوې سلطنتي کورنۍ مجسمې لرو چې له هغو څخه دلوی کوشانشا (کونیشکا) نامه په څرګنده دمجسمې په لمن کې لیکلې شوې ده.

کوشانیان په عام مفهوم دکوچي قبائلو او دمرکزي آسیا دصحراګشتو په توګه چې کله دآمو سیندحوزې ته راننوتل او مخصوصاً وروسته تر هغې چې دلومړي ق م پیړۍ په اوږدو کې باختر ته راغلل ، نو یوناڅاپه له یوې زرخیزې اوزړو مدنیت لرونکې خاورې سره چې داوخت دیونانیانو له تهذیب اوتمدن نه ډیره متاثره وه، مخامخ شول

کوشانیان په باختر کې تر میشت کیدلو وروسته ددې ځای له خلکو سره یوځای شول او هغه څه چې په دوی کې دیادونې وړ دي ځانته دخلکو راړونه او له ځان نه نورو ته انتقالول دي لکه چې په فرهنګي،دیني او هنري برخوکې یې وښودل

کله چې کوشانیانوپه باختر کې استوګنه غوره کړه نه یواځې له یونان باختري څخه یې اداره او واکمني واخسته، بلکه ټول مدني ،هنري او

فرهنګي کره وره يې په خپله خوښه ومنل او دهغو دپرمختيا او پياوړتيا له پاره يې ډيرې هڅې ترسره کړې.

ديولړ څيړنو په ترڅ کې چې په "کوشانشهر" او دکوشانيانو د امپراطورۍ په نورو سيمو کې له امو سيندنه تر ګنګا پورې منځ ته راغلي دي، پرته له سکه يې اثارو څخه يوشمير مجسمې په (سره کوتل ((بګرام)) ، ((پيښور)) او ((ماتورا)) کې ترلاسه شوي دي، چې په هغو کې ديوشمير شهزاده ګانوله تصويرونو اومجسموسره پخپله دامپراطور کنيشکا تشخيص هم کولای شو.

دې مجموعې ته که پاملرنه وشي، څرګنديږي چې دکوشانيانو کورنۍ دخپلو تصويرونو او مجسمو نمايش ته چې هغه هم په ولاړه اومخامخ بڼه وي (نه داچې په نيم مخ) ډيره علاقه مندي درلوده

دادود او سليقه دغور او پاملرنې وړده، ځکه چې ديونان باختري واکمنو يواځې اثار په لاس کې لرو چې سر يې څرګنديږي اوکه کله يې هم نيمه تنه په کوم ډول سکو کې کيندل شوي وي، نو بيا به يې خامخا يوخوا مخ څرګنديږي او دهيڅ يوتن يونان باختري پاچا انځور په سکوکې ولاړ ليدلی شوی نه دی. خو ددې برعکس کوشانيانو چې په افغانستان او هند کې يې ددوی ځايونه نيولي دي په سکو اومجسمو کې ولاړ ښکاري.

کوشانيانو چې ددين، ژبې او الفبا په بلنه کې هيڅ ډول تعصب څرګند نه کړ، دخپل لباس په ساتنه کې يې ډير ټينګار درلود او داخبره دهغوي په مجسمو، مذهبي مجلسونو او سکو کې مشهوره ده.

په افغانستان کې دلوموړيو مسيحي پيړيو په اوږدوکې ددوی کره وړه ، څيرې او دجامو دتصور له نظره دهغو برش ډير په زړه پورې دی.

دکنيشکا مجسمه چې په لمن کې يې دهغه نوم هم کيندل شوی دی، څوکاله دمخه دګنګا په حوزه (ماتورا) کې کشف شوی او دامجسمه چې پر يوه ګلابي رنګه تيږه جوړه ده په پوره قد ليدل کيږي، دهمدغې مجسمې په ډول نورې مجسمې په سره کوتل کې هم تر لاسه شوي چې هغه هم په پوره قد بلکه له طبيعي قامت نه لوړه ده ، خومتاسفانه چې کوزنۍ برخه يې ماته شوې او ورکه ده ددې مجسمې نسبت ددې له پاره چې ليکنه نه لري او مجهوله ده، کوشاني شهزاده ګانو ته شوی دی.

دا ښکلې مجسمه چې متانت، استوار والی او درښتي څرګندیږي دلمنې په لوړو ژورو کې یې ګلبدزوي په مرواریدوسنګار کړې او دکوچیو په څیر ول ول لوی کمیس نه یې شاهانه سترتیا له ورایه څرګندیږي.

د (ماتورا) په مجسمه کې دکنیشکا په ښي لاس کې درنه توره په داسې حال کې لیدل کیږي چې دتیکې څوکه یې ددواړو پښو په منځ کې دهغه فرش په مخ لیدل کیږي چې دپاچا مجسمه پرې ولاړه ده.

دهغه نویو هڅو په رڼا کې چې له سره کوتل څخه په دې وروستیو کې په شمال دآمو سیند په حوزه کې د (بغلان) او همدارنګه دهند دګنګا په حوزه کې دماتورا ترمنځ دکوشانی په دوره کې خاص ارتباط موجود و او دهمغه شان عبادت ځای چې یې دهندوکش په شمال کې دخپلې سلطنتي کورنۍ له پاره (ماتورا) کې یې هم جوړ کړی و، او دکوشاني شاهانو مجسمې په ځانګړي توګه دکنیشکا مجسمه چې ددې کورنۍ یو قدرمن واکمن و، په دواړو ځایونوکې ځای پر ځاې کړای شوې ده.

دسلنطنتي کورنۍ دمقام اوموقعیت په ساتلوکې دشاهي مجسمو جوړولو او دتوږلو مفکورې ډیر ارزښت درلود، دهمدغې مفکورې له مخې شاهي کورنۍ او په ځانګړي توګه کوشانشاه دمجسمو په جوړولو کې ډیره هڅه کړې ده او دهمدغې مفکورې عملي کول ددې سبب شوی دی چې د ۱۹۰۰ کلونو په اوږدو کې ددې لوې پاچا دمجسمو ننداره کوو.

۲-۱- ۱۳۳۹

# هغه استوپه چې بنسټګر يې کنيشکا دی

له اسلام نه دمخه دافغانستان په تاريخ کې دلويو کوشانيانو کورنۍ چې دمسيح(ع) دوخت له پيل نه يې را په دې خوا درې پيړۍ په افغانستان کې واکمني کړې، نسبت ټولو سلطنتي کورنيو ته ډېر شهرت لري.

دکوشاني کورنۍ پاچاهانو پرنومونو دکنيشکا نامه ډېرې ورانګې لونلي، سره له دې چې ددې لوی پاچا په اړه تاريخي حقايق لا ښه څرګند نه دي. خوله دې سره سره يې دنامه هنګامه ډېره لوړه ده او ديو پاچا اويوامپراطور په توګه يې پر يوپراخ قلمرو واکمني درلوده چې لمنې يې داکسوس (آموسيند) له غاړو څخه ترجمنا دهند تر زړه پورې پراخوالی درلود.

سره له دې چې دهغه له سکو څخه په څرګنده بريښي چې کنيشکا دهغه وخت(لومړۍاو دويمې مسيحي پېړيو) په اوږدوکې په افغانستان کې ټول مروج اديان آزاد بريښي وو او ټولو ته يې احترام درلود، خوبيا هم هغه دبودايي عبادت ځايونواو استوپو بنسټګر ،لارښود او مينه وال بولي، تر دې پورې چې هنديان يې دمذهبي چارو له نظره دمورياکورنۍ له اشوکا سره اودمسيحي دين پلويان يې له کلوديس دفرانکس له پاچاهانو سره پرتله کوي.

ټول په دې پوهيږو چې په افغانستان او په ځانګړي توګه دبلخ اودکندهار په نيمه ختيزه کرښه کې په سلګونو بودايي عبادت ځايونه شته چې تر اوسه لا لرغون پيژندونکي دهغوټولو په پيژندنه بريالي شوي نه دي او دادحيرانتيا ځای نه دی چې ډېرو عبادت ځايونو او مذهبي ودانيو

نسبت دکوشانیانو لوی پاچا کنیشکا ته کیږي، البته په دغه نسبت ورکوڼو کې ډیرې ولسي کیسې او عنعنوي روایات برخه لري مګر سمدلاسه باید ووایو چې په غالب باور دا کیسې تر اسلام دمخه پخوانۍ ریښې لري او بیا لرغون پیژندونکیو په ځینو برخو کې دې کیسو ته ریښتینې بڼه ورکړې ده.

هغه څه چې دډېرې پاملرنې وړ دي هغه دا چې په هرځای کې یې ډیرې ودانۍ لویه استوپه یا لویه مجسمه لیدل شوې او یا یې پاتې شونې لیدل شوې دي دهغو ټولو دجوړونې نسبت دکوشانیانو لوی پاچا کنیشکا ته ورکوي، یاداسې ووایوچې له بلخ نه تر ایبك ،بامیان،بګرام، هډه ،پیښور او تر کزیلاو مات اوماتورا پورې یعنې دامو له سیند نه ترجمنا پورې په ټولو سیمو کې دبودایي سترو ودانیو نسبت همدغه پاچا ته کوي.

ایا په پیښور کې یې څو فوټ جګه اولویه استوپه نه وه جوړه کړې ؟ او په اوومه عیسوي پیړۍ کې چینائي ګرځنده هیوان تسنګ هغه نه ده لیدلې او دهغې په اړه یې دکیسو نقل نه دی کړی؟ اوبلاخره هغه فلزي صندق چې دوړې استوپې بڼه لري او دهمدغې استوپې په کنډوالو کې کشف شوی دکنیشکا صورت او نوم پرې انځور شوی نه دی؟!

همدغه چینایي ګرځند له بامیانو څخه دتیریدلو په وخت نه دي ویلي چې هغه لویه استوپه چې په ازاده هواکې د ۳۵ متره مجسمې ترڅنګ موجوده وه پاتې شونې یې اوس هم په کروند وکې شته دیوپخوانې پاچا په امر جوړه شوې ده؟! او داپخوانۍ پاچا یې داټکل له مخې کنیشکا نه دی ښودلی؟! ایادسره کوتل عبادت ځای دکنیشکا په عصر کې نه دی جوړ شوی او هغه لوی ډبر لیك چې له هغه ځایه په لاس راغلی دوه ځله دکنیشکا دنوم یادونه پکې نه ده شوې ؟

ددې روایاتو، کیسو او حقیقتونو په اساس چې لاس ته راغلي څرګندیږي چې امپراطور کنیشکا دمذهبي عبادت ځایونو په جوړولوکې ځانګړې پاملرنه درلوده او دده په لویه امپراطورۍ کې ډیر شمیر عبادت ځایونه دده په اراده او امر جوړ شوي دي. یوه له ډیرو لویو استوپو څخه چې په ځانګړي توګه دکنیشکا په استوپه شهرت لري همدغه دتوپ درې استوپه ده چې دهغې په باره کې مې تردې دمخه یوه مقاله خپره کړې ده، او په چاریکارو کې ددوه درېیو سوه مترو په فاصله سرك ته نږدې واقع ده،

چې په دې نژدې وختونو کې یې تر خپلې استوپې پورې نوی سرك هم جوړ کړای شوی دی.

دکنیشکا له خوا ددې استوپې دجوړونې په رابطه،چینائي ګرځند هیوان تسنګ هغه وخت چې یوه میاشت یې دبګرام پهلوان غره کې د (شترك) په پوزه دچنیاني یرغملو په عبادت ځای کې استوګنه درلوده، یوشمیر داستانونه اوریدلي دي چې لنډیز یې دلته تشریح کوو. اوناشونې نه ده چې داداستان به په ګلبهار کې دکوم عبادت ځای په اړه وي.

دکاپیسا (بګرام دکیشکا داوړي پلازمینه) شمال لویدیځ لور ته د پغمان د واورین غره پر ځوکه یو ډنډو او په هغه ډنډ کې داوبودمارانو پاچا ژوند کاوه ، یوه ورځ دیوبودایي راهب دیوشاګرد په بیرو ناروغه او مړ شو، دهغه تر مړینې وروسته دهغه ځای بل ونیو. دویم پاچا له روحانیونوځخه دانتقام په خاطر ټول داوبو ماران سره راټول او باد او باران ته چې دهغه په واك کې وو امر وکړ ترڅو باد ، باران او سیلاب هغه عبادت ځای چې دغره په لمنه کې اباد ؤ وران کړي.

داوخت امپراطور کنیشکا دایوناڅاپي باد او باران ته حیران شو او دعلت پوښتنه یې وکړه، خو کله چې داوبو دمارانو (ناګا) له مداخلې ځخه خبرشو نو په دې هڅه کې شوچې دغره په لمن کې یوه لویه استوپه او عبادت ځای چې سل فټه جګوالی ولري، جوړکړي، نوسمدلاسه یې معمار او نوره امله او کارګران هغه ځای ته واستول او هغوي په کار پیل وکړ، مګر هر ځومره چې به یې جوړ کړ دمارانو پاچا به ورناوه، تر دې پورې چې شپږ ځله یې هلته آبادي وکړه او دمارانوپاچا هغه شپږ ځله ورانه کړه.

په اووم ځل کنیشکا امپراطور پخپله دلښکر سره دغره سر ته وخوت او امر یې وکړ، چې دمارانو دپاچا ډنډ ډك کړئ داوخت ناګا دمارانو پاچا دیو (برهمني) په بڼه ځان جوړ کړ او پر لاره دپاچا مخې ته ودرید او په عذر یې ورته وویل چې دمارانو له پاچا سره له مقابلې نه تیر شه، خو پاچا عذر ونه مانه او بیایې دډنډ دډکولو امر ورکړ، لږ ساعت وروسته یوډیر شدید طوفان او سیلۍ راغله، باران پیل وکړ باد دونو شاخونه مات کړل، سیلابونه راغلل نژدې و چې اسونه، پیلان او عسکر په مخه کړي لکه ځنګه چې کنیشکا یو مذهبي پاچا ؤ، یوناڅاپه یې داوراد په ویلو پیل وکړ

اوخپل نیك او حسنه اعمال به یې شفیع كول او له ډیره قهره د اور لمبه ګرځیدلی وه.
داوخت (ناګا) دمارانو پاچا ددې منظر تر لیدلو وروسته باد او باران ودراوه، او بیا دیو زاړه برهمني شخصیت په بڼه پاچا ته ودرید او وې ویل :
زه داوبو دمارانو پاچا یم اودې ته حاضر شوی یم ، چې دپاچا داطاعت کړی په غاړه کړم، پاچا یې عذر ومانه او تر هغې وروسته دمارانو پاچا ورته وویل چې ماران په فطري ډول بد ذاته دي هسې نه چې خود خواهي او سر کشي ته مې بیا راکاږي نو په دې وجه زه دپاچا له حضوره غوښتنه کوم چې که چیرته دغره په لمن کې بیا د عبادت ځای دجوړولو اراده لري نو لوي زنګ دې په پلازمینه "بګرام" کې جوړ کړي، هر کله چې کار کوونکیو دغرونو پر سرو وریځ لیده نو زنګ دې وهي چې زمونږ ملاقات وشي او مخرب کسان په ورانکارۍ لاس پورې نه کړي، کنیشکا لوی زنګ په بګرام کې وځړاوه،او کله به دزنګ غږ دغرونو په درو کې انګ واخیست کارګارنو به په کار پیل وکړاو دغره په لمن کې دپلازمینې لوید یځ لوري ته یې لوی عبادت ځای جوړ کړ.
دالویه استوپه همغه دګل درې استوپه ده چې اوس هم ۷۵ متره یې دمنځنۍ برخې اوږودوالی دی او خامخا یې ۱۰۰ فوټه یعنې ۳۵ متره جګوالی درلود او لکه په بامیانو کې دبودا دلویومجسمو په څیر مجسمې هلته شته چې په افغانستان کې دبودا دوخت دلویو مجسمو له ډلې څخه شمیرل کیږي. له بګرام څخه دهغه ځای اټن ۱۲ کیلو متره او له چاریکارو څخه ۳ کیلو متره دی
ددې کیسې په اساس چې وشوه چینائي ګرځنده هیوان تسنګ هغه په خپله کنیشکا ګڼي او دماخذ په وجه نوموړې استوپه دکنیشکا داستوپې په نامه یاده شوې او مونږ هم کولای شو چې دتوپ درې استوپې ته دکنیشکا استوپه ووایو او داخلي اوخارجي ګرځند ویان او پوهان یې لیدلو ته وهخوو.

۱۲ - ۴ - ۱۳۳۷

# دیوناني اوباختري هنري مکتب

# یوناني او کوشاني سبک

له دویمې نړیوالې جګړې څخه دمخه یوې روسی میرمنې (مدام تره ور) د (یونان اوباختر صنعت) په نامه یوکتاب خپور کړ چې په هغه کې دیو سلسله هغو اثارو په استناد چې دمرکزي اسیا له بیلا بیلوبرخو څخه ترلاسه شوي وو دلومړي ځل له پاره یې د هنر په نړۍ کې یوځانګړی مکتب د (یونان اوباختري مکتب) یا (ګریک وبکتریان) ثابت کړ، خو دلوید یځ پوهانو دې اثر ته چندان توجه ونکړه او دنوموړې میرمنې نظریه په ځای ددې چې ورته پاملرنه وشي غلې پاتې شوه.

لکه څرنګه چې د هنر په دنیا کې دافغانستان ددې ښکلیو او ښایسته صنایعو شتوالي ځانګړی ارزښت درلود، نو ځکه دافغانستان دتاریخ په دویم ټوك یوناني اوباختري څپرکي کې اود (ګریک او بودیک) بیایونان او بودائي صنعت په څپرکي کې ورته ځانګړی ځای ورکړی شوی دی.

دسره کوتل کیندنو چې په ډیروبیلابیلو تاریخي، ادبي او هنري برخوکې یې ډیر پخواني افکار تازه منځ ته راوړي دي نو دهنر ددنیا په پیل کې دافغانستان اوګاونډیو هیوادونو مختلف مکتبونه اوسبکونه راځي،

دانوي څېزونه دي چې دهغو په منځ کې د ( يونان او باختري) او دځانګړي سبك (يونان او كوشاني) څرنګوالى يې د ډېرې پاملرنې وړ دى.
دباختر زړې پخوانۍ سيمې اوداموس دسيند سيمې دتاريخ دمخه مدنيت او دكيسو اوداستانونو ددورې دبنسټونو له مخې دهخامنشيانو او يونانيانو انځور ګرۍ او معمارۍ ته يې لوړتيا ور وبخښله.
سكندر ته يوناني افكارو دروم بحر له غاړو څخه دختيځ زړه ته لاره ومونده او ديونانيانو دوه سوه كلن سلطنت دايراني او سيمه ايزې باختري او يوناني عناصرو سره په ګډون او مركب صنعت (ايران يوناني) او ( يونان باختري) دهندوكش په شمال كې منځ ته راغى، وده يې وكړه او وغوړيده چې ديونان باختري ښكلې او زړه وړونكې سكې يې پيژندنه او بيلګې دي.
كوشانيانو چې په افغانستان كې ديونانيانوځاى ونيو، لكه څنګه چې يې ديوناني ژبې له الفباء څخه دباختر ژبې په ليكنه كې كار اخسته، همدارنګه يې دبيلابيلو نظرياتو دعبادت ځايونو چې دسيمه ايزو بيلا بيلو نظريو چې اور پرستې او بودائي واكمنو كورنيو دنمانځنې له پاره ترې كار اخستل كيده دودانيو په جوړولو كې يې له يوناني باختري سبك څخه اغيزمن شوي وو په نتيجه كې تولې هنري جوړونې، هيكل تراشۍ ، معمارۍ اودنقاشۍ ډير سبكونه منځ ته راغلل چې هغه بايد د (يونان اوكوشاني) يا (كوشاني او باختري) اويا يواځې كوشاني وبولو.
ديونان اوباختر هنري سبك د (يونان كوشاني) له فرعي سبك سره او دهيواد له هغه پراخوالي سره چې له اكسوس (اموسيند) څخه تر اندوس د(سند رود) او ګنګا تر حوزې پورې رسيده نور هم پراخوالى ومونده.
دډيردقت او پاملرنې ځاى دى چې څوكاله دمخه په جمنا (ماتورا) او د (مات) په قريه كې چې ورته نژدې واقع ده، دلوې كوشاني فاتح امپراطور كنيشكا لويه دتيږې مجسمه وموندل شوه او په دې لړ كې يوشمېر غوره مجسمې هم په لاس راغلې.
دامجسمې په ځانګړي توګه توږل شوې وې چې معمولا دلويديځ هنر پيژندونكي يې د (ګريك او بوديك) يا (يونان او بودايي) مشهورې مدرسې ته اړوند بولي، مګر په دې نه پوهيدل چې څرنګه داځانګړى سبك په يوناځاپي توګه دجمنا په حوزه كې منځ ته راغى.

په سره کوتل کې دمجسمو ترکشف وروسته په (ماتورا) کې دکنیشکا د کشف شویو شکمنو مجسمو له مخې له مجهولو حقایقو پرده پورته کړه اوپه یوناخاپي توګه څرګنده شوه چې دلویو کوشانیانو په عصر کې یوهنري سبك په دوه لیرې پرتو برخو دامو سیند په حوزه او دجمنا په حوزه کې پرمختیا او پیا وړتیا موندلې ده.

داسبك همغه د ((یونان اوکوشاني)) اویادکوشاني باختري سبك دی چې اصلا دیونان اوباختري یوه فرعي څانګه ده او دکوشانیانو په ځانګړي توګه دامپراطور کنیشکا په دوره کې منځ ته راغلې او پراخوالی یې موندلی دی چې دګنګا په حوزه کې د (ماتورا) دمجسمه تورنې او دسره کوتل یابغلان سبك چې سر چینه یې دیونان باختري مدرسې داساساتوله مخې طرح شوی وه.دګریك اوبودیك مکتب چې د لویدیځ یوشمیر هنر پیژندونکیو به یې کله مبداء له یونان او کله هم درومیانو له ختیځ سره دسوداګرۍ راکړې ورکړې په مناسبت له روم سره ګڼله، ملتفت شول چې باید اساسات یې دایران یوناني او یا په افغانستان کې دیونان باختري په مکتب کې ولټوي. په حقیقت کې دګریك او بودیك دمکتب پیلامه نوموړي مکتبونه دي چې په ځانګړې توګه یې دبودایي دین دخدمت له پاره څرګندویي کړې ده او په هغې کې دافغانستان دکوشانیانو او کوشان اوباختري سبك مهمه اواساسي ونډه لري.

۱۳۲۹-۴-۸

# افغانستان دګریک اوبودیک

# مجسمه تورنې مکتب

هر هغه چاچې دکابل او پېښور دموزیمونو محتویات په غور کتلي دي، په دې پوهیږي چې ددې دواړو موزیمونو دمجسمو او هیکل تراشنو لویه برخه د هنروسبك په لحاظ دګریك او بودیك دهیکل تراشنې دمکتب په نامه یادیږي. لکه څنګه چې څرګندیږي دانوم یو ترکیبي نوم دی چې له دوو ځانګړوعنصرو (ګریك) او (بودیك) یا (یونان) او (بودایي) څخه منځ ته راغلي دي.

د ګریك اوبودیك صنعت لکه څنګه چې یې دنوم او ترکیب او وضعې نه څرګندیږي هغه هنري مکتب دی چې ددوه روحونو دتماس په اثر، ددوه فرهنګونو په جوړښت، ددوه تهذیبونو په ترکیب، ددوه عقیدو په یوځاي والي، اوپه یوټاکلي ځای کې ددوو سلسله یزو افکارو له جریان څخه منځ ته راغلي دی دګریك اوبودیك دمکتب روش له داسې صنعت څخه نمایندګی کوي چې هغه ترکیبي دی چې بودایي مذهبي افکار دیوناني هنر له روح سره دیوځای والي په نتیجه کې دافغانستان د خاورې

دهندوکش په دووخواوو کې زیربیدلي دي، روزل شوي دي او ددې ځای داوسیدونکیو داستعداد له مخې منځ ته راغلې دي.

ددریمې او څلورمې پیړۍ په اوږدوکې چې سکندر مقدوني ختیځ لور ته په فتوحاتو لاس پورې کړی و په ځینو هیوادوکې له مقابلو سره مخامخ شو دهغوله جملې څخه په هند کې ورسره عکس العملونه وښودل شول، په افغانستان کې یوشمېرجریانونه منځ ته راغلل چې دنوو هنري اومذهبي نظریاتو راپیداکولو یې ژور او دوامدار اغیز رامنځته کړ چې دهنري مکتب دپراختیا او پرمختیا له نظره یې دوه عامله دپام وړ دي.

(۱) دیوناني روح خپریدل.

(۲) دبودایي دین خپریدل.

تاریخي پېښې شاهدي ورکوي چې له ختیځ اولویدیځ څخه دادوه فکري جریانونه دمدیترانې له چاپیریال اودهند له زړه څخه نږدې په یو وخت کې یو دبل په مقابل کې راغلي دي او دواړه زموږ هیواد افغانستان په خاوره کې مخامخ شوي دي ټول په دې پوهیږو چې د سکندر له فتوحاتو وروسته دیونان مستقل دولت دیونان باختري په نامه دهندوکش په شمالي برخو کې د (۲۵۰ م ز) په شاوخواکې تاسیس شو،اودهمدغې زمانې په شاوخوا کې دهندموریائي دولت دنوموړي غره په جنوبي برخه کې فتوحات ترسره کړل او بودایي دین له ګندهارا نه نیولې دارغنداب ترحوزې پورې خپور اوتیت شو. دادوه فکري،تهذیبي، مذهبي او هنري جریانونه په دوو ځانګړو یادو شویو ځایونو کې محدود پاتې نشول بلکې په متقابله توګه یودبل په ځای کې خپاره شول، لکه چې بودایي دین دبکتریان سیمه سراسر نیولې او لیك دود او دبودایي هنر روح دګندهارا اودکابل درودخانې په سیمه کې خپور شو.

سره له دې چې په دې وخت کې دافغانستان اوسیدونکیو خپل دین، فرهنګ اوهنر درلود، دپورتني جریان تراغیزې لاندې راغلل دلیك دود او هنر په لحاظ دهندي بودایي عقایدو څخه اغیزمن شول او په کومه اړه چې یې اقتباس کړی و په خپل ځان کې یې تحلیل ،تجزیه او ترکیب کړ، نو نتیجه یې داسې شوه چې ددې هیواد اوسیدونکیو له یوځای نه روح او له بل ځای نه قالب اخستی دی او خپل مشخص هنري مکتب یې منځ ته راوړی دی چې نه هندي و او نه یوناني مګر ددواړو مشترکه بڼه یې درلوده

او همدامشترکه بنه ده چې دمسیح له وخت نه دوه پیړۍدمخه اودوه پیړۍ وروسته دافغانستان دظریفو صنایعو د (ګریک اوبودیک) دمکتب په نامه یادیږي اودبدلونونو په رامنځ ته کیدو یې لمنه دوه درې پیړۍ نوره هم اوږده شوې ده.

معمولاً افغانستان داسیا څلور لاره اودمدنیتونو او فرهنګونو دیوځای کیدلو ځای بولي داصفت یوځل بیا د (یونان باختري) دهنري مکتب دپیداکولو په مورد کې رښتني بولي.

ددې بهیر په یادونه کې یو بل ټکی دډیرې پاملرنې وړ دی او هغه دادی چې دادواړه فکري جریانونه او دواړه هندي اویوناني تمدنونه یواځې ددې له پاره نه وو یوځای شوي چې ددواړو له یوځای والي اوتماس څخه دې دیونوي فرهنګي او هنري تمدن درامنځ ته کیدلو سبب شي، بلکه ددې خاورې موقعیت او ددې هیواد دهنر مندانو استعداد دنوي مکتب دپیداکیدلو اصل سبب شول.

ټول په دې پوهیږي چې دیوناني باختري پاچاهانو هغه سکې چې په افغانستان کې مهر پرې کیندل شوی دصورت اوښکلا له نظره ترهغو غوره دي چې پخپله په یونان کې جوړې شوي دي. او داهم څرګنده ده هندي بودایانو د (سانشي) معبد یا عبادت ځای په شهادت چې داسیمه بمبئ ته نږدې ده دهیکل تراشنې په صحنه کې یې دبودادنمایش ورکولو جرئت کولی نشو.

او دسمبولیزم له روش یعنې نښو او علایمو څخه یې کار اخیست او دبودا نمایش دلومړي ځل لپاره په انساني شکل کې په ګندهارا کې عملي کړی شو، پر دغه ترتیب یوناني اوهندي چې په لومړیو وختو کې او په خپلو خاورو کې څنګه وو هسې به وو، خو کله چې دا روح اوقالب دافغانستان دهنر مندانو لاس ته ولوید په رښتیا چې دخپل قابلیت او مهارت له مخې یې نوی څیز منځ ته راوړ چې واقعاً غوره او ځانګړې بڼه یې درلوده.

په افغانستان کې دهنر تاریخ ددارنګه اقتباساتو او ترکیبونو ډیر مثالونه لري او زمونږ دهیواد جغرافیائي موقعیت ایجابوي چې هلته باید مدنیتونه په تماس کې وي، هوهغه څه چې دپاملرنې وړ دی هغه په اصل کې دافغانستان دهنر مندانو خپل استعداد دی چې تر اقتباس وروسته یې

دخپل فرهنګ له دود سره یوځای او له هغې څخه یې نوي فکري او هنري مکتبونه او مدرسې منځ ته راوړې.

که چیرته هغو زرګونو مجسمو ته چې یوائې په هډه کې کشف شوي دي، دقت وشي نوپوهیدلی شو چې په یوعبادت ځای کې دزرګونو ښکلیو مجسمو جوړول دیو یادوه تنوکار نه دی، په دې کې سلګونواو زرګونو ماهرو کسانو لاس درلود چې دومره ډیرې دحیرانتیا وړ مجسمې یې منځ ته راوړي دي.

په هر حال دګریک اوبودیک مدرسه یا دیونان بودایي مکتب دپخواني افغانستان دهیکل جوړونې اوهیکل تراشنې هنري مکتب دی چې دوه پیړۍ دمخه ترمیلاد اودوه پیړۍ وروسته تر مسیح یې دهندوکش په دواړو خواوو کې رواج او پرمختګ درلود چې تر اوسه یې دکمیت او کیفیت په لحاظ دهډې له سترې غونډۍ نه نښې نښانې په لاس راځي.

۱۵-۴-۱۳۳۷

# دسره کوتل کتیبې پر ډبرینو

# ښنتو یوناني توري

څه موده کیږي چې دهندوکش په شمالي برخه کې دسره کوتل په نامه ځاي کې کیندنې اوڅیړنې ادامه لري، هغه څوك چې په افغانستان کې دلرغون پيژندنې دڅیړنې په تاریخچه کې وارد وي پوهیږي چې له ۱۹۲۳ کال څخه تر ۱۹۵۰ کال پورې چې دهندوکش په شمالي برخو کښې هر څومره پلټنې وشوې نو په ځانګړي توګه دباختر په پراخه سیمه، دبلخ دښار په کنډوالو او چاپیریال کې یې ترسره شوې لکه څنګه چې ترې هیله کیږي داسې کوم څیز په لاس رانغی څکه چې اووه کاله دمخه دباختر لمر خاته پلوته دبغلان ولایت دپلخمري جنوب لویدیځ خواته په ۱۷ کیلومترۍ کې چې کومه سیمه واقع ده دهن غوري یې بولي اوهلته بیاد (دهن شیر) په علاقه کې دسره کوتل پر غونډۍ لوی اورتون (اتش) ګاه له نورو ابادیو سره یوځاي په مفصله توګه کشف کړای شوه او دپلټنو لړۍ یې لادوام لري.

پدې کې شك نشته چې د ۷ کالو په اوږدو کې له یوې نقطې څخه ډیرې خاورې رادیخوا شوي او داباديو بیلابیل ډولونه لکه اورتونونه، احاطه شوي ځایونه حجرې دیوالونه او برجونه، زینې او دحیواناتو دمجسمو ټوټې او نور په لاس راغلي دي چې په مجموع کې داټول په یولړ مهمو تاریخي مسایلو رڼاچوي.

نور ډیر څیزونه چې تر لاسه شوي هغوی کې یو شمېر کتیبې هم شته سرخ کوتل په افغانستان کې لومړی ځای دی چې هلته دکتیبو یادبرلیکونو په کشف بریالي شوي یو.

په سرخ کوتل کې چې لومړی ډبر لیك وموندل شو هغه ډبرو په ښنتو لیکنې دي چې یوه یادوه دانې یې دمخه تردې چې په غونډۍ کې دکیندلو کار پیل شي دغونډۍ دلمنې دپاي په برخه کې دسرك نر خوا په لاس راغلي دي او همدغه ښنتو دلرغون پیژندونکیو پاملرنه ځان ته راواړوله.

وروسته د کار په جریان کې پنځه خښتې نورې هم په لاس راغلې چې مجموعا اووه خښتې شوې، نن ورځ همدغو اووه ښکلو خښتو چې په یوناني لیك دود پرې (توري) لیکل شوي دي دسره کوتل دکیندلو عجائب تشکیلوي.

دهرې خښتې پرمخ درې توري نقش دي، خو لکه څنګه چې دخښتو اصلي ترتیب ګډ وډ شوی دی نو ځکه یې اصلي شمیره هم نه څرګندیږي چې څو عدده به وو، نو په همدې دوه لاملونو یې فعلا لوستل معطل دي او دحروفو دڅرنګوالي او یا نورو مطالعاتو کار په دې باره کې ځنډیدلی دی.

په سره کوتل کې دویم ډبر لیك دیواهکي جنس ډبرې په تخته باندې دیوشمیر حروفو څخه عبارت دی چې رنګ یې سپین زیړ ته نږدې دی او داډبره ددې اورتون داور له ځانګړې کوټې څخه په لاس راغلې ده.

ددې ډبرې مخ منځنی برخه لږه توږل شوې څرګندیږي او دافرضي پایې یې درلودې او لکه څنګه چې ددې ډبرې دپاسه اجاق وړاندې وروسته شوی، نو ځکه یې توږلي ځایونه څرګندیږي، په هر حال ددې ډبرې دپاسه هم اووه تورې کیندل شوي دي. اوداډبر لیك ناتمام پاتې شوی دی، اونابشپړ تیایې له دې څخه څرګندیږي چې دکیندل شوو تورو په امتداد دنورو تورو شکلونه هم په خارجي خطوطو څرګندیږي اوکیندونکي یا حکاك دحك کولو یا کیندلو له پاره وخت نه دی پیداکړی.

دسرخ کوتل دریم ډبر لیك دداسې یوې ډبرې په مخ لیك دی چې دعبادت ځای په منځ کې دداخل جنوبي خواته کشف شوی دی او نظر دډبرو خښتوته اوهغه تخته کاڼي ته چې وړاندې یې یادونه وشوه په مفصله توګه لیکنه لري چې دحروفو ټوله مجموعه یې درې کرښې کیږي.

موسیو کوریل دفرانسې دکیندنو دپخواني پلاوي غړی چې په سره کوتل کې دکیندنو پر مهال پخپله هلته موجود و، دخپل نظر څرګندونه کوي اووایې چې دډبر لیك ټول توري یوناني دي، مګر له کومې ژبې څخه چې کار اخستل شوي هم یوناني ده اوهم دباختر یوه سیمه ایزه ژبه ده چې هغې ته کولای شو (کوشاني) اویاهم تخاري ژبه ووایو.

دنوموړي څیړونکي دنظر له مخې دډبر لیك ددرې کرښو له جملې څخه دریمه کرښه یې یوناني ده ا وپه هغې کې په څرګنده دیواسم خاص

تشخیص شوی په لاندې بڼه به یې تلفظ کړو داخاص نوم چې په جمله کې استعمال شوی په لاندې ډول یې تعبیر اوترجمه کولای شو.

(دپالامد په مرسته) ( دپالامد دپاملرنې په وجه) ( دپالامد په کوښښ) دانه ثرګندیږي چې د (پالامد) په نامه یوناني شخص معمار دی او که اجاره دار اویاهم په دې برخه کې یې کوم ماموریت درلود ، لکه ناظم،ناظر او یاهم متولي باشي چې دمعمارۍکارونویې تر پاملرنې لاندې تر سره کیدل.

له دې ډبر لیك څخه ثرګندیږي چې یونانیانودکوشانیانو تروخت پورې هم په ځینو کارونو کې دخالت درلود.

ددې مضمون ددوه نوروکرښو ژبه دباختر دناثرګندې نیتې سیمه ایزه ژبه ده چې سمدلاسه یې (کوشانۍ ژبه) ګڼلی شو اوکولای شو چې دتخارۍ په نامه یې هم یاده کړو دادهغو ژبو له ډلې څخه وه چې دمسیحي په لومړۍ پیړۍ کې دبغلان په سیمو کې دود او معموله وه.

له سره کوتل نه څلورم کشف شوی ډبر لیك ډیر لوی او په مفصله توګه په یوې لویې هوارې ډبرې لیك شوی چې اوږدوالی یې یو متر اوشل سانتي عرض یې ۸۰ سانتي دی او دکرښو شمیره یې ۲۵ او په هره کرښه کې له ۴۰ څخه تر ۴۵ توري لري، داډبر لیك چې له سره کوتل څخه وروستی راوښتل شوی ډبر لیك دی ۱۱ میاشتې دمخه دغونډۍ له لاندینۍ برخې څخه په لاس راغلی او ټول دکوشانیانو دعصر په یوناني حروفو لیکل شوی دی، ددې ډبر لیك ژبه او هویت تر اوسه معلوم شوی نه دی، مګر ډیر باور لري چې ددې لیك هم ددریم ډبر لیك دوروستیودوه کرښو په څیر سیمه ایزه کوشانۍ یا تخارۍ ژبه وي،یعنې یوه دباختر یا بغلان سیمه ایزه ژبه وي دلوی کوشاني امپراطور (کنیشکا) دنامه پکې دوه ځله یادونه شوې ده.

ددې ډبر لیك له موندل کیدو راوروسته ژب پیژندونکي او ختیځ پوهان دهغې په مطالعه بوخت دي او موږ سترګې په لار یو چې په حل به یې بریالي شي او هر کله چې یې دژباړې متن خپور شي دابه دافغانستان دفرهنګ او ادب په تاریخ کې دیوې نوې صفحې زیاتوالی وي.

۱۳۳۷-۴-۲۸

# افغانستان دروحانیونو له خوا په چین کې دبودايي دين تبليغ

په افغانستان کې دبودايي دين تاريخ په کتاب کې ددې هيواد دبودايي علماوو تبليغ اوفعاليت دچين په خاوره کې يوه لويه او ځليدونکې صفحه نيولې ده.

داصفحه نظر له ليکنې رابطې، ددين او فرهنګ په خپريدلو، دهنر او ځرنګوالي له نظره اودچين،افغانستان ترمنځ دکلتوري اړيکو له نظره ډير ارزښت لري او تر کومه ځايه چې زما په ياد دي ماپخپله په چين کې وليدل چې چينايان هغو ته له موږ نه لږ ارزښت نه ورکوي.

په دې کې شك نشته چې په هندوستان کې بودايي دين دشپږمې م ز پيړۍ په اوږدو کې ځرګند شو اودموريا کورنۍ په وخت او په ځانګړي توګه داشوکا په زمانه کې دهندي مبلغينو له خوا دافغانستان په جنوبي برخه کې دارغنداو درود ترسېمې پورې خپور شو او چهل زينې سره نژدې داشو کا دوه ډبر ليك کشف دانظر يه په قطعي توګه ثابتوي چې له اشوکانه

وروسته دغه دین څه دپاسه یوزر کاله په افغانستان کې دود و او افغانستان په خپل وار سره دبودايي دین یو ډیر فعال او ډیر مهم مرکز وګرځید او دې فعالیت دکوشانشاهانو په دوره کې ډیر شدت اوپراخوالی وموند.

لکه څرنګه چې دافغانستان لویوکوشانیانو دخپلې خاورې دپراخوالي لپاره په سنګیانګ،طورفان اوختن کې دپاملرنې وړ هڅې وکړې، همدارنګه یې دبودايي دین دتبلیغ له پاره هم ډیرې هلې ځلې ترسره کړې، دبودايي روحانیونو ډلې ډلې کاروانونه به دافغانستان له سرحداتو نه ورتیریدل اومرکزي اسیا ته او له هغه ځایه دګوبي صحرا خواته دچین ځینو برخو ته اوله هغه ځایه وړاندې د (جاوا) په استقامت او ختیځ لور ته داقصی شرقي لورته اوهمدارنګه شمال لور ته دمنګولیا په لور وړاندې لاړل او دبودايي دین دتبلیغ له پاره یې هڅې ترسره کړې.

که چیرته په تاریخ کې ددې هڅو پانې واړول شي نودیوشمېر بودايي عالمانو اوپوهانو له نومونو سره به چې هغه دګندهارا، کابل کاپیسا، بامیان اوبلخ دي،مخامخ شو چې په ځانګړي توګه ډلې ډلې سل کسیزې او زرکسیزې ډلې دتبلیغ له پاره وتلې دي او دچین په سنګیانګ وترکستان څخه پخپله دچین له لور وړاندې تللي او دبودائي دین دتبلیغ له پاره یې هلې ځلې تر سره کړي دي.

دچین پخوانی کیسې او روایات په هغه سیمه کې دچینائي دین دخپریدلو زمانه دمسیحي دلومړۍ پیړۍ منځنی وخت ښیي دارروایات په دې باوري دی چې وروسته له هغې چې جنرال ( پان چاو) دکاشغر په سیمه کې په فتوحاتو بریالی شو، نوله بودايي عبادت ځایونو څخه یې مجسمې له ځانه سره چین‌ته یوړلې، کله چې دچین له لویدیزې برخې څخه یو شمېر مبلغین دبودائي دین دتبلیغ له پاره راوستل شول، نو لکه څنګه چې داوخت کوشانیانو په افغانستان اوګاونډیو هیوادونو کې واکمني درلوده نو ځکه تصمیم ونیول شو چې دچین دخاقان په غوښتنه یوشمیر مبلغین هلته واستول شي وایي چې لومړی ځل دوه تنه مبلغین چې چین ته واستول شول.یوتن یې (ګویهارانا) نومیده چې اصلا دګندهارا اوسیدونکی و.

دلومړۍ پیړۍ په پاې او ددویمې پیړۍ په اوږدوکې (چې دامپراطور کنیشکا دواکمنۍ له وخت سره سمون خوري) چین ته دمبلغینو ورتللو ډیر

شدت وموند او په ډیر شمېر به ورتلل، تاریخي منابع شهادت ورکوي چې په چین کې دمبغلینو فعالیت ورو ورو په مخ ولاړ تر دې پورې چې یوېل تن چینائي امپراطور (تسن) نه یواځې بودائي دین ومانه، بلکې پر ۳۳۵ کال یې دبودایي دین درسمیت په هکله په چین کې رسمي فرمان صادر کړ. په دې وخت دګندهارا اوکاپیسا دعلماو ډیر فعالیت څرګندیده. دافغانستان روحانیونو نه یواځې دبودائي دین دخپریدلو له پاره هڅه کوله، بلکې دمعبدونو یا عبادت ځایونو په جوړولو کې یې هم ډیره برخه اخیستله اوپه چین کې یې دمذهبي اثاروترجمې اوخپریدلو په برخه کې ډیرې هلې ځلې کولې، لکه چې په چینائي ماخذونوکې ددې ابادیو اوددې ترجمو خاطرې دلیدلو وړ دي.

۱۹-۱-۱۳۳۹

# خروشتي ليك دود

تر کومه ځايه چې دپخواني افغانستان دادب او فرهنګ په تاريخ کې څيړنه ترسره شوې څرنګه چې په لهجو او ژبوکې (چې ډيره برخه يې هند اوارورپايي اوهند اريايي اوهمدارنګه هند او ارياني ده) ډيربشت موجود و، نو ډير ليکدودونه هم معمول وو چې دهغوي په چاپيريال کې نسبتا لږه څيړنه اومطالعه شوې ده.

په دې کې شک نشته چې په لرغوني افغانستان کې دليکدود ژوره او عمومي مطالعه دهيواد دټولو جغرافيايي ساحو له لټون سره لازم او ملزوم ده ترڅو چې يوشمېر اثار که هغه دځمکې پر مخ وي او يا ځمکې لاندې ومونډل شي او دايو وروستني او اوږد کار دی چې دوخت په تيريدلو به انکشاف وکړي، لکه چې په دې وروستيو کلونو کې دکشف شويو ډبر ليکونو ډيرې خبرې مو تر غوږ کيږي او هيله لرو چې دلرغون پيژندونکيو داعلمي هڅې چې په تاريخي او ادبي برخه کې يې ترسره کوي، ډير برياليتوب يې په برخه شي.

يوله هغوليکدودوڅخه چې له اسلام دمخه دوروکې يې رواج درلود (خروشتي) ليک دود دی چې ددريمېم ز پيړۍ له نيمايي څخه تر څلورمې او پينځمې پيړۍ پورې يې ۷-۸ سوه کاله دوام کړی دی.

معمولا پوهان په دې عقیده دي چې د (خروشتي) لیك دود اصل او مبداء د (ارامي) په نامه یوبل لیکدود و چې دپیداکیدو اوتحول د ځرنګوالي شرح یې د (سومریانو) دلومړي عصر میخي لیکدود ۳۵۰۰ دمخه تر میلاده او هغه بدلون چې پکې فنیقانو، کلدانیانو او اشوریانو منځ ته راوړي دایوه بیله موضوع ده چې کار پرې نه لرو اودارتباط له مخې همدومره باید ووایو چې (ارامي) لیکدود ۷ یا ۸ /۹ سوه کاله دمخه تر میلاد ختیځ اولویدیځ یعنې ایران او هند له خوادافغانستان خاورې ته راننوت. پاتې دې نه وي چې په عمومي ډول په ایران، افغانستان او هند کې چې کوم لیکدودونه دود شوي دي مبداء یې همغه ارامي لیکدود دی،

یوبله عقیده هم شته چې (ارامي) لیکدود له ۴-۵ م ز پیړۍ راپه دې خوا دهغه عصر له منشیانو سره چې یې یهودي او ارمني وو دافغانستان په خاورو او زمونږ په هیواد کې رواج موندلی دی.

په هر حال سمه خبره داده ارامي لیکدود چېد هخامنشي عصر دیوان او رسمي دفترونو ته یې لاره موندله او عام شو په افغانستان کې دفتري او اهل قلمو په دې رسم الخط کې یو څه بدلونونه راوستل او په نتیجه کې ددریمې م ز پیړۍ په نیمایي کې یونوی رسم الخط منځ ته راغی. لکه څرنګه چې د ((خروشتي)) لیکدود مبداء او دپیداکیدلو ځای افغانستان و او دلومړي ځل لپاره ددې لیکدود نمونې له افغانستان څخه په لاس راغلي نو په علمي ټولنو کې د ((اریائي رسم الخط)) ((باختر اوبالي)) ((باختر او هندي)) ((ګندهاري)) شمال لویدیځ رسم الخط اودخروشتي په نومونویې شهرت پیداکړ اوبالاخره دپوهانو اوژب پیژندونکیو په منځ کې د ((خروشتي)) په نامه مشهور شو اوپه علمي حلقو کې دګندهارا په نامه ډیر ښه شهرت لري.

خروشتي لیکدود د ((ارامي)) په ځبر له ښي خوا څخه چپې ته لیکل کیږي دهغې علت دحروفو نیمګړتیا وه. خروشتي لیکدود په علمي طبقو کې چندان دود نه و، بلکې په دیوان اودفترونو کې دکسب ګرو، سوداګرو اوعامو خلکو ترمنځ ډیر دود و، همدارنګه په اوقافو او دقبرونو په کاڼو به استعمالیده، وړاندې موویل چې دخروشتي لیکدودلومړنۍ نمونې په افغانستان کې تر لاسه شوي دي اومعمولا دپیاوړتیا اوپراختیا ساحه یې

دهندوکش جنوبي برخه اوډېره اندازه دجنوب ختيځ سيمه او تر ټولو ډېر په ختيځ کې دګندهارا سيمې ته متناسبه ده.

همدارنګه يې شواهد د نوموړو غرونودشمالي او جنوبي برخو دلړويو له استوپو اوله هډې، بګرام، جلال اباد، بلخ، باميان اووردګو څخه موندل شويدي.

خروشتي ليکدود تر ميلاد دمخه په دريمه پيړۍ کې منځ ته راغی اوپه پينځمه مسيحي پيړۍ کې له منځه ولاړ چې په دې حساب يې اووه سوه اوډېر تر ډېره اته سوه کاله دوام وکړ. يواځنی واکمن چې له خروشتي ليکدود څخه يې په خپله سکه کې کار اخستی دی يونان باختري پاچا ((دمتريوس)) دی چې دهند په فاتح شهرت لري لکه چې له باختر څخه دهندوکش جنوب پلوته يې دواکمنۍ لمن پراخه شوه پخپله هم راغی او له هغه ځايه يې دواکمنۍلمن تر ګندهارا او بيايې له هغه ځايه دسند رود تر غاړو پورې پراخه شوه، نو ځکه يې ددې لکيدوددرواج اړتيا محسوس کړه. نوموړي واکمن دخپلو سکو پر يومخ يوناني ژبه او ليکدود اوپر بل مخ يې خروشتي ليك دود استعمال کړی‌دی، طبيعي خبره ده چې سيمه ايز ليکدود معمول او دختيز هندوکش جنوب پلوته هم پکار شو پوهان پرته له دې چې په جزئياتو کې ورداخل شي هغه يې د (پراکريت) په نامه ياد کړی دی چې دپيژندګلوۍ صحيح ټاکنه يې لاتر اوسه نه ده شوې په هر حال دلته اصلي مقصد دخروشتي ليکدود په چاپيريال کې بحث کول دي او داسې معلوميږي چې باختري پاچا ددې له پاره چې خپل هويت او نوم او نښان خلکو ته لاښه معرفي کړي علاوه پر يوناني ليکدود دافغانستان له سيمه ايز ليکدود څخه يې هم کار اخستی دی او دخپلو سکو پر شا يې دلومړي ځل له پاره خروشتي ليکدود استعمال کړی دی وروسته له هغه څخه ډيرويوناني او باختري واکمنانو اسکائي کورنيو او ترخنګ يې لويو کوشانشاهانو لکه فنيرسينو، کنيشکااوهوويشکا هم همدا رويه او لاره تعقيب کړه دخروشتي ليکدود اثار له پنجاب او حتی له ((ختن)) څخه هم په لاس راغلي دي مګر ډېر يې داسې ګني چې دختن ډبر ليك اصلا په ګندهارا کې ليکل شوی او وروسته له هغې هلته ليږدول شوی‌دی.

دخروشتي ليکدود اثار اوډبر ليکونه تر اوسه پورې د ( بيماران) له قريې ،هډې او دوردګو له (( خوات)) ، جلال اباد، بګرام ،باميان او بلخ

څخه په لاس راغلي دي. چې دموندنې شرح او دليكنې موضوع يې ځانګړې مطالعه غواړي.

له دې سره سره خروشتي ليكدود پر ډبرو، فلزي لوښو، پر سكو پر خټينو لوښو، پر پوستكو اونورو شيانو دپاسه ليدل كيږي. پرفلزي. لوښودحروفو دليكلواصول عموما دنقطو دتسلسل په بڼه ليدل كيږي. پر فلزي لوښو معمولا ليكنې يې په كركيچ يادډورمي دقلم په واسطه او يا هم دلرګي په قلم په تور رنګ شوې دي.

خروشتي ليكدود دخپلو اتوپيړيو په عمر كې دافغانستان په فرهنګ، ادب او تاريخ كې مهمه ونډه درلودلې ده او ژورې مطالعې ايجابوي، اودهيواد د ادبي تاريخ دپړاوونو په روښانولو كې ډيره په زړه پورې موضوع شميرل كيږي.

۱۳۳۷-۴-۳

# بلخ کوچنی شاهي ښار

# (شاه واران) یا (راجاګریه)

بلخ دتاریخ په اوږدوکې دخپل اوږده او افسانوي تاریخ په لړلو چې پیل یې دتاریخ له برید او حد نه پورته داټکل په لفافو کې ،شاعرانه خیالاتو اوخیالي داستاني تصوراتو کې نغښتی او په ډول ډول نومونواوبیلابیلو صفتونو یاد شوی دی، چې هر یو یې دتاریخ دیوې دورې یادګار او دیو عصر تهذیب ژبه او دین دی.

بلخ په ډیر لوي صفت "دښارونو مور" یاد (ام البلاد) په نامه یادشوی دی. دبشر دپخواني روزګار او پخواني وخت درک پکې لرو چې ددې ښار داوږده عمر زړې خاطرې پکې لکه درنا په څېر شغلې وهي.

اریایان دخپل روزګار په لومړي تمدن کې همدې ځای ته ورسیدل او ((بلهیکا)) یې دخپل ژوندانه لومړی زانګو جوړه کړه ( موجي دیګر) له همدغو آریایانوڅخه وو چې ډیر یې ښار اوسیدونکي او بزګرشول چې پر (بخدي) یې لوړ بیرغونه وړپول.

هخامنشیانو چې دلومړی اریایي تاریخي شاهنشاهی بنسټ په (پاستارګاد) کې کیښود. داښار یې په خپلو ډبر لیکونو کې د (باختر ش)

پـه نامـه يـاداوه او يونانيـانو مخصوصـاً سـكندر مقدونـي هغـه د (بكـمتر) او (بكترا) پـه نامـه وبالـه.

كـه لـه يـوې خـوادابنار پـه پخوانيـو ژبـو (ويـدي او اوسـتا) كـې د( بلـهيكا) او (بخـدي) پـه نومونويـاد شـوى لـه بلـې خـوا پـه منځنيـو ايرانـي ژبـو پـهلوي او بله يې لـه پيړيـو را پـه دې خـوا هـيره شـوې (بلخـي) چـې تـازه راڅرګند شـوې ده (بـاخل ) يـا (بخـل) او (بـهل) يـادوي، اوبلـخ ددوه زره كالـه دمخـه اوسـيدونكيو منقلب شـوى نـوم دى چـې د (بخـل) تحـول پـه (بلـخ) دانظريـه پـه اسانۍ سـره څرګنـدوي.

زمونـږ بلـخ د تـاريخي اودخيـالي ښار پـه يـو شـمېرصفتونو لكـه (( بلـخ ګزيـن)) (( بلـخ الحسـنا)) (( بلـخ بـامي)) هـم مشـهور دى اود(( بـاميك)) كلمـه چـې پـه پـهلوي ادبيـاتوكې يـې يادونـه شـوې ده دځليدونكـي، لـه نـوره ډك او پړك وهونكي معنـا لـري.

دبلـخ دښار يوصفـت (شـاه واران) دى چـې دادبـي لغـوي ترجمـي لـه مخـې يـې ( شـاه وران) يـا (شـاهوار) يـا (شـهوار) هـم ليكلـى شـو. او پـه اسـانه تـوګه هغـه د ( لايـق شـاه) او (سنراوارشـاه) پـه بـنه ژبـاړلى شـو مـګر اصطلاحـي معنـايې څه بـل ډول ده چـې هغـه بـايد دشـهر كـوچك شـاه يعنـې (دشـاه وړوكـى ښار) يـا شـهر كـوچك شـاهي ( دشـاهي وړوكـى ښار) وژبـاړو.

د (شـاه واران) اصطـلاح داسـلامي دورو ددري ژبـې د ادبيـاتو پـه تـاريخ كـې راغلـې ده او كـه چيرتـه داوي چـې پـه اصلـي او واقعـي تـوګه يـې پيدا يـښت ومومـو، نـو بـايد دبودايـي دورو فرهنـګ او ادب تـه مراجعـه وكـړو.

كلـه چـې داومـې پيـړۍ منځنيـو كلونـو كـې چينـائي كتونكـي ( هيـوان ـ تسـنګ ) دجيحـون لـه رود نـه تـيريده دلويديـز تركـانو كورنـۍ پـر تخارسـتان چې بلخ يې يـوه برخـه وه واكمنـي درلـوده اومركـز يـې كنـدز يـا (كـهندژ) و چـې پـه چينـايي لهجـه (هـوو) بـاندې يادشـوى. څكـه چـې تـرك چينـي خـان دكنـدز واكمنـي د (تـاتو) پـه نامـه او د(شـهه) پـه صفـت يـاده كـړې ده چـې مقصـد يـې د( شـاه) كلمـه ده چـې دادخيړنـې لـه مخـې پـه بلخـي ژبـه كـې موجـوده وه او تركـي شـهزداه يـې پـه سيمه ايزه ژبـه كـې ( تاتوشـه) بالـه.

پـه كنـدز كـې دچينـي كتونكـي داوسـيدلو پـر مـهال دحـرم دننـه تحريكـات چـې ختيـځ يـې بيلـكي ډيـرې پـه خـاطر كـې لـري، تركـې شـهزاده نومـول كيـږي او بـل شـهزاده يـې پـه ځاې واكمـن كيـږي اوبيـا هغـه وخـت لـه چينـي كتونكـي نـه غوښتنـه

کوي چې د (راجاګریه) یعنې د "شاهي ورو کې ښار) لیدلوته ولاړ شي داوړوکي شاهي ښار او دا (راجاګریه) همغه دبلخ ښار وچې دعلماوو اوبودایي عبادت ځایونو په لرلو دبودایي دین دپلویانو په وړاندې دیو مقدس ځای حیثیت پیداکړی و او تر دې حده دټولو په نظر کې ښاغلی وچې دکندز شهزاده نه غوښتل چې چیني کتونکي دهغه ځای دکتلو پرته ستون شي.

په دې وخت کې دبلخ ښار ښې پرتمینې ودانۍ او په سلګونو عالمان او پوهان درلودل چې دشهرت ګنګوسیو یې داسمان فضا نیولې وه، دامهال بلخ هر څه درلودل خودعبادت ځایونو او پوهانو په حلقو پورې اړوند وو.

له اسلامي دورو څخه دمخه "راجاګریه" (شاهي ورکوټي ښار) او داسې نور ډیر صفتونه داسلامي دورو په تاریخ او ادبیاتو کې منعکس شوي دي، لکه څنګه چې مو ولیدل دغه انعکاس د (شاواران) په بڼه ځلا کړې ده او په حقیقت کې د پراکریت په دري ژبه ددوه کلمو ترجمه ده چې په هغې کې د (شاه) کلمه د (راجا) په ځای اود (واران) یا (وار) کلمه د (ګریه) په ځای راغلې ده.

د (واران) په کلمه کې "وار" داحاطې، کلا او حصار په معنا هم راغلې دی، او د (شاه واران) په ترکیبي کلمه کې د (شاوبهاره) آهنګ هم اورو چې دشاهي معبد یاعبادت ځای معنا ورکوي.

۱۷-۱-۱۳۴۰

# نوبهار معبد(عبادت ځاي)

# یا - ناواویهارا

دافغانستان داسلامي ، بودايي او دزربښتي دورې تاريخ کې دنوبهار معبد ډير مشهور عبادت ځای دی. ددې معبد شهرت په افغاني آثارو کې ،دغربي، پهلوي او دسانسکريت په ژبو کې ليدل شوی دی. او دا ټول ماخذونه ترې په يو ډول بحث کوي.

دافغانستان د دري ژبې په بيلا بيلو مواردوکې ترې يادونه شوې ده که هغه په نظم کې ده او که په نثر کې او دافغانستان شاعرانو او ټولوليکوالانو يې له دقيقي بلخي څخه راوروسته يادونه کړې ده.

يوه تېروتنه چې دختيځ پوهانو اوافغاني پوهانو ترمنځ رامنځته شوې ده او هغه هم وروسته اصلاح شوې ده هغه دنوبهار دعبادت ځای تعلق له زردښتي يا ( مزديسنا) سره ښيي او حال دا چې د (نوبهار) معبد يا عبادت ځای له آتش پرستۍ دين سره کومه رابطه او اړيکی نه درلود او اصلاً دبلخ يو ډير مشهور بودايي معبد يا عبادت ځای و.

دنوبهار معبد دپخواني افغانستان په خاورو او ګاونډيوهيوادونو لکه چين، هند اوايران کې ډير شهرت لاره.همدا رازچيني او عربي ماخذونو يې هم يادونه کړې ده.

په دې کې شك نشته لکه څنګه چې فرانسوي ختيځ پيژندونکي موسيو فوشه وايي چې دنوبهار دمعبد ياعبادت ځایٔ به يې ( نوی معبد) باله او داصفت تر هغې

پورې چې ترڅو دامعبد رنګ او په کنډواله بدل شو دخلکو لـه خولـې ونـه لوېده خو په دې هيڅ نه پوهيږم چې کله جوړ شوی او ددې بنسټګر څوك و ؟
کله چې تر ۱۲۲۵ کال دمخه چيني ګرځنده هيوان تسنګ بلخ تـه راغـی دخپـل سفر په يادښتونوکې يې دنوبهار معبد دجوړولو نسبت يوپخوانی پاچا ته وکړ. بـايد پام وکړو چې چينـائي ګرځنده هيـوان تسـنګ يـو دقيـق او بـاريك بيـن سړی و او دا يوائينی سړی دی چې ددې مشهور عبادت ځاي نوم يې صحيح راختـی اوسم يـې ليکلـی دی چې هغـه عبـارت دی لـه (ناوويهاره) څخه، چې لومړۍ کلمه يې (نـاوا) يعنې (نو) يانوي ته او (ويهاره) يې بودايي عبادت ځاي تـه وايـي او هغـې کلمـې تـه پر بله بڼه (سنګهارمه) هم موجوده وه، دهيوان تسنګ او يوتن بل بودايي دين راهب (ئي- تسنګ) دنظريو پر بنسټ دنوبهار بودايي معبد دبودايي په طريقه (دخلاصون وړه لاړ) او تـر ډيره حده دهمدې طريقي دپلويـانو پـه ( سـر اوسـنی وادن) پـورې اړه درلوده او دا يوائينی معبد و چې ددې طريقې پيروانو دهندوکش په شمال کې لاره. دنوبـهار دمعبـد شـهرت بـه يـې معمولاً پوهـانو او مفکرو علمـاو تـه کـاوه حـال داچې دشهرت لوی عامل يې دعوامو پر نظر دبودا يـوه قيمتـي مجسمـه اودهغـه څو يادګارونـه وو ، لکـه دهغـه غـاښ، داوبـو لـوښي او جـارو، داقيمتـي يادګارونـه چـې دمعبد يا عبادت ځای په دننه ساتل کيدل نو دبودا پلويان يـې دلـيرو لـيرو ځايونـو، لکه چين او هند څخه بلخ ته جلبول چې له دې درکه په بلخ کې دمعبد محـافظينو تـه لويه ګټه وراوښتله.
په دې کې شك نشـته چې پـه عربي اوفارسـي مـاخذونوکې د (نوبـهار) لـه نامـه سره هميشه د (برمکيانو) يادونه متصل شوې ده او لکه څنګه چې يې معبد داتش پرستۍ عبادت ځای تصور کړی دی نو (برمکيانو) يې هم دمويـد او مويـدان ورثـه او پاتې شونې ګڼلي دي حال داچې دلته هم بيلا بيلې نظريې موجودې دي.
موسيو فوشـه د (برمك) دکلمـې ريـښه د (نواکرميکـا) پـه کلمـه کـې ګوري او ليکي چې له(نواکريکا) څخه مقصد ديوې لويي دندې ده چې دشاهي دلويې ودانـۍ خارنه ترې مطلب وه او دا دومره لويه دنده وه چې پاچا او (نواکرميکا) بـه پـه يوځای تاکل کيدل. ددې لوی دندې يادونه په هغه مسي لوښي کې شوې ده چې دکنيشـکا نوم پرې ليکل شوی او دپېښور له معبد ياعبادت ځای څخه کشف شوی دی پـه دې اساس برمکيان اودبرمکيانو کورنۍ چې دعربي او فارسي ادبيـاتو پـه فرهنګ کې شهرت لري او پاتې پايڅوړ يـې پـه اسـلامي دوره دبغـداد دخليفـه ګـانو پـر وخـت دوزارت ترمقامه ورسيدل اصلاً دبودايي دورو پـه وخت کې دبلخ د عبادت ځايونو

نوبهارساتونکي او څارونکي وو او په اوسني اصطلاح کولای شو ورته دهغه مشهور عبادت ځای (متوالي باشي) ووایو.
دلغوي ورته والي له مخې هم د (برمك) او (کرمك) کلمې چندان لرې والی نلري او له بلې خوا دهغه مفهوم له نظره چې عربو دنوبهار معبد ته ورکړی و هم کولای شو ثابت کړو چې نوموړی نوبهار بودايي مزدك ، ځکه چې په عربي متون کې دګنبدې یادونه شوې ده چې دبودایي استوپې پر نظر انځوريږي.
دنوبهار په معبد کې لویه ګنبده داحاطې په منځ کې لیدل کیږي داپه مربع ډول جوړه وه او چار چاپیره یې دراهبانو له پاره ۳۶۰ حجرې درلودې او دا تعریف داتشکدې له تعریف سره هیڅ برابری نه خوري، نو لکه څنګه چې دبودایي ګرځند مفصل تشریحات په لاس لرو په دې کې یو کوچنی شك هم نشته چې دبلخ دنوبهار معبد بودايي دی او یو شمیر راهبانو علماوو او روحانیونو دمعبد چارچاپیره داوسیدلو حجرې درلودې دمعبد عمومي څارنه او دعایداتو جمع واري اودبودائي آثارو محافظه دهمغو متوالیانو پر غاړه وه چې دبرمکیانودکورنۍ غړي وو.
په دې ټول پوهیږو چې دبلخ دديوالونو جنوب پلو ته لویه دروازه موجوده ده چې معمولاً هغې ته (درنوبهار) یاد (نوبهار دروازه) وائي او دعامو طبقو په ژبه د (دروازه بابه قوه) په نامه هم شهرت لري، داوړوکې خاطره چې دزمان اومکان له یوې خلا څخه تر موږ رارسیدلې ده ډیر ارزښت لري. ځکه چې عقلاً دپخواني او لرغوني معبد ځای ګی رانبیي او له نیکه مرغه د همدې دروازې ترڅنګ دخاورو دوې غونډۍ موجودې دي چې یوې ته ((رستم تخت)) او بلې ته (توپ رستم) وایي. چې وروسته دموسیو فوشه له ډیرو هڅو څخه وپیژندل شوې چې دیوې بودایي استوپې بنه یې لرله او دهغې پر اساس ویلای شو چې اقلاً دنوبهار ددروازې ترڅنګ دیوې لویې بودایي استوپې پاتې شونې تراوسه پاتې دي او ډیراحتمال لري چې همدغه استوپه همغې د(نواوبهاره) معبد پورې اړونده او تړلې وي.
دالویه استوپه درې پوړونه لري چې دمربع په بنه یو دبل دپاسه دي او ددې درې ړاړوپوړونو اضلاعو ته دپایو اوستنو قطارونه لیدل کیدل او ددریم پوړ دپاسه داستوپې لوړه ګنبده جوړه کړای‌شوې وه، دالویې استوپې خپلو څلورو خواوو ته څلور لویې زینې لري چې پاتکویې داستوپې مرتبو پلو ته لارښوونه کوله.
۷-۸ — ۱۳۳۷

# دبلخ نوبهار یاناواویهارا

بلخ هغه لرغونی ښار دی چې دآریایانو دلومړي استوګن ځای نـه تر اوسه پورې په ټولو دورو ټولو مـاخذونو او پـه ټولـو لـهجو او ژبوکـې شـهرت لاره او لـري یـې، همدې بلخ یومشهور معبد یاعبادت ځای درلـود چې د (نوبـهار) یـا(ناواویـهارا) پـه نامه یادیده چې دشهرت آوازه یـې زمـوږ لـه خاورې نـه دباندې وتلې او پـه ګاونـډیو هیوادونو لکه هند، ایران او چین کې یې انعکاس شوی و او ددنیا دبودایي نـړۍ لـه ګوټ ګوټ نه به یې کتونکي او راهبان زیارت ته راتلل.

(نوبهار) یوه ترکیبي کلمه ده او له دوو برخو (نو) او (بـهار) څخه مرکبـه شـوې ده چې دسانسکرت بڼه یې (ناوا) او (واویـهارا) ده چې لومړی (نو) یعنې نوی او دویم معبد یعنې عبادت ځاي معنا لري، او ترکیبي مفهوم یې (معبدنو) یا (نـوي عبـادت ځای) کیږي. دانوم په ټولو اسلامي دورو کې لـه منځه نه دی لاړ، یوه محله اودبلـخ دسترې کلایوه دروازه دنوبـهار پـه نـوم یـادیده لکـه څرنګه چـې دنوبـهار دروازه او لوی کمال یې دحصار په جنوبي برخه کې تر اوسه موجود او ډیر مشهور دی.

دبلـخ نویـهار دتـاریخي ارزښت او سـوابقو لـه مخـې او همدارنـګه دجغرافیـائي موقعیت او مذهبي رسوماتو اوادابو مفصله تاریخچه لري چې دامختصره مقاله دهغې دتشریح توان نه لري هغه څه چې غواړم په دې مقاله کې یې څرګند کړم هغه ددې معبد

په افغانستان کې دبودایي او کوشاني دورې یوه مشخصه تاریخي دوره ده چې دلومړۍ پیړۍ په پای اوددویمې مسیحي پیړۍ په پیل کې شروع شوې ده.

نوسمدلاسه یې هغه پخوانۍ دورې په ځای پریږدو او (نوبهار) دیوبودائي معبد یاعبادت ځاي په توګه معرفي کوو.

داله امکان څخه لیرې نه ده چې دنوي عبادت ځای (نوبهار ) پر ځای به کوم بل زوړ او پخوانی معبد هم و خو تاریخ ویلی نه شي چې دبلخ بودایي پخواني اونوی معبد یاعبادت ځای په کوم عصر اووخت کې جوړ کړای شوی دی، تر یوه حده داڅرګنده ده چې دبلخ (نوبهار) دافغانستان دکوشاني کورنۍ د تر ټولو لوی پاچا امپراطور کنیشکا په زمانه ( دلومړۍ پیړۍ په پای او ددویمې مسیحي پیړۍ په نیمایي کې جوړ شوی و.

لومړی شخص چې دبلخ یومعبد یاعبادت ځای یې د (ناواویهارا) په نامه یادکړی دی هغه چینائي ګرځنده هیوان تسنګ دی چې په بلخ کې یې د لیدلو کتلو ۱۲۲۷ کاله تیریږي.

نوبهار یوه لویه عبادتګاه وه چې په شاوخوا کې یې ۳۶۰ حجرې دبودایي راهبانو له پاره جوړې شوې وې او دبلخ یو ډیر شمیر روحانیون به په هغو حجرو کې اوسیدل او دې معبد ته یې دیو لوی مذهبي پوهنتون حیثیت ورکړی و.

داوومې میلادي پیړۍ په لومړي نیمایي کې ددې علماوو سرحلقه ( پراجناکارا) نومیده چې دمشهور چینائي ګرځندوی یې په بلخ کې استقبال کړی و اوهغه په افغانستان دپاتې ټول سفر له پاره یې ورته لارښوونې او مرستې کړې وې.

دبلخ په هواره لویه ساحه کې ډیره زیاته زمکه ددې معبد له پاره وقف کړای شوې وه، دبودا غانښ لویه مجسمه او جارو یې په معبد یاعبادت ځای کې ایښودل شوي وو ددنیا له لریولریو ځایونو څخه به دبودایي دین پلویان اوکتونکي هر کال هلته دزیارت له پاره ورتلل .پاتې دې نه وي چې په سانسکریټ کې ټولو بودایي معابدو یاعبادت ځایونو ته سنګهارمه ویل کیدل او دا کلمه دبلخ دمعبد له پاره په ځانګړې توګه هم استعمال شوې ده، یوبل چینائي ګرځندوی چې تسنګ نومیده وائي چې دبلخ دنوبهار معبد یا عبادت ځای دیوې طریقې متعلق د (خلاصون وړ لاره) وه او دا باید هیر نکړو چې دبودایي دین پلویان په عمومي توګه په دوو طریقو پورې اړه درلوده یودخلاصون دلویې لارې پلویان او بل دخلاصون دوړوکې لارې پلویان.

موږ تول دخپل هیواد په اسلامي تاریخ کې دبلخ له (برمکیانو) څخه لږ ډیر خبر یو چې دبغداد دخلافت په دربار کې یې دوزیرانو په حیث څومره ارزښتناکه اوستره ونډه درلوده او په څومره ښه ډول یې چارې پر مخ بېولې، هغوي اصلاً دبلخ دنوبهار دمعبد یا عبادت ځای دمتوالي باشیانو اولاده وه.

موسیوفوشه فرانسوي ختیځ پیژندونکی دبرمکیانو پخوانی نوم په (نواکرمیکا) کې موندلی او لیکي چې (کرمیکایان) یا دبلخ دنوبهار دمعبد متوالیان یوه منوره کورنۍ وه او دمعبد دمتوالي توب دنده ډیره لویه او ستره دنده وه.

کرمیکیان چې وروسته یې ترې برمکیان جوړ کړل دوي په بلخ کې ډیر معنوي قدرت او نفوذ درلود او دنوبهار معبد دعلماوو او پوهانو دروزنې مرکز شمیرل کیده، چې له همدې وجې یې دپخواني افغانستان په فرهنګي تاریخ کې ډیر مهم نقش لوبولی دی.

۸_ ۷_ ۱۳۴۱

# دوربینمو لار او دهغې په اوږدو کې دافغانستان دریځ

دبحري لارې ترکشفېدو دمخه، راکړه ورکړه، تلل راتلل اودتجارانو مالونه وړل راوړل دحیواناتو په واسطه کیدل چې د (مدیترانې) یا سپینې بحیرې ختیزو خواو دچین تر منځ (داسیا ترمنځ) پورې اوږدوالی درلود. ویلی شو چې دبحري لارو ترکشف وروسته سفر کول په سیندونو کې له خطرونو څخه ٠خالي نه وو، خوبیا هم تر څه موده پورې وچې لارې خپل موقعیت له لاسه ورنکړ. هغه چاچې دیونان اوبکتریان یاباختر ترمنځ لاره کشف کړه هغه دمقدوني یوتن سوداګر ماتسن تې تیانوس نومېد، دغه سوداګر په دې کشف سره دافغانستان په شمال کې مخصوصاً دبلخ تجارتي مرکز دبحرالروم له څنډو او ښارونو سره وصل کړ.

ددې اکتشاف اصلي لامل دوربینمو د پېرو پلور (سوداګرۍ) موضوع وه څکه چې نوموړي سوداګر په شمال کې تجارت خانه درلوده او ډیره هڅه یې کوله چې د وروېښمو دتولید له نقطې سره دهغه مرکز رابطه قایمه کړي چې هلته درنګولو او تاو ورکولو مخصوص مرکز وو. دادواړه نقطې یوه له بلې لرې پرتې وې څکه چې هغه وخت دوربینمو مهم تولیدي مرکز ختیز ترکستان یادسنګیانګ ښمه وه چې په هغه وخت کې یې هغه ځای ته (سیرند) یعنې هند او چین ته دنژدیوالي په علت یې (هندوچین) وې چې پرته له هند او چین څخه مشهور ؤ او په هغه وخت کې دوربینمو دتولید مشهور ښارونه له (کاشغر) او (ختن) څخه عبارت وؤ.

وربینمو او وربینمین ټوکرانو د رومي امپراطورۍ په ساحه کې ډیر رانیونکې درلودل اوپرلار دبیلا بیلو هیوداونو تجارانو لکه د شام، پارت او نورو له اخیستلو او حمل ونقله ډیره ګټه ترلاسه کړه اوداوښانو لوی لوي کاروانونه دکاشغر او ختن اوهمدا راز ترشامي ښارونو او بحر روم پورې به تلل راتلل. هغه مهمې نقطې چې

دوریښمو پر لار واقع وي له لویدیځ څخه ترختیځ پورې عبارت وي له هر اپولیس ( دفرات په غاړه یو ښار و) اوس ، سیبي ، هکتبان چې پکې پلورنه او ببرودنه کیده.
افغانستان دوریښمو له خاطره یوځانګړې شهرت او خاص موقعیت درلود او دسوداګرو دمال له نظره یې له ترانزیت نه ډیره ګټه اخیستله. لکه څرنګه چې دلارې په منځنی برخه کې واقع و او په دې سیمه کې لاره دشمال پر لور تر ماوراء نهر اومروپورې او جنوب لور ته تر هند پورې نیمیدله، نو ځکه یې ترانزیتي ګټه ډیره زیاته وه اصلاً دغه بلخ ښار په داسې یوه نقطه کې پروت و، چې د هندي یا جنوبي شاخ او شاخ یاچیني هغوي دواړودوریښمو لارې هملته یوځای شوې وې او یو تر بله یې اړیکې پیداکړي وو اود(بخدی) اوښان چې ددوه کوپونو (موړو) لرونکي وو او شهرت یې په ټوله نړۍ کې خپور دی دوریښمو په کاروانونو کې یې مهمه ونډه ترسره کوله او دچین له بیلابیلو برخو څخه حتی له پیکن څخه ددې اوښانو دپخې ختې مجسمې په لاس راغلي دي.
پرته له وریښمو څخه چې دترانزیت په ډول له دې خاورې څخه وارد شوي اودآسیا لویدیزو سیمو ته لیږدول شوي یوشمیر نور معدني، نباتي اوحیواني محصولات هم وو لکه لاجورد ، عقیق، وړۍ، غالۍ او وچه میوه دهیواد له داخل څخه او دیو شمیر سوداګرو مال لکه پنبه، خوشبویه نباتي مواد ، نیل او نور دهند له خاورې څخه داسیا لویدیزو سیمو ته رسیدل چې له هغه ځایه رومي او یوناني سوداګرو دروم دامپراطورۍ له سیمو څخه وړل دوریښمو لاره چې په نړیواله سطحه شهرت لري سرتر سره دکاروانونو لاره ده چې تقریباً داسیا دوه برابره برخه یې نیولې وه اودتجارتي ګټو دلرلو په خاطر دلویو هیوادونو لکه چین، کوشاني پاچاهانو اودرومي امپراطورۍ ترمنځ یې دارتباط عامل شمیرلی شو.

۱۰ـ ۲ ـ ۱۳۳۸

# اياتكارزريران يا ددقيقي بلخي دشاهنامې منبع

افغانستان دآسيا په څلور لاري کې مدنيت لرونکې او مدنيت روزونکې خاوره ده چې دعلمي هڅو له مخې مو تر ۵ زره کلودمخه خلکو دژوند او اوسيدلو نښې نښانې دارغنداو په سېمه کې تر لاسه کړي دي اوله هغې پورته دهندوکش په غارو يا لويوسمڅو کې چې د (ايبك) سيمې ته نږدې دی، بريالي شوي يو، چې دحجرو دلومړيو دورو دژوند آثار پيدا کړو چې پر زرګونو کلو وړاندې زمانې پورې اړه لري، د ۳۰ زرو څخه تر ۵۰ زره کلو دمخه زمانې دشهادت په توګه يې وړاندې کولی شو.

لکه څنګه چې دسپړنو دهڅوچارې دپخوانيو دژوند دسوابقو لمنه پراخوي او په دې هيواد کې له تيارو پرده پورته کوي، يوشمېر داستانونه،کيسې اواسطورې هم لرو چې له زرګونو کلونو راهيسې سينه پرسينه خوندي شوی دی او دهرې ورځې په تيريدلودپخوانيو پرژوند او دهغو په تاريخي پيښنو رڼا اچوي.

له دې سره سره ګورو چې دنړۍ يوشمېر هيوادونه اويو شمېر بشري ټولنې ددوه ډوله تاريخ لرونکي دي : يوواقعي تاريخ چې اسناد ثبت کړای شوي وي اريائي باختري ټولنه چې په ايران او هند کې اوسيږي چې د ( هند اوايراني) په صفت هم پيژندل شوې ده، ددې دوه ډوله تاريخ لرونکې ده، په ډيرو مواردوکې يې اسطوره يې تاريخ ډير قوت لري او دهغه ډيره برخه دارزمي ادبيات اوحماسې تشکيلوي.

شاهنامي، داستاني کيسې او اسطورې چې په افغانستان هند او ايران کې له ډيره وخته را په دې خوامشهورې او مروجې دي دااسطوره يي تاريخ دبدايتوب دليل دی چې دحماسياتو دمنبع او زړوکارنامو په توګه يې وروستی دور تذريق کړې دی.

په افغانستان کې دشاهنامي دليکنې په لړ کې يوه هم ددقيقي بلخي شاهنامه ده چې زربيتونه يې موږ ته رارسيدلي او داکار دشاعر دوژنې په وجه ناتمام پاتې شوی، ددې شاهنامې اصلي او پخوانی منبع تر ډيره وخته ناخرګنده او مجهوله وه، چې په تدريج سره له يو لړ پرله پسې مشترکو هڅو نه وروسته دباختر له ژب پيژندونکيو څخه کشف شوي.

دپهلوي ساساني ادبي آثاراو په جمله کې د (اياتکارززيران) يا (قکارززيران) په نامه کتاب موجوددی چې په پهلوي ساسانی ژبه د زيږدې پرشپږمه پيړۍ ليکل شوی او تر دې وروستيو وختو پورې هغه ديوې منثورې رسالې په حيث کاريده.

يوشمير باختري ژبپيژندونکيو لکه (پليياردو) ايطالوي او (ګايګر) الماني له ډيرو کلونو دنومورې اثر په نثر شکمن وو، او حتی دځينو کلماتو او آهنګ له مخې يې دا اثر منثور باله تردې پورې چې پروفيسربن ونيست مشهور فرانسوي ژب پيژندونکی په خپل اثر کې په اثبات ورسوله چې (اياتکار) منظوم اثر دی نه منثور.

اصلاً له شپږمې مسيحي پيړۍ نه دمخه او همداشان له ساساني عصر نه دمخه او حتی دپهلوي ساساني ژبې له پيدا ينبت نه دمخه په (پرشوي) ياپهلوي پارتي او يا هم پهلوي خراساني ژبه کې تر دويمې مسيحي پيړۍ دمخه يې موجود و او ديو ډير پخوانی زيب اوزينت ورکولو وروسته دساسانيانو په عصر کې يې خپلې شعري او منظومې بڼې او ماهيت ته په کلي توګه تغيير ورکړی دی.

(اياتکارززيران) يا (ياتکارززيران) چې په فارسي دري کې ورته (يادګار زرير) ويلی شو يوه حماسي رساله او يوه جنګ نامه ده چې کشتاسپه دبلخ دپاچا او دهغه دورور (زرير) او دهغه دوراره (پسته واري) او بسته واري دزوي (سپندات) يا اسفنديار يا ارجاسپ خيوني توراني په هکله يې دررزمي عملياتو اوجنګونو دشرح په بڼه سندريز کړی اوليکلی دی.

ټول پوهيږو چې دبلخ دپاچا کشتاسپه او دهغه دکورنۍ جنګونه له تورانيانو او په ځانګړې توګه (ارجاسپه) سره ايران دپخوانۍ حماسې يوه مهمه موضوع وه او انعکاس يې په متوالي دورو کې په تاريخ فرهنګ او ادب کې مشهور دی. او په حقيقت کې يوه مجادله ده دهغو اريايانو ترمنځ چې څه موده يې په بکتريان کې استوګنه دلورده اودهغو اريايانو ترمنځ چې دآمو سيند شمال لورته کډوال وو.

يوشمير خلکو دې جګړو ته مذهبي بڼه ورکړې او وايي هغه مهال " زرتشت سپنتمان" په بلخ کې يګانه پرستي اعلان کړه نوپه ملاتړ يې کشتاسپه دنوي ديانت

په خپرولو کې ډيرې هڅې وکړې او په پای کې دهغه اودارجاسپ ترمنځ جګړې ونښتې، کله چې داجګړې د (آريا) او (توريا) سپين پوستو او تور پوستو ترمنځ ونښتې دا په حقيقت کې ددوه مدني او غير مدني ټولنو ترمنځ وې چې دواړه ريايان او يوه ډله دآمو سيند په يوه او بله ډله په بله غاړه وه.

ددې جنګي داستانونو يو تن پهلوان (زرير) دبلخ دباداشاه ګشتاسپه ورور وُ، چې په همدې مناسبت داجنګي کارنامې د(يادګار زرير) يا (ياتکار زريران) په نامه ننل شوي، اودبلخيانو او بلخي پهلوانان حماسي خاطرې د راتلونکيو غوړونو ته رسوي " مسترونست" يوتن ختيځ پيژندونکی، (باتکار زرير) د (ګشتاسپه شهنامه) يا (پهلوي شهنامه) بولي اودبلخي پهلوان دنامه په مناسبت چې هغه پکې عمده ونډه لري هغه ته (زرير نامه) هم وايي.

ددقيقي ګشتاسپ نامه چې يو زر بيتونه يې ترموږ رارسيدلي دي له (ياتکارزريران) په حماسي روح درلودلواو يو شمير مطالبو سره چې حتی دپهلوانانو نقش پکې توپير نلري بلکه دواړه يوشيز دی او داوپستايي ادب لرغونتيا او تکرار يې په وروستيو دورو کې په دري او پهلوي ادب کې څرګندوي چې عموماً حماسي منظومې او اسطوري پخوانی بڼه لري چې لومړی منبع او حتی راتلونکيو ته الهام پکې ګڼل کيده.

بلخي شاعر دقيقي هر رنګ چې و که په (مستقيم ډول يا په څه بله واسطه) له (يادتکارزيران) څخه يې ګټه اخستې ده، اودهغه په دري ديوزر بيتونو دحماسي خاطرو انعکاس د ((زريرنامه)) حماسي منظوم اثر چې دمخه د ۳ زيږدي پيړی موجود و تر غوږو کيږي او له دې سره ددې دواړو اثارو څه موده وروسته د ۷ سوه ۸ سوه کلويه حدودو کې او دواړه اثرو نه په بيلابيلو ژبو کې سندريز شوی دی، همداراز په يقين سره ويلای شو چې دواړه اثار يوشی وو اويو شمير حماسي خاطرې په ځانګړې بڼه چې ددې خاورې دنيکونو دکارنامو دخوندي کولو لپاره له يو نه بل ته ليږديدلي زمونږ غوږونو ته رسوي.

۳۱_ ۱۲ _ ۱۳۳۷

# نیسا

یوله ودانو ښارونو څخه اویاهم یو سترکلی چې په لرغوني تاریخ کې مخصوصاً دسکندر مقدوني دیرغلونو پر مهال شهرت لري هغه (نیسا) ده چې (دیونیزوس) هم یاد کړی دی. په ختیځ کې د سکندر مقدوني له هغو یرغلونو څخه دمخه چې دافغانستان پر خاوره یې کړې، دې ښار هغه مهال هم شبهرت درلود، او ډیر شهرت یې دهغه ځای دانګورو او شرابو په وجه و او حتی په داستانونو او اسطوروکې ویل کیده چې " دیونیزوس" دانګورو او شرابو ځانګړې خدای ددې ښار باني و او په دې خاطر د (دیونیزوس) په نامه مشهور شوی و. دیوشمیر نورو تعبیرونو په بنا دشرابو ځانګړی خدای ددې ښار اوسیدونکی، دنیسا دځانګړي خدای په نامه مشهور شو، لکه څنګه چې داتعبیرونه ډیر په یوناني ژبې پورې اړه لري ځکه (دیوس) (خدای) او نیزوس دښار نوم و، او هغه یې دنیسا دښار خدای یاداوه او یا خو عقلاً یونانیانو دالقب ورکړی و.

د (دیونیزوس) یا (نیسا) ښار ختیځ ته دیونانیانو له راتللوڅخه دمخه دیونانیانو په اسطورو کې مشهور و او دیونانیانو دمشهورو خلکو په منځ کې یې داسې شهرت درلود چې دشرابو ځانګړی خدای دهغوی میترلوژي اصلاً ددې ښار اوسیدونکی و.

ددې ښار دموقعیت په اړه ډیرې خبرې شوي دي دهغو تاریخي پېښو په اړه چې ددې ښار دشهرت سبب شوی دی داسې اټکل کیږي چې نوموړی ښار باید دافغانستان په نیمه ختیزه خوا او یایې که په صحیح توګه ووایو دکابل رود دسیمې ختیځ پلو ته او ددې رود خانې او داندوس (سند) درودخانې ترمنځ یې باید لټون وشي.

یوه له تاریخي پېښو څخه چې داښار یې دسکندر دپوځي کارنامو په اړه مشهور کړی داده چې دسکندر مقدوني په دې سیمه دتیریدلو په مهال یې دنیسا دښار له ریس " اکوفیس" سره ملاقات شوی ؤ.

نوموړي ریس له سکندر څخه هیله وکړه چې د "بکوش" دیونانی ځانګړي خدای دشرابو په خاطر ددې ښار دخلکو آزادی ته دې په درته سترګه وکتل شي او دهغوی په چاروکې دې مداخله نه کوي. اوسکندر هم داوړاندیزومانه.

د(نیسا) یا (تیسایا) دښار موقعیت باید دافغانستان په ختیزه برخه کې دکابل ولایت اوننګرهار دولایت ترمنځ ولټول شي. له هغو نښونښانوڅخه چې دې ښار درلودې، یوه داوه چې د (مروس) په نامه یوه غره ته نژدې ؤ، اوبله داچې هلته دعشقه پیچان بوټي ډیر شنه کیدل چې یونانی،عسکرو به لکه دتاج په ډول له خپله سره تاوول اودا په پخوانی یونان کې دځوانمردی او ویاړ نښه ګڼل کیدله.

یوشمیر پوهان د (دیونیزوپویس) یعنې دیونیزوس ښار دشرابو ځانګړي خدای د (هډې) په چاپیریال کې تشخیصوي، او دیوشمیر نورو دتعبیرله مخې د(نیسا) ښار دننګرهار ولایت په منځنی برخه کې دتلاقي په برخه کې چې دکابل رود دعلینګار او علیشنګ له رودونو سره یوځای کیږي، یعنې دلغمان کوزنۍ برخه تاکي اوځینې یې په هغه ځای کې ګڼي چې دکونړ سیند د(پیچ) له رود سره یوځای کیږي چې اوس دچغه سرای په نامه شهرت لري اویوشمیر کنډوالې هم ددرې په دننه کې ترسترګو کیږي.

د (نیسا) ښار یا په لغمان و یا په هډه او یاهم دکونړ په منځنۍ برخه کې خو په هر ځای کې چې ؤ خو دادرې واړه دننګرهار په ولایت کې وو او یو دبل څخه ۶۰ کیلو متره واټن لري او که دلوړ غره (مروس) دنژدې والي په نظر کې ونیول شي باید موقعیت یې په لغمان او یاهم په کونړ کې وپلټل شي.

سربېره پردې پیچك او سبزه پیچان همغه دکونړ دغرونو په شمالي برخو کې چې دنورستان غرونه دي ډیر راشنه کیږي.

هغه څه چې د (نیسا) دښار موجودیت دکونړ په چغه سرای کې تائیدوي دښار درئیس او سکندر ترمنځ ملاقات دی چې دبکوس شرابو دځانګړي خدای دآزادۍ له رنګولو منصرف شوی و.

داله شك نه لرې نه ده چې سکندر په هغه سیمه کې دغرونو داراضي له ویرې دنسیا دښار دریس غوښتنه په ظاهري ډول د"بکوس" په احترام له مداخلې نه منصرف شوی وي.

په هر حال داموضوع حقیقت ته نژدې ده چې سکندر مقدوني دنورستان په غرونو کې دننه شوی نه دی اودیوناني تعبیراتو له مخې دنه داخلیدو علت یې دشرابو دځانګړي خدای احترام ګڼلی دی او که چیرته دې خبرو ته دصحت په بڼه وکتل شي نو په قوي احتمال ویلی شو چې د(نیسا) ښار دکونړ په دره کې و اوهند ته د سکندر دحرکت پر لاره واقع و او دسند له انډوس څخه چندان لرې نه و.

۱۳۳۸_۲_۱۱

# ساکیان، سکستان، سجستان، سیستان

لکه دتخار اوتخارستان دبحث په څېر د(ساك) اوسیستان بحث هم ډیر په زړه پورې تاریخي او جغرافیایي بحث دی دلرغوني افغانستان په تاریخ اوفرهنګ کې ډیر ارزښت لري.

لکه چې دوخت په تیریدلو اودفرهنګ له بنې بدلونې سره دتخار دکلمي مبداء مو په خپلو خاطروکې هیره کړه او دهغوي استوګنځی یعنې تخارستان اوس هم زمونږ په ذهن کې تازه دی عین په همدغه بڼه دساك یا اسکایي کلمې د تاریخچې مبداء مو هیره کړې ده او دهغود استوګن ځای (سیستان) اوس هم زموږ پرژبه شته.

په لرغونو دروکې دافغانستان دتاریخ ارزښت په همدې کې دی چې هغه څه چې نن ګورو او مبداء اولرغونتیایې دپخوانیوپیړیو په تیارو کې هیره شوې موږ ته روښانوي اوننني فرهنګي ریښې له پخوانیو لرې پرتوو ریښو سره مربوطوي.

ساکیان یااسکایان چې دلته ترېنه بحث کوو د (سیتي) ټولنې یوه لویه څانګه ده چې دچین په پخوانیو ماخذونو کې دسیت یا (سیك) یا ( سي وانګ) په نامه یاده شوې ده، دفرانسې یوتن فقید ختیځ پېژندونکی موسیو رونه ګروسه چې داسیا په فرهنګی اوتاریخي لرغونتیا کې یې ډیر معلومات درلودل، وایي.

"ساکیان یاساسیان دکاشغر په سیمه کې دلوړو غرونو دپاي په برخه فرغار خوا ته او دایکزارس (سردریا) درود په ښي خوا څنډو کې داورال د ورووکي سیند تر غاړو پراته وو"

دکاشغر سیمې اوداورال دوړوکي سیند ترمنځ سیمه ډیره پراخه ده چې دافغانستان دشمالي سرحداتو سراسر برخه دمرکزي آسیا دروسیې شوروي جمهوریتونه رانیسي. دساك دځای تعریف ته که دپورته شرح له مخې په غور وګورو څرګندیږي چې دساکیانو دثقل مرکز په ختیځ ترکستان اویاد (سنګیانګ) په سیمه او سردریارود په سیمه کې پروت و.

اسکایان د ۵_۶ ق م دهخامنشیانو په عصر کې مشهور وو او دهخامنشیانو ډبرلیکونو تردې پورې چې دوی ښه پیژندل دهغوی په منځ کې دتقسیم قابل شوي وو اودهغوي دڅانګړي تعریف دنامه یادونه یې کړې وه، یو یې (ساکي هوما وار) چې عبارت له همغو ساکیانو څخه دی چې دلته دهغوی په باره کې ګړیږو اوداوخت یې داوسیدلو ځای دفرغانې په چاپیریال اوکاشغر کې و.

دویم (ساکاتیګراخواد) یادمخروطي خولیو ساکیان چې دهغوی د اوسیدلو سیمه یې داورال دوړوکي سیندشاوخوا ښودلې ده.

دریم (ساکاتارادرایا) یا هغه ساکیان چې له سیند نه دې غاړه دي. چې عبارت له هغو ساکیانو څخه دي چې دخضر دبحیرې په ها پلو څنډو کې اوسیدل.

له دې درې تعریفونو څخه څرګندیږي لکه څنګه چې فرانسوي ختیځ پیژندونکی موسیو رونه ګروسه څرګندونه کړې اسکائی قدمونه له کاشغر نه د اورال تر وړوکي سیندپورې منبسط وو او داساحه د (سیتي) قومونو استوګنځی اومسکن هم وو اوهغوی چې (اسکائي) او (سیتي) سره ورته ګڼلی دی له حقیقت نه لیرې نه دی، منتها (سیتي) عام صفت دی چې ټول بادیه نشین اقوام اوقبایل که هغه دمرکزي اسیا دي او که تخاري اویاکوشاني اواسکایي او نور ټول دهغې جز کیدی شي.

د او داسکائي یا (ساك) دقوم عمومي تعریف چټې وړاندې تر دې چې دافغانستان خاورې ته راداخل شي حتی په ۵_۶ پیړۍ کې ختیځې منابع لکه

دهخامنشیانو ډېر لیکونو هغوی پیژندل او ډیر لږ یې دهغوی دنامه یادونه کړې ده، که لږ نږدې راشو وینو چې دوه تنه یوناني اولاتیني مورخین اپولو دوروس اوتروګوس په باکتریان (باختر) کې دیوناني سلطنت سقوط دلته دنورو قومونو دراتللو په وجه رابښیي چې د (ازي ئي) (یازیاتي) (تخاري) او (ساکارولي) یې یادکړي دي.

که څه هم چې تروګس دتخاري قوم نوم هم یادوي مګر دباختري یونانیانو دسقوط نتیجه د(ازي ئي) او(ساکارولي) قومونو دراتللو په وجه ښیي او له دې لنډ تشخیص نه څرګندیږي چې دیونانیانو دهندوکش په شمال کې لومړی سقوط داسکائي قبایلو راتلل وو.

صحیح اوسمه خبره داده چې څلور ګوني قبایل ټول دق م په لومړۍ پیړۍ کې له آمو سیندڅخه راتیر او (تخاریان) دآمو سیندپه دې بلې غاړې اوسواحلو کې پاتې شول او (ساکارولي) یعنې ساکیان وروسته له دې چې دآمو له سیند نه راتیر او دباختر په پراخو صفحاتو کې تیت شول او دهری رود تر سیمې پورې ورسیدل اوبیا لږ څه دلویدیځ په لورورانديې لاړل چې له ډول ډول مقاومتونو سره مخامخ شول او بیا هغه وخت یې خپل تګ لوري ته بدلون ورکړ او جنوب لور ته متوجه شول او دفراه رود او هیرمند درودونو سیمې ته نږدې شول.

ټول پوهیږو چې (پارتیان) یا (اشکانیان) د ۱۴۰ ق م په شاوخوا کې دمیمنې خواته اولږ دمخه دختیځ په لورراغلي وو.

دختیځ په لور دساکیانو او پارتیانو ترمنځ سختې جګړې وشوې لکه چې داسترابن فرهاتش په قول یعنې فرهاد ارتبان په ۱۲۸ او ۱۳۰ ق م په کلونو کې په نوموړو جګړو کې ووژل شول تر دې پورې چې میتري داتش یعنې دویم مهرداد داسکائي قومونو دمهاجرت لاره دغرب په لور ونیوله اوپه نتیجه کې اسکایانو لاره بدله کړه او جنوب لور ته دهري رود سیمې ته دغربي افغانستان درود خانو سیمو ته په ځانګړې ډول دهیرمند په سیمه اوبیا مخصوصاً په کوزنیو برخو کې ځای په ځای او میشت شول.

یوشمیر پوهان په دې عقیده دي چې په لومړۍ مرتبه کې تر دې قبیلې دمخه داسکائي یوبل قوم دهیرمندسیمې ته راغلی دی او هلته یې استوګنه اختیار کړې وه، داخبره چې حقیقت لري یا نه خو ددې قوم دراتللو څرنګوالی دتاریخ په تیارو کې پروت دی خواکثره پوهان په دې نظریه عقیده لري په هر حال داسکایي قومونو هیرمند په راتللو کې ارنګ نشته لومړی (امور جیزیان) او بیا(ساکاروبي) او نور

ډیر اسکائي قبایل دې سیمې ته راغلي دي او دسیستان په تاریخ کې چې هر ځومره پلټنه وکړو ګورو چې داریایانو له پخوانیو مهاجرتونو وروسته اسکایي قومونه هلته راغلي اوخپاره شوي دي او هغه سیمه د (سکستان) یا (ساکستان) اویاد (سکانوچ) دټاټوبي په نامه مشهوره شوې ده.

عربي مورخینو اومخصوصاً جغرافیه لیکونکیو سکستان له کلمې نه سجستان جوړ کړی اوددې کلمې دابڼه دټولو عربي جغرافیه لیکونکیو په لیکنه کې څرګندیږي، ترڅو چې زموږ خپلو مورخینو اوجغرافیه لیکونکیو ته وار راغې او ګورو چې دسیستان کلمې اوسیستاني صفت په شعر، ادب، تاریخ ، فرهنګ او جغرافیه کې لاره موندلی هر ځای لیکل شوی او اوریدل کیږي اودسیستان تاریخ چې لیکوال یې ناڅرګند دي ددې خبرې ډیر غوره شاهد دی او داکتاب ډیر ښکلی اوبهترین تاریخي کتاب دی چې ددې ستړې او مشهورې سیمې تاریخي بهیر په جزئیاتو سره تشریح کوي.

۹_ ږ_ ۱۳۳۷

# تخار _ تخاري _ تخارستان

دجغرافيې اوتاريخ له هغو نښـنو نښانو څخه چې دقوم، ژبې او اوسېدنځي يعنې دپخوانـي افغانسـتان اومنځنـی پېـړۍ داوسـيدونکيو داوسـيدلو ځای ژبې،تمدن و فرهنګ له په اړه معلومات راکوي يوهم تخار، تخاري اوتخارستان دی چې په ثبت او ضبط کې يې د(ط) توری هم استعمال شوی دی او داکلمات په عين بڼه (طخار) (طخاري) او (طخارستان) هم ليکلی شو.

د(تخار) دکلمې،(تخاري) صفت او د (تخارستان) داسم مکان دپيداکيدلو مبداء دقيقه مطالعه او تعريف غواړي، دادرې کلمې دي چې په اسلامي منځنيو پيړيو کې يې شهرت لاره، خوبايد ووايو چې يو اسم مکان شهرت يې لږ څه ډير ؤ او په پخوانيو دوروکې تر اسلام دمخه داسم علم په حيث يې شهرت لاره.

اصلاً (تخار) دخلکو ديوې ډلې نوم دی چې په عموم ډول تر ميلاد دمخه پيړيو کې په مرکزي اسيا کې اوسيدل چې دهغوی په مهاجرت ، خوريدلو او داستقرارېې دافغانستان په يوه تاکلې برخه کې چې هغې حصې يې د(تخارستان) يعنې دتخاريانو د استوګنځي) په نامه شهرت پيداکړی دی.

اروپائي مدققينودتخار دخلکو دتخاري ژبې اوفرهنګ په اړه ډيرې څيړنې کړي دي او تردې پورې چې له نيمې پيړۍ راهيسې يې لا هڅې قطع شوي نه دي خو تر

اوسه هم په مشخص ډول مخصوصاً دتخاري ژبې په رابطه کومې قطعي نتیجې ته نه دي رسیدلي او تر اوسه پورې یې په فکر کې یو شمیر شکونه، اختلافات اونظریات شته.

هغه څوك چې دلرغوني افغانستان تاریخ معلومات او مطالعه لري، هغوی په عمومي خطوطو کې دومره پوهیږو چې یوشمیر قبایل د مرکزي اسیا له شمال ختیزې زاویې څخه (دایګزارت له حوزو اوسردریا نه) افغانستان ته راننوتلي دي، چې یوه ټولنه یې کوشاني قومونه دي چې هغوي ته سیستي یا سیت هم وایي، دسیت او سیستي کلمه په ډیرو ځایونو کې د (تخار) او (تخاري) دکلمو مترادفه هم راغلې ده، او یو شمیر پوهان داسې هم شته چې سیتي او تخاري قومونه یوشی بولي او حسابوي. چې کوشانیان هم تخار او تخاري وګڼو.

پاتې دې نه وي دمخه تر دې چې دتخار کلمه دمعنا او تعبیر له مخې وسعت پیدا کړي وړوکې کلمه وه چې دمرکزي اسیا له قومونو څخه یوه قوم ته اطلاق کیدله او په دې باره کې یوناني او چینائي منابع ډیره مرسته کوي. یوناني بطلیموس دیوناني مصري جغرافیه لیکنې یواځینی شخص دی چې د (تګوروا) په نامه دیوقوم یادونه کوي او دهغوی ښار (توګارا) په نامه دوریښمو په لویه مشهوره لاره واقع یادوي.

چیني منابع په دویمه م ز پیړۍ کې (توګارا) دیوقوم د(کانسو) په علاقه کې یادونه کوي ددې نامه یادونه چې پورته یې ذکروشو له تبتي ماخذ سره یې ژبه یو ده او دهغو اسنادو له مخې چې په ختن کې موندل شوی او په ۸ زیږدې پیړۍ پورې اړوند دي نوموړي ښارپه (کانسو) کې تصدیقوي.

ددې یادونو له مخې څرګندیږي چې (تخار) دسیسې خلکو یوه قبیله یا ټولنه و او ددوی په څیر دمرکزي اسیا دکانسو له علاقې نه دځای بدلونې له پاره پرختیز خوا هجرت کړی او دامو سیند تر سیمې پورې رسیدلی او ددې سیند تر تیریدلو وروسته دهغې رود خانې کیڼ لور ته سیمې دپامیر ترلمنو پورې یې دتخارستان په نامه شهرت حاصل کړی دی.

بطلیموس ذماریوس دیادښتونو له مخې په څوبیلابیلو ځایونو کې د(کانسو) او(باختر) دنوم یادونه کړې ده او داهغه نقطې دي چې یاخو هلته (یوچیان) مسکن وو او یا خو له دې ځایه تیر شوي دي اګر چې دانومونه او دا یادونې په خپلو کې یوڅه اختلاف لري مګر دتخاریانو دحرکت پر تسلسل رڼا اچوي.

بطليموس په شمال کې د (کانسو) له علاقې نه تر (تاګوروا) پورې دایماروس نه (تاګوري وا) د (اسبك کول) وړوکې سیندترنژدې سیمو او تاګوري وا پورې اودسغدیان په سیمه کې له تاخورو او په باختر کې د (تخاروا) دسیمې یادونه کوي.

لکه څنګه چې یوچیانوعینا له (کانسو) نه تر (باختر) پورې همدغه واټنونه وهلي دي دکومو چې پورته یادونه وشوه نو یوشمیر پوهان دچیني منابعو (یوچي یان) او دیوناني منابعو یونانیان یوبولي. لکه چې د چیني منابع په ماخذ کې په دې اړه څه توپیر نشته، بلکې هندی منابع د (یوچي) دکلمې په عوض یې په هر ځای کې د (تخاري) کلمه استعمال کړې ده او په دې ترتیب همغې نتیجې ته رسیږو چې ددې مقالمې په پیل کې یې یادونه وشوه یعنې کوشاني اوتخاري قبیلې دواړه د (یوچي) او (سیتي) له ټولنې څخه دي یواځې همدومره خبره ده چې دقبائلو په څیر ځانته ځانته یې ژوند کاوه او نظر یو چي ته سیتي دمهاجرت لاره خپله کړې او زمونږ دهیواد شمال ختیزو سیمو یعنې دهندوکش شمال ته رارسیدلی دی.

داموضوع افغانستان ته له مرکزي اسیا څخه دقومونو دمهاجرت په تاریخ کې روښانه ده چې تخاري قبایل د (اري یي)، ( ازیائي)، (ساکارولي) (تخاروا) په نومونو د(یوچي) کوشاني قبایلو دمخه په دویمه ق م پیړۍ کې افغانستان ته راداخل شوي دي. یو "تن اپولو دوروس" ددې قومونو یادونه د (ازئي)، (ازیاني)، (تخاري)، (ساکارولي) په نومونو کړې ده، پوهان ددې دواړو نومونو دتوپیر ترمنځ ددوه نورو نومونو فقط یوه نظریه لري اوهغه داده چې تخاري قومونو له (اسکائي) قومونه څخه بیلوي او داعمل هم د افغانستان په تاریخ کې یوه په زړه پورې خبره ده ځکه چې ټولو ته څرګنده ده موږ دخپل هیواد په لرغوني تاریخ کې (اسکائي) او (تخاري) درلودل چې ددواړو خاطرې زموږ دهیواد په دوو خواوو کې پاتې دي ( سکارولي یان) چې یودسکائي قومونو څخه و وروسته دآمو سیند تر تیریدو دباختر په برخوکې لویدیځ لور ته دهریرود ترسیمې پورې تللی او هلته دجنوب پر لور یې هڅه کړې اودهیرمند په سیمه کې ځای پر ځای شوي دي. لکه څنګه چې یې هغه سیمه ددوی په نامه (ساکستان) (سجستان) او (سیستان) مشهوره شوه، تر اوسه په همدې وجه نومول کیږي او لکه څنګه چې مو وویل تخاریان دآمو سیندپه ښکتنیو برخوکې تیت شول اوهغه علاقه ددوی په نامه (تخارستان) یاده شوه.

تخارستان دجغرافیایي اوتاریخي مفهوم له مخې داسې یوه سیمه وه چې اوسنۍ دوه ولایته مزارشریف او قطغن اوهمدارنګه یو ښاغلی بدخشانی حکومت

په کې شامل و، په ځینو ځایونوکې یې دمفهوم لمنه پراخه شوې او ټول باختر یې رانیولی دی، او په ځینو وختونو کې یې مفهوم دهندوکش جنوبي برخو ته هم پراخوالی موندلی چې هغه یې سیاسي مفهوم ګڼلی شو، ځکه چې یو وخت بامیان دتخارستان مرکز ګڼل کیده، اویو شمیر پاچاهانو، لکه دشنستباني غوري باميانې سلسله له بامیان څخه په ټول تخارستان البته شمال لور ته اوهمدارنګه ختیځ لور ته په ټول کابل او حتی ترکشمیر پورې یې سلطنت کاوه.

تخاري صفت د (تخار) او تخارستان دنامه له مفهوم څخه لویې دی او دتخاري او حتی دتخاري اوکوشاني قومونو تمدن، فرهنګ، ژبه، اوادبیات سره تړاو لري اوهغه یو ځانګړي بحث دی چې دلته ورته ځای نلرو.

١١_٦_١٣٣٧

# کاپیسي ـ بګرام

دکابل شمال لور ته یوه لویه پراخه تر اوتازه زراعتي او دباغونو لرونکې ځمکه او سیمه لرو چې له دوو خواوڅخه لویدیځ لور ته دپغمان له غرونواو شمال لور ته دپنجشیر له غرونو راګیره ده. اودوه نورو خواوو ته یې واړه او ګډ وډ غرونه پراته دي چې مهم یې دصافي غرونه (کوه صافي) دي چې دهغو تورو غرونو په مقابل کې دپغمان او پنجشیر دغرونو سپینې واورې دکال په ډیرو موسمو کې دمناظرو مخالفه وضع تولیدوي.

دالویه، پراخه، حاصل خیزه او ډیر نفوس لرونکې سیمه معمولاً په دوه نومونویادوو یو (کوهدامن) او بل (کوهستان) ددې دوه سیمو دفاصلې خط معمولاً څلور مشترکې رودخانې (دغوربند ، سالنګ، شتل او پنجشیر) دي چې ټول په مشترك ډول دپنجشیر درودخانې په نامه ددې دواړو سیمو له منځنۍ برخې څخه تیریږي هغه څه چې شمال او یادرود کیڼې خواته لیدل کیږي کوهستان هغه سیمه چې جنوب پلو ته یا ښی خوا ته لیدل کیږي کوهدامن نومیږي.

دالویه سیمه لکه څنګه چې اوس ښېرازه تر اوتازه او ډیر نفوس لرونکی ده په پخوانیو زمانوکې هم همدغه شان ډیرنفوس لرونکې اوښیرازه وه دمعبدونو د کنډوالو او استوپوموجودیت له تاریخي منابعو سره یوځای دا ثابتوي چې دکوهدامن اوکوهستان سیمې له نفوسه ډکې وې ښارونه یې درلودل لوي کلي یې لرل ،معبدونه اولوي عبادت ځایونه یې درلودل داټول په ښه بڼه او لویه پیمانه هلته موجودوو.

لکه څنګه چې ټول پوهیږو دکوهستان، کوهدامن، په لویه اوپراخه دره کې لویه کنډواله چې د یو ښار په ښه شهادت ورکوي هغه دبګرام کنډوالې دي چې له چاریکا څخه دختیځ پر لور د ۵_۶ کیلو مترو په واټن پریوې وړې جلګې واقع دي چې دشمالي برخې ځوړې اوژورې برخې یې دپنجشیر درود پرخوا پای ته رسیږي او ددې کنډوالو ختیځ لور ته په دوه کیلو مترو کې دپهلوان غر په مخروطي ښه پروت دی چې په لمنو اوڅنډو کې یې ۷_۸ استوپو او دبودایي وخت عبادت ځایونه په ړنګه شوې ښه ځرګندیږي.

نورې ډیرې کنډوالې هم دکوهدامن، کوهستان په ډنډ کې شته لکه سار سکندري یا حصار سکندري چې سرای خواجه ته نژدې دی اویا په اوپیان کې کنډوالې چې دچاریکار شمال لویدیځ لور ته واقع دی، همداشان نورې خرابې په ریزه کوهستان کې چې هغه سیمې ته (کره تار) وایي مګر هیڅ یو دپراخوالي له مخې بګرام ته نه رسیږي. او له بلې خوا دیوناني اوکوشاني دوخت ۶۰ زره سکې موندل چې ۱۴۰ کاله دمخه دچارل مسن انګلیس له خوا په بګرام کې وموندل شوې، همداراز د عاج قیمتي کلیکسونونه او دښیښوګیلاسونه چې په ښکلي ډول انځور کړای شوي وو اومسي مجسمې هم تر لاسه شوي دي اوداسې نور شیزونه چې په دې نقطه کې له دویمې نړیوالې جګړې دمخه دفرانسې دپلاوي ترکیندلو وروسته داثابتوي چې دبګرام کنډوالې پرته له شکه ددې علاقې دمهمو ښارونو نمایندګي کوي. دامهمې خرابې دلرغوني تاریخ په اوږدوکې یواځې د (کاپسي) په نامه یادې شوي دي، سره له دې چې بګرام پخوانی نوم دی، مګر دې سیمې سره یې دانتساب په رابطه تازه او نوی دی.

لومړی تن چې دکاپسي نوم یې زموږ تر غوږونو راورساوه هغه پاڼي ني دسانسګریټ دصرف اونحوې عالم و چې په څلورمه م ز پیړۍ کې دپیښور مربوط داوسني اټك تر خوا اوسیده. داسې دمؤرخینو دپلار یوناني هردوت همنهالی و. ده دکاپیسي دشرابو ډیر تعریف کړی دی، لکه څنګه چې فرانسوي ختیځ پیژندونکي موسیو افردوفوت وایي له پاڼي ني څخه تر هیوان تسنګ چیني پورې یعني له څلورمې م ز پیړۍ څخه تر اوومې زیږدې پیړۍ پورې یو زر کاله وړاندې داسلام له دورې څخه دکاپیسې نوم اخیستل شوی دی او دا نوم دهندوکش دجنوب خواته دیوناني پاچاهانو په سکوکې یادشوی دی اودلرغونو مؤرخینو په ډله کې چې وروستی ځل یې داسیمه یاده کړې ده هغه البیروني دی او په بل عبارت داسلامي دورې لومړی مورخ دی چې دکاپیسا دا لرغوني کلمه موږ ته رایادوي او باقي عربي مؤرخین او جغرافیه لیکونکي له دغه نامه سره اشنائي نلري اودهغوي په لیکنو کې دکاپیسي پر ځای هر څه چې دی خو دکابل بحث شوی دی.

دپورته څرګندونو له مخې چې دکاپیسي نوم په څلورمه م ز پیړۍ د (پاني نې) له خوا یادشوی نو مخکې له دې چې سکندر مقدوني دې سیمې ته راشي په دغه سیمه کې چې نن دبګرام کنډوالې پرتې دي دکاپیسي ښار پنجشیر ته نژدې و، لکه چې په ځینو ماخذونو کې دسیروس هخامنشي په اړه چې هغه په شپږمه م ز پیړۍ کې تیر شوی، او ددې ښار له خلکو سره یې مقاومت کړی یادونې شوې دي.

د ۱۹۴۱ کال په پای او د ۱۹۴۲ کال په اوږدوکې چې فرانسوي پوه موسیوګیرشمن کومې کیندنې ترسره کړې دهغو کیندلو په اثر داسې څرګنده شوه چې دیوناني باختري په واکمنو دورو کې ددویمې ق.م پیړۍ په لومړۍ نیمایي کې دلته ښار جوړ کړای شوی چې هغې ته یوناني کاپیسي ښار ویلی شو.

آیا یونانیانو دخپل ښار بنسټ دکاپیسي دپخواني ښار پر ځای ایښی او که ترځنګ یې ورته جوړ کړی؟ دامسئله لانوره مطالعه غواړي موږ فعلاً په بګرام کې دوه معلومې کنډوالې لرو :یوبرج عبداله چې دپنجشیر ډیرې اوبه یې ترځنګ دي اوبل ۵۰۰ متره پورته شمال لور ته چې کنډوالې یې یوڅه زیاتې دي. یوشمیر په برج عبداله کې یوکلا ګوري چې د سکندر په وخت کې جوړه شوې وه نه پوهیږم چې دهغوی دلایل څه دي؟ دکیندلو په ترڅ کې یوشمیر خامې خښتې چې نقش کړای شوي وې او دیوناني الفبا حروف پرې لیکل شوي داهم هلته موندل شوي، آیا له دې نه نتیجه اخستلای شو چې هلته کلا د سکندر په وخت کې جوړه شوې ؟ هو ددې احتمال شته چې له سکندر نه وروسته یوناني باختري شاهانو هلته کلا آباده کړې وي.

موسیو هاکن پخپله دبګرام کنډوالې دنوي شاهي ښار په صفت یاد دې کړي دي چې بنسټ یې لکه چې پورته یې یادونه وشوه دګیرشمن دکیندلو پراساس چې وایي دا د دویمې م ز پیړۍ په لومړۍ نیمائي کې ایښودل شوی دی.

همدغه ښار کوشانیانو دمسیحي پیړۍ په پیل کې له یونانیانو څخه نیولی دی چې دایې یو مرکز او یوپایتخت و، داښار په ټولو بدلونونو او دورو کې د (کاپیسي) په نامه یادیده او حتی د مسیح په اوومه پیړۍ او داسلام په پیل کې هم په همدغه نوم یادشوی او پوره شهرت یې لاره، او حتی هیڅچا په اوومه مسیحي پیړۍ او داسلام په پیل کې او همدارنګه دهجري په لومړۍ پیړۍ کې دبګرام په نامه ندی یاد کړی او زموږ قاطع ثبوت البیروني دی چې هغه هم داځای د (کاپیسي) په نامه یادوي نه د (بګرام)

البته موږ دبګرام اوبګرامي په نامه دوه سیمې لرو مګر دکلام روح دلته دی چې دپیړیو په اوږدو کې یوزر کاله تر اسلام دمخه همیشه دکاپیسي نوم اوریدل شوی او دداسې کوم ماخذ درك نلرو چې پدې ټاکلي ځای کې یې دبګرام یادونه کړې وي. آیا احتمال شته چې د (بګرام) نوم لویو کوشانیانو او یا وړوکوشانیانو

اویا هم یفتلي شاهانو منځ ته راوړی وي؟ مګر ولې چیني کتونکي هیوان تسنګ په اوومه مسیحي پیړۍ او څلور سوه کاله وروسته لـه البیروني څخه بیا هم د(بګرام) په ځای د(کاپیسي) دنامه یادونه کوي؟ دایو لړ پوښتنې دي چې قانع کوونکي ځوابونه غواړي. هغه څه چې څیړل شوي او سم دي دادي چې :ـ

لویې کنډوالې دکوهدامن، کوهستان په سیمه یعنې بګرام کې موجودې دي او بګرام هغه نوم دی چې دهغې په واسطه نژدې یوه نیمه پیړۍ را دې خوا دې کنډوالو شهرت موندلی دی ، هو په لیکنو او ماخذونو کې چې له یوې نیمې پیړۍ را په دې خوا لیکل شوي اومخصوصاً له هغه وخته چې "چارلي مسن" په دې سیمو کې تګ راتګ وکړ او یو شمیر سکې یې راټولې کړې نو وروسته له هغې دبګرام نوم په کتاب کې داخل کړای شو.

البته په دې کې شك نشته چې دنوم وضع دعوامو له خوادسوابقو سره امتداد لري او په دې باور دی چې دبګرام نوم دسیمې دعوامو په خاطرو کې پخوانی دی او داهم لـه شك نـه لیرې نـه ده چې د (کاپیسي) نوم ورو ورو دخلکو لـه خاطرو او دماغو څخه وتلی او په ځای یې عام نوم لکه بګرام راغلی وي.

دانومونه کږ او اندازه شوي او ترډیره په خاطرو اوحافظو کې راغلي او همهلته خوندي شوي او لړ لړه په دغو دوو پیړیو کې څرګند شوی دی.

۳_۴_ ۱۳۴۱

# دکاپیسا ښار

دکابل په شمال کې یوه حاصل خیزه ،ښیرازه او له خلکو ډکه سیمه لرو چې نن ورځ د (کوهدامن اوکوهستان ډنډ) په نامه یادیږي. په پخوانیو زمانوکې (تر اسلام دمخه) سیمه عموماً د (کاپیسا) په نامه یادیدله او ځانته یې لویه او مشخصه ساحه درلوده چې اوږودوالی یې ۱۰۰ او سور یې ۵۰۰ کیلو مترو ته رسیده او ددې لویې ساحې شمال لور ته واورین سپین غرونه اوپه ځینو ځایونو کې تورغرونه و ددې لویې له نفوسه ډکې مدنیت پالونکې ساحې په منځ کې مود (کاپیسي) په نامه یوښار درلود چې داپه حقیقت کې دکاپیسا مرکز وو. چاچې نننی شمال لیدلی وي اوداده مشخصې منطقې (کوهدامن او کوهستان) یې لیدلی اوپکې گرځیدلی وي هغوي پوهیږي چې په عمومي توگه کوهدامن له کوهستان څخه دځو سیند گوټو اوبه بیلوي چې دهغو ټولو تریوځای کیدلو وروسته دپنجشیر درود په نامه یادیږي چې دختیځ پر لور بهیږي چې دادکابل دسیند له لویو مرستیالانو څخه دی.

دکاپیسا له شمال لویدیزې برخې څخه څلور سیندگوټي چې تقریباً سیلابي بڼه لري ډیر مست اوځپاند دي ددرو له برنیو برخو راښکته او جلگې ته ورداخلیږي چې دا په ترتیب سره دغوربند ، شتل، سالنگ اوپنجشیر سیندونه دي دا اوبه چې کله له درو څخه راوځي په ترتیب سره لومړی غوربند او شتل دویم سالنگ او پنجشیر سره یوځای کیږي او په همدې ډول جریان مومي ترهغې پورې چې دادوه ځانگې بیا په یوځای کې سره ملگرې کیږي او همدا سیمه عجالتاً دکنډوالو په مخه کې پرته ده چې نن ورځ یې هغې برخې ته ((بگرام)) وایو او په لرغونو زمانوکې یې ((کاپیسي)) باله چې داددې سیمې دیوې آبادي ښیرازې برخې څخه وو.

معمولاًتر کومه چې تاریخي خاطرې مرسته کوي داسې څرگندولی شو چې په ډیرو پخوانیو دورو کې مثلاً دهخامنشیانو په لومړیو دورو کې او د ((سیروس)) په

وخت کې يعنې پر ۵ م ز پيړۍ اوياترهغې هم دمخه مو په دې ځای کې کلا اويومستحکم حصار لاره او دهغې داوسيدونکيو مقاومتي انعکاس لـه سيروس هخامنشي سره دلرغوني تاريخ له پاڼو څخه زموږ تر سترګوکيږي.

له فرانسوي پوه موسيوفوشه څخه نيولې تر هاکن پورې موږ ته دارابښيي چې دابادۍ پخوانۍ نقطه او لومړۍ هسته په بګرام کې برج عبدالله و. چې دکنډوالو پاتې شونې يې لکه ديوې لويې دايرې په څير دپنجشير له اوبوڅخه تقريباً دشل مترو په لوړوالي له سيند سره جوختې واقع شوي دي او وروسته له هغې څخه دشل مترو په لوړوالي بيااله سيند سره جوختې دي او وروسته له هغې څخه دوخت دايجاباتو لـه مخې ۵۰۰ متره پورته دجنوب په لور دبګرام ددښتې په څنډه کې دکاپيسا دښار بنسټ ايښودل شوی دی.

هغه کنډوالې چې نن دبګرام په نامه يادېږي نژدې دوه نيم کيلو متره احاطه لري چې دريو خواوو لويديځ، ختيځ او جنوب لور ته يې دلوی ديوال اثاري نښې نښانې څرګنديږي چې دوخت په تيريدلو اوبادباران له امله يې ديوې غونډۍ بڼه خپله کړې ده.

دې ښار شمال لور ته هم ديوال لاره خو لکه څنګه چې هغې لور ته يې رود واقع دی اوداوبو دډيربښت په وجه اودسيند تنګ لورې بدلولو په خاطر اوياهم دزراعت په وجه يې له منځه وړی اونښې نښانې يې تراوسه پاتې دي.

موسيوهاکن دفرانسې دکيندلو دپلاوي پخوانی غړی فقيدريس همدغه کنډوالې چې دکلاديوالونه يې تر اوسه شاهد او څرګند دي هغه يې د(بګرام شاهي نوی ښار) په نامه يادوي او داښار عبارت له همغه ښار څخه دی چې چينائي ګرځنده هيوان تسنګ په ۶۳۲ کال کې هغه د (کاپيسي) په نامه ياد کړی دی.

دا و دکاپيسي دښار لرغونتيا اوهغه شواهد چې دخاورو پر مخ پاتې دي او هر ليدونکی چې دبګرام له دښتې نه تيريږي هغه ويني، خو لکه څنګه يولرغون پيژندونکی يوازې دکنډوالو په ليدلو اکتفا نه کوي او کيندنې هم ډول ډول دي چې يو ډول يې عبارت دښار او آباديو دمشخصاتو له ټاکلو او دلرغونتابه له عمومي دورو څخه دی، يوتن فرانسوي پوه موسيوګيرشمن د ۱۹۴۱ کال په پای اود ۱۹۴۲ په پيل کې يې دکاپيسې دکنډوالو دکيندلو څرنګوالی عملي کړ چې دلته يې يو څولنډيکې دکارولوپه اړه راوړم:

دموسيوګيرشمن دعملي څيړنې پر اساس داسې معلوميږي چې دکاپيسي ښار ديونان باختري سلطنت پر دوره ددويمې م ز پيړۍ په لومړۍ نيمائي کې جوړ کړای

شوی او دجوړولو سبب یې هم ددې دورې دواکمنو دواکمنۍ لوړوالی او ختیځ ،جنوب لور ته یې دواکمنۍ دساحې پرخوالی وې،ځکه چې (بکتریان) یعنې بلخ چې دسلطنت مرکز وهندوکش په شمال کې وې دواکمنۍ له نورو ډیرو برخو څخه لیرې پروت وې نو په دې وجه چې دیونان باختري واکمنان د آمو له سیند څخه په فتوحاتو بریالي شول نو دې ته اړ وو چې دغرونو جنوب پلو ته یولوی مرکز پیداکړي، نوپدغه لحاظ داسې یوه سیمه چې داجتماعي او سوق الجیشي په لحاظ مناسب وي دکاپیسې له مرکز څخه بل داسې یوځای نه و نو په همدغه اساس دمستوسیندونو ترڅنګ یې ددویمې م ز پیړۍ په لومړۍ نیمائي کې یې دښار بنسټ کیښود او یونوی شاهي ښار یې جوړ کړ. ځکه باید هیر نکړو چې پخوانی ښارونه، دمستحکمو لویو کلاګانو په بڼه وو او دکاپیسې دښار کنډوالې چې دوه نیم کیلو متره واټن لري، څرګندوي چې دادهغه وخت لوي ښار و اوتر خوایې خندق،کلا اوبرجونه وو ، ترکومه ځایه چې دهڅو له نتایجو څخه څرګنده شوې ده دکاپیسې دحصار دیوال په خپلو بنسټیزو برخوکې ډیر سورلري چې له ۲۰ مترو څخه زیاتیږي دښار په څلورو ګوټونو کې ددروازو تر څنګ یې ډیرلوي برجونه وو او نور دیوال یې ځای په ځای وتلې برخې درلودې چې پدې ترتیب ښار ته ددښمن نژدې کیدل دخندقونو له لارې څخه اسان کار نه و.

دکاپیسې ښاریوڅه موده دیوښار په توګه اوبیاوروسته دمرکزاو پلازمینې په حیث یې شهرت پیداکړی دی. وروسته ترهغې چې دهندوکش په شمال کې دیونانیانوځای کوشانیانو ونیو، نو یونانیانو قهراً په جنوبي سیمو کې سره محدود شول تر دې پورې چې په ۵۰ م ز کې کوشانیانو جنوب ته هم لاره وکړه او دیوناني وروستي پاچا هر یالوس چې دکابل پاچاو، کوشاني پاچا ویماکدنیزوس ته یې سیمه تخلیه کړه او لدې تاریخه وروسته دکاپیسې نامه دکوشانیانودپایتخت په توګه شهرت ترلاسه کړ او دنوي کوشاني امپراطور کنیشکا دواکمنۍ پر وخت داوړنۍ پلازمینه (پایتخت) پیژندل کیده.

۱۹_ ۵_ ۱۳۳۷

# دکاپیسې وروستۍ ورځې

(کاپیسي) دکاپیسا مرکز دی چې نن ورځ دبګرام، کوهستان اوکوهدامن په منځ کې پروت دی، داځای نه یواځې دپیرپوپه اوږدوکې دافغانستان یو مشهور ښار وُ، بلکې په بیلابیلو دورو کې له یو نانیانونیولې تر کوشانیانو پورې دافغانستان پلازمینه یاپایتخت پاتې شوی دی. داچې څه وخت بګرام دپایتخت مقام ترلاسه کړی؟ دا داسې یوه پوښتنه ده چې پخواني وختونه په ذهن کې ګرځي او په دې ډول ځواب ورکولای شوکله چې دیونان باختري پاچاهان د (سیتی) قومونو تر فشار لاندې راغلل مجبور شول چې (بکتر) بلخ او وکتریان (باختر) نه کډه وکړي دوی دهندوکش جنوب پلو ته ښکته راغلل اوبرج عبداله سره نژدې یې ( نوی شاهي ښار) جوړ کړ چې ددې دجوړولو نسبت پخپله سکندر ته ورکوي، یعنې اوسنی بګرام پورته یاده شوې کاپیسي چیني ماخذ و لیکلې په دقیقه توګه ویلای شو چې ( هیلو کلس) دیونان باختري وروستی پاچا دی‌چې له بلخ نه کاپیسې ته راغلی دی اوددویمې پیړۍ له پیل نه کاپیسې مرکزي اودپایتخت حیثیت پیداکړی دی.

دیونان باختري پاچاهانو یوه نیمه پیړۍ له کاپیسې نه دافغانستان په ډیرو ځایونو اوهند باندې سلطنت کړی دی. او لکه دیونانیانو په څیر کوشانیان هم په لومړۍ مسیحي پیړۍ کې له باختر نه دهندوکش وجنوب لور ته راغلي‌دي اوپه کاپیسي کې یې دباختریونانیانو ځای نیولی دی اودلوي کنیشکا پر وخت بګرام دیو لوي باعظمته مرکز په حیث وپیژندل شو او همدا ځای دکوشان شاهانو داوړي مرکز وټاکل شو.

وروسته دلویوکوشانیانو څخه وړوکو کوشانیانو یا(کیدارانو) اوبیا وروسته ترهغو ځانګو لکه یفتیانو هم همداځای دمرکز په حیث وټاکه یوتن چینائي ګرځندوی چې په اوومه مسیحي پیړۍ کې یې کاپیسي په خپلو سترګو لیدلې ده

هیوان تسنګ دی هغه وايي چې په ۶۳۲ کال کې له باميانو څخه کوهستان اوکوهدامن ته ورغی او پوره يوه مياشت هلته دښار ترڅنګ پاتې شو، دهغه دیادښتونو له مخې داوخت سلطنتي کورنی (کشاتريه) يادیدله چې لغوي معنايي (جنګيالي نجيا) وه اوعبارت د(کوشان اويفتلي) کورنی څخه وو چې دادکوشان اويفتل له کورنيو څخه يوه مشترکه کورنی وه اوکله چې هيوان تسنګ په ۶۴۴ کال کې له هند څخه بيرته راستنيده داکورنی په کاپيسي کې واکمنه وه او بګرام لا تر دې وخته خپل دپايتخت حيثيت دلاسه نه و ورکړی.

کله چې داسلام ددين مبلغين اولښکرې لويديځ افغانستان کې څرګندې شوې اودسيستان په ځينو برخو لکه (زرنګ) (زالق) (کرکويه) کې مخ په وړاندې راغلې تر دې وخته بګرام خپله دمرکزيت اوپايتخت حيثيت درلود مګر دکابل ښار چې دغرونو په لرلو او دلوېې کلا په موجوديت دسوق الجيشی له مخې تر بګرام نه ډير غوره و، نو په دې وجه دبګرام اهميت يو څه کم دثقل اواداري مرکز خصوصاً دنظامي چارو مرکز کابل ګرځيدلی و، پردغه اساس رتبيل شاهان چې کوشان اويفتلي وو ددې ښار له استحکام څخه په غرونو کې له ديوالو څخه چې ديفتليانو په وخت کې جوړ شوي وو داسې ګټه پورته کړه چې تقريباً دکاپيسي نوم دخلکو هير شو، چې دعربو په مقابل کې ټولې منابع دهمدې ځای څخه دمقاومت کيسې کوي.

لکه څنګه چې دچيني ګرځندوی يادښتونه شهادت ورکوي داوومې پيړۍ ددويمې نيمايي په پيل کې دعربي ځواکونو دموجوديت په وجه کاپيسې ته دتلو راتلو لاره لاښنده نه وه په دې لحاظ داوومې پيړۍ په دويمه نيمايي اود ۸ پيړۍ جريان چيني منابع له کاپيسا څخه اوهمدارنګه عربي منابع له کابل څخه د کيسې په ډول رااخلي.

ددې وجه داده چې چينايانو دکاپيسا ددولت (( کي پن)) په ملاتړ داکلمه ډيره په خپلو دفاترو کې ثبت او تکرارولـه اوعربانو چې د کابل استحکام اومقاومت لاره نولدغه ځايه يې ډيرې خبرې کړي دي حقيقت دادی چې کاپيسي چې دخپل عمر اوتاريخ وروستی شپې ورځې پوره کولې دکابل دسوق الجيشي موقعيت په وړاندې بې ارزښته شو

اورتبیل شاهان چي پخپله دنظامي فوځونوقوماندانان هم وو دکابل په مقابل کې يې دکاپيسي ارزښت له منځه يوړ ، په دې کې شك نشته چې دکاپیسا مرکزیت دکابل په وړاندې په یوناڅاپي توګه له منځه نه دی تللی په دې ډول چې کاپیسي یودیني اومذهبي مرکزیت لاره اوکابل یو نظامي اوسوق.الجیشي ارزښت درلوده اودې دواړو تر یوې مودې خپله موازنه په مساوي توګه ساتلې ده او ډیر ښه مثال ددې ثبوت له پاره دانظریه ده چې پورته یې یادونه وشوه ځکه چې په عین وخت کې چینایي منابع له یوځایه اوعربي ماخذ له بل ښار نه خبرې اوڅرګندونې کوي او داپخپله څرګندوي چې دې دواړو ښارونو شهرت درلوده په دې ترتیب چې کاپیسا ورو ،ورو مخ په زوال و ، اوکابل دعربو بریدونو اوقدرت دترلاسه کولو په وجه مخ په پیاوړتیاو.

پر ۷۵۱ او ۵۶۹ کلونو چې ((ووکونګ)) بل چیني ګرځندوی ګندهارا ته راغي تر دې وخته هم کاپیسي مرکزیت لري اودامسئله دموسیوفوشه په نظر تر ۱۷۶ هجري کال او ۳_ ۷۹۲ میلادي کاله پورې دوام کوي اوداهغه موقع ده چې ابراهیم دجبرئیل زوې مرفضل دیحیی زوې برمکي دخراسان والي د (قوربند) یعنې دغوربند له درې څخه پر کاپیسا حمله وکړه دښار مذهبي ودانۍ یې ورانې کړې له دغه تاریخه وروسته دکاپیسا اوکاپیسي نوم چاوانه خست، پرته له البیروني څخه چې هغه په خپل مال الهندکې یادکړی دی. اوهغه هم دیوې کیسې په ډول چې دپخوانیو وختونو حکایت کوي. لکه څرنګه چې مو یادونه وکړه پردغه وخت دکابل نامه په عربي ماخذونوکې شهرت درلود. اورتبیل شاهان په همدغه ښار کې اوسیدل، خوترکومه ځایه چې مو ولیدل علت یې یواځې دسوق الجیشي والي دی اوبس.

په هر حال قراین په دې دلالت کوي چې د ۸ مې پیړۍ په پای اود ۹ مې مسیحي پیړۍ په پیل کې دافغانستان مرکز بیخي له کاپیسې څخه کابل ته منتقل شوی دی اودکاپیسې ښار څه دپاسه زرکلونو مرکزیت کابل ته پرېښودلی دی. تر هغې وروسته بیا منابعو دکاپیسې نوم هیر کړی دی. اودکابل نوم عمومیت پیداکړیدی.

۷_ ۱۱_ ۱۳۳۸

# (سریکه اویهارا) معبد یا

# (شالوکیا) اویاهم د(شترك) معبد

افغانستان په بودایي عصر کې دپرتمینواوښکلیو معبدونو په لرلو شهرت لاره تر دې پورې چې له یوې خوایې دښکلو معابدو او له بلې خوایې دبودایي علماؤ اوازه ترچین اوهندوستان پورې رسیدلې وه. هر یوپخواني ښار یې، لکه، هډه، بلخ، کابل ، بګرام اوبامیانو په خپل چار چاپیر کې ډیر او مختلف ډوله معبدونه درلودل چې ځیني لویې او مشهور وؤ او یو شمېر یې دشابهار په صفت یادیدل.

په پخواني بګرام کې ، دښار له کلا نه دباندې مو یوشمېرمختلف ډوله معبدو نه درلودل چې ځای اوپاتې شونې یې تر اوسه معلوم او ځرګند دي.

دبګرام دښار ختیځ لور ته په درې کیلو متری کې یو وړوکی غر دی چې دخلکو تر منځ (پهلوان غر) یا (پهلوان کوه) په نامه شهرت لري چې ختیځ، لویدیځ او جنوب خوا ته یې دبګرام دښتې دي او دشمال په لور دپنجشیر سیندګوتې په واسطه راچاپیر دی.ددې غره په لمنو کې ۷ یا ۸ بودایي معبدونه لیدل کیږي او داسې رابښیي چې ددې غره ټولې ساحې دبودایي عصر دسپېځلتیا جنبه درلوده دبودایي دین پلویانو معبد تر معبد استوپه په استوپه له دې غره څخه طواف ترسره کاوه. ددې غره په معبدونوکې یومعبد له ټولو څخه ډیر مشهور وؤ ددې معبد دکنډوالو پایخوږ په یاده شوې سیمه (شترك) کې ځرګنده شوې اودامشرفه نقطه دپنجشیر داوبو دپاسه دریزه کوهستان په مقابل کې واقع ده. دشترك معبد په بودایي عصر کې د (شوالوکیامعبد) او یاد(سریکه ویهارا) په معبد

شهرت لاره او دشهرت وجه یې له دې امله وه چې له یوې خوا دامعبد ډېر لوی وه ډېرشمېرعلماء اوراهبان هلته وو او له بلې خوا دچیني یرغملیانو داستقرار ځای و چې یوشمېرچیني شهزداه ګان دچین په (سنکیانګ) کې دکوشانیانو دلویې پاچا کنیشکا له خوا په فتوحاتو کې نیول شوي وو چیني ګرځند لیدونکی هیوان تسنګ ددې معبد په اړه دارنګه لیکي چې دپایتخت یعنې د (کاپیسې دښار) ۳ یا ۴ لی(چې دوه یا ۳ کیلو متره کیږي) ختیځ لور ته دغره په لمنه کې (مقصد یې دپهلوان غر دی) لوی معبد دی چې ۳۰۰ راهبان پکې اوسیږي چې دپیرۍ او طریقې لاره دخلاصون وړ لاره بولي. دکنیشکا دروایاتو له مخې په لرغونو زمانوکې ټولې سیمې اوګاونډ قومونه حتی دپامیر تر ختیځو سیمو پورې یې قوي کړل او هغه یې یرغمل نیولی وو داوړي په موسم کې یې دلته ځای ورکړی وځکه چې په همدې مقصد جوړ کړای شوی و. په یو بل کتاب کې چې د (هیوان سنګ د ژوند) په نامه شهرت لري همدامعبد یې د (شالوکیا) په نامه یاد کړی دی.

دپورته لیکنې له مخې هغه څه چې چیني کتونکي د (شالوکیا) دمعبد دموقعیت په اړه لوستي او لیکلي هغه ټولې کټ مټ دپهلوان غره په شمالي لمنو کې د (شترك) معبد ځرګندوي.

(شالوکیا) کلمه یوشمېرخیړونکي د (شارکه) په صورت اویوشمېریې د(سریکه) په ډول لولي. د (سریکه) کلمه حقایقو او مطلب ته نژدې ده ځکه چې (سریکه) هغه کلمه ده چې دچین له مورد سره یې تړاو لاره. د (سریکه) (چین) او چیني تغبیر کیدای شي او له (سریکه او یهارا) څخه مقصد (چیني معبد) دی ځکه یې (ویهارا) او (یهار) یې بودایي معبد ته ویل کیدل اوداتعبیریولړتاریخي نظریاتوسره هم سمون خوري ځکه چې یوشمېرنظریات په دې اړه شته چې وایي د (شالوکیا) بودایي معبد دچینائي یرغملیانوپه پیسو اباد کړای شوی و.

وړاندې مو ورته اشاره وکړه چې کوشاني پاچا کنیشکا چیني یرغملیانو ته په دې معبد کې ځای ورکړی و، دهندي او چیني منابعو پر اساس دامسئله په اثبات رسیدلې وه چې کوشاني شاهنشاه کنیشکا دکاشغر په سیمه کې دفتوحاتو پر مهال یوشمېریرغمل په لاس راوړي وو چې له هغوی څخه یو تن چینائي شهزاده هم و، دیوچیني تاریخ له لیکنې

څخه چې د (شاهان) په نامه شهرت لري اوتر ۱۱۳ عیسوي کال پورې یې پیښې لیکلې دي داسې څرګندیږي چې دچیني کاشغر پاچایوله خپلو خپلوانو څخه چې (شن پان) نومیده دګروګان په ډول دیوچې پاچا ته چې عبارت له کنیشکا پاچا څخه و استولی و. له دې چیني شهزاده سره یوشمېرنور کسان هم وو او دا ټول د کنیشکا له خوا داوړي دپایتخت تر څنګ په همدغه ځای کې چې د (شالوکیامعبد) آباد شوی. ورته داوسیدلو امرشوی و اوچینایانو دخپل شهرت له پاره یو په زړه پورې ښکلی معبد آباد کړ چې دخلکو تر منځ یې د (سریکه ویهارا) یعنې چینې معبد په نامه شهرت تر لاسه کړ.

وایي چې چیني شهزاده ګانو دبنسټ اینبودلو پرمهال یو مقدار پیسې او جواهرات د جوړولو یا بیا رغونې په خاطر هم له ځان سره ساتلي وو. خواتفاقاً په ۶۳۲ م کال کې کله چې چیني کتونکي هیوان تسنګ دکاپیسې ښار ته رسیږي او هغه دشهزاده ګانو دساتلو پیسو غوټه یې خلاصه کړه او معبد چې دامهال دمرمت یا بیا جوړونې وړ شوی و بیا ي ې ترمیم کړ پر ۱۹۳۷ کال دشترك معبد چې همغه د (شالوکیا) دمعبد پاتې شونی دی دپروفیسر هاکن تر څارنې لاندې د موسیومونیه له خوا وکیندل شو او په نتیجه کې یوه مستطیل شکله ودانی چې په برخه کې یې یوه استوپه وه، کشف کړای شوه. دغې ودانۍ لمر خاته پلو ته یوه بله احاطه درلوده. او دلته ډیرشمېرنورې وړوکې استوپې هم ابادې شوې وې چې ځینې یې لاتراوسه جوړې وې.

دشترك له معبد نه چې کوم اثار تر لاسه شوي هغه ټول دکابل په موزیم کې ځای پر ځای کړای شوي دي او یوشمیر د تیرې تورېل شوي دحیواني مجسمې په لاس راغلي دي چې ډیرشمېرېي دعیسوي په لومړۍ او دویمې پیړۍ پورې اړه لري او دې سیمې ته چیني ګرځند او کتونکي راتلل ،د ۶۳۲ زېږدي کال له هلته اوسیدلو څخه داسې څرګندیږي چې داوومې پیړۍ تر لومړۍ نیمائ پورې دامعبد له منځه تللی نه و او وروسته له هغې د اسلام په راتلو سره لکه چې په کاپیسا کې نور ډیر معبدونه هم رنګ کړای شوي داهم رنګ کړای شوی دی.

۱۳۳۷/۶/۱۳

# په بکتریان کې ناهیده اود هغې

# (عبادت ځای)

ناهیده چې داسم خاص په توګه دډیروجنکیواومیرمنوپه منځ کې همدارنګه دختیځ فرهنګ او افسانوي اوفارسي ادب له (وینوس) سره مترادفه ده دجنس لطیف دښکلا علامه ګرځیدلې ده دایوه تاریخي کیسه او سابقه لري چې یوه برخه یې عمومي جنبه لري او بله برخه یې په ځانګړې توګه دبکتریان دخاورې او دامو سیند له پاره ده.

په اوېستايي ادب کې دناهیدې دکلمې پخوانۍ بڼه د (اناهیتا) په شکل راغلې اوعموماً دبلې کلمې چې عبارت دی له(اردویسورا) سره ملحق دی. چې دیوشمیر پوهانو په عقیده دآمو دسیند نوم و. په اوېستايي متون کې (اردویسورا اناهیتا) کلمه په سلګونوځله تکرار شوې ده او په څرګنده ښکاري چې دانوم دمخه له زرتشترا څخه نه، بلکې له تاریخ نه دمخه داوبو ځانګړي خدای هم په همدغه نامه مشهور و. په اوېستا کې داوبو دځانګړي خدای دویستورا اناهیتا په بڼه یادونه شوې ده.

(ګایګر) الماني پوه باوري دی چې په دغه ترکیبي نوم کې دوه خاص نومونه وو (آمو) درود نوم اوبل دنومورو اوبو موکل نوم لبدل کیږي، او (اناهیتا) دآمو د سیند داوبو موکل نوم دی.

نوموړی داوېستا له متن نه دیوې پارچې یادونه کوي او دهغې له مخې استنباط کېږي چې د (اردویسورا) یا آمو سیندیو لوی مست اوڅپاند سیند دی چې ددینا له لوړې برخې نه یې سرچینه نیولې ده اوپه سلګونو داوېستا په اصطلاح چې په زرګونو ښاښونه یې له غرونو څخه رابېکته کېدل او ددومره لارې په اندازه چې په څلوېښت ورځو کې تر سره کېدای شوه له خپلې سرچینې څخه لرې کېدل.

باید پاملرنه وکړو چې (آپان یشت) یا داوېستا پنځم پښت دڅانګړي خدای ستاینه او یا دهمدغې لویې رودخانې موکل ته وقف ده چې دبکتریان له شمالي برخې نه تیریده اوتیرېږي.

فرانسوي پوه "ډارمستېټر" پدې باوري دی چې (اردویسوراناهیتا) کولای شو (مطهر عالی قوه) ترجمه کړو او له هغې څخه مقصد طبیعي سرچینه ده له هغه ځایه چې لوړه څوکه یې په ستورو لګېږي او په اوېستاچې دځمکې دمخ ټولې رودخانې ترې سرچینه اخلي، په تازه ماخذ کې (اروديسورا) درودخانې نوم او (اناهیت) دهغې دموکل نوم شویدی.

لنډه داچې دزمانې په تیریدلو سره د (اناهیتا) کلمه له (اردویسورا) څخه جدا شوه او (اناهیتا) دیوې عالي مظهري (ژنې) قوی صفت یادرودخانې دموکل دیوې ښکلې جلۍ دځانګړي قیافې صورت پیداکړ چې په هغه برخه کې هم پخپله اوېستا موږ ته ډېر ښکلي معلومات راکوي او وايي:

"اناهیتا یوه ځوانه اوښکلې نجلۍ ده چې دښکلي اندام لرونکې لوړه ونه لري پاکي او سپیڅلتیا یې په سر او صورت کې څرګنده ده.

ملایې ترلې او زرین حاشیه لرونکی کمیس یې په تن ،لویې مربع شکله طلائي والۍ لري او غاړه کې یې پر سپینه غاړه لیدل کېږي، خپله ملاترې او تر سینو پورې ښکلې اوبرجسته معلومېږي، په یې دطلا تاج پر ګرده بڼه بريښي او سلخالونه لري چې هر یو۸ مخه لري چې ټول یې پر مخ پرك وهي"

لکه څرنګه چې کتل کېږي اوېستا اناهیتا داسې تشریح کوي لکه چې مجسمه یې په هغه وخت کې موجوده وه، داهم دیادونې وړ ده چې داوېستا دشهادت له مخې په باختر کې دکیسو اوافسانو پاچاهان لکه

پیشدادیان کواني او اسپه کورنۍ تر گشتا سپه پورې دوی ټولو له هغې مرسته غوښتې او پخپله زرتشترا هم څوځو ځله تري مرسته غوښتې ده.

هغه څه چې "اناهیتا" په ډیره اندازه دبکتریان خاورې ته مربوطوي هغه ددې په خپل نوم دیومعبد عبادت ځای وجودو.

دبکتریا په ښار کې یو ښکلی اوډیر شان اوشوکت لرونکی معبد د (اناهیتا معبد) یا "انانیتس" په نامه وجودلاره، باید هیر نکړو چې د "اناهیتامعبد" د"بکتر" په خاوره کې ډیره لرغونتیا لري او ډیر په دې عقیده دي چې دامعبد په دې ځای کې ورانده ترهخامنشانو موجود وه. اوددې کورنۍ موسس "سیروس" په باختر کې وروسته له یرغملونو د"اناهیتا" دین (ائین) له ځان سره دفارس خاورې ته یوړاو دخشابادشاه په زمانه کې دناهید پرستش په هغه ځای کې خپل اوج ته رسیدلی و.

١٣٣٨\٢\١٢

# وارا

په پخواني اريايي تاريخ کې په عامه معنا او د (هند ،ارياني) اريايي تولنې داستقرار اومهاجرت په تاريخ کې په خاص مفهوم او همدارنګه دافغانستان له تاريخ نه مخکښې دورو کې په ځانګړې توګه يوه مسئله ډيره مهمه چې دغور او څيړنې وړ ده هغه د(وارادارګ) جوړول دي. (وارا) چې دلته مې (ارګ) ترجمه کړې دی په نورو صورتونو هم ترجمه اوتعبير کيدلای شي. کولای شو داکلمه مانی، کلا ،حصار، قريه کلی، ښار، داوسيدلو ځای او استوګنځی ترجمه کړو.

(وارا) لومړنی ارګ او لومړنی مقر دی چې (ياما) دارياريانو لومړنی پاچا ، دهند او درياني تولنې لومړنی پاچا او دبلخ دپيش داديانو دکورنۍ لومړنی لوی پاچا جوړ کړی او په خپل ژوند يې دهغې په ابادۍ کې هڅې او هلې ځلې ترسره کړي دي.

داريايي داستانونو پراساس (ياما) دبرودت او يخنۍ په مقابل کې چې راتلونکی و، نو ځکه يې د (وارا) په جوړولو لاس پورې کړ، اريايي داستانونه وای وروسته له يوزر کالو سلطنت څخه په هغه وختونو کې چې د (ياما) دسلطنت دوروستيو دوروسره برابر يدله، پاچا يوه سخته يخنې پيش بيني کړه. وايي چې هره اجوره يوائخنی خدای ياما پاچا ته الهام

(زیری) وکړچې دسختې بخنۍ او واورې وریدنې په مقابل کې چې ممکن غرونه به ټول سپین کړي، ځانته داوسیدلو له پاره پناه ځای جوړه کړي.

پاچا د(وارا) داحاطې له پاره په کار لاس پورې کړ داوېستادشرحې له مخې چې په دې باره کې یې ورکوي داسې ترینه استنباط کیږي چې د (وارا) احاطې لویه او پراخه لمنه درلوده ځکه چې هربازو یې دآس ځغاستې په اندازه اوږدوالی درلود . یاماپاچا په داسې یوه لویه احاطه کې ښار جوړ کړ داوبو ځایونه، کورونه او ځانته یې داوسیدلو ځای جوړ کړ.باغونه یې کېښول او چارچاپیره یې لوړه کلا جوړه کړه چې لوړبرجونه او دروازې یې درلودې.

ددې تعریف له مخې په جرئت سره کولای شو حکم وکړو چې دجمشید (وارا) ارګ، حصار اویالوی اومستحکم ښار و ځکه چې ځانته یې حصار لاره، برجونه او دیوالونه اودروازې یې درلودې او په دننه کې یې ابادۍ داوسیدلو ځایونه ، کوټې، ودانۍ ،باغونه دغفیري جم له پاره جوړ کړای شوي و. او حتی دمرغانو اوحیواناتو داوسیدلو له پاره ځایونه ځنګړي جوړشوي وو.

ار بائي داستانونه نوره شرخه هم ورکوي اوداسې یادونه کوي کله چې د (وارا) کار تمام شو (یاما) پاچاښایسته سړي او ښځې چې دلوړو ونو لرونکي وو او په صحت ښه توانا وو له یوشمېر جفتو (جوړه) حیواناتو اوپرندګانو له اصیلو تخمونو اوجنسونو اودښو اصیلو نباتاتو سره ارګ یاښار ته ورداخل کړل د (یاما) پاچا (وارا) یا (دجمشید مرکز) لکه په کومو صفاتو چې اوېستایې وایي دامن اوامان ځای اودنیکوکارو خلکو ځای و.

وایي چې دې سیمې ته ناروغۍ نشوې راتللی امنیت او ارامي ددیوالونو دننه ښکاریدله، دبشر ښکلی اوښایسته نسل همداراز دمرغانو او حیواناتو رنګین اوښکلي ډولونه همداراز ګلان اونباتات هلته راټول کړای شوي وو.

تر دې وړاندې داستانونو نور ګامونه اخستي او وایي په دې ځای کې بدخلقي، جنګ جګړه، فریب او نور شیطاني خباثت نه لیدل کیدل، خلک یې ټول روغ رمټ تر اوتازه وو په هغه ټولنه کې بې ترکیبه غاښ لرونکی، پته سترګو ړوند، په خپه ګوډ او دیوې عضو نه لرونکی بلکل نه لیدل

کیده، مګر ددې برعکس داچاپیریال داستوګنې خوشحالي، اوسعادت چاپیریال و او پاچا له خپل رعیت سره په ډیره خوشحالۍ هلته ژوند کاوه.

ایاداوېستا اصلي مطلب له وارا څخه څه وه؟ ایا (وارا) د ارګ، کلا، یا ښار په حیث خارجي مفهوم لاره! او که یایې مقصد دزمینداري، کښت اوزراعت دژوند د (وارا) په اړه له عمومي فهواو څخه داسې څرګندیږي چې (هند اواریاني) اریائیانو دتیرو دپخوانیو اونویو دورو دتیرولو څخه وروسته بالاخره یې دامو دریا اوسردریا دحوزو ترمنځ دځمکو په کښت او کار بوخت شوي، نوی ژوند یې له نعمت اوبرکت سره موندلی دی.

د (پاراداتا) یا پیش دادیانو دوره دهند او اریاني اریایانو دزمینداري او بزګرۍ دوره ده چې لرغونتیا یې هر څه چې وه خو له یوې مرحلې سره یې دامو دریا په حوزه مخامخ یو، لکه څنګه چې پیش دادیان او له هغې جملې څخه جمشید (یاما) له بلخ سره ارتباط لاره. ایا دنیمه تاریخي او نیمه افسانوي او اسطوره یې تعبیرونو یوڅه برخه د (وارا) شته والی په بخدي یا پخواني بلخ کې دیوې کلا په حیث ګاڼه ؟

۱۳۳۸\۳\۱۰

# د "زراسپه" یا"آزراسپه" ښار

دافغانستان دلرغونو ښارونو داثارو په اړه پلټنه اومطالعه دتاریخ او ادب له نقطه نظره ډیر ارزښت لري، دلته له تاریخ اوادب څخه مقصد دښارونو اومرکزونو ترمنځ ارتباط دی چې په ادبي لحاظ دهیواد پخوانیو ژبو ترمنځ دمطالعاتواودلچسپۍ ور پرانیزي، اودتاریخ له نظره دلرغونو ښارونو دموقعیت تاکل دګذارشاتو په پوهیدلو کې ډیره مرسته کوي ، لکه څنګه چې څوڅو ځل ویل شویدي افغانستان داوږد تاریخ په لړلو مختلف مدنیتونه ترسره کړي دي او بیلابیل دینونه یې یو په بل پسې تیر کړی. ژبو اولهجو یوپر بل تاثیر کړی دی چې داتولې صحنې ډیرې په زړه پورې دي او دمرکزونو دنومونو مطالعه دنمونې په ډول دیوې وړوکې جهاني کلمې په قالب کې له ـــ ادبي، تاریخي، فرهنګي اومذهبي معناوو څخه ډکه دسترګو پر وړاندې انځوریږي.

دهندوکش په شمال کې یودلرغونو ښارونو څخه چې نوم یې لږ اوریدل شوی دی اودهغویه هکله څه لیکل شوي نه دی داهغه ښار دی چې دلته یې د (زراسپه) یا(آزارسپه) ترعنوان لاندې قیدو ،اصلاً د باختر دښارونو په اړه لرغوني منابع لړو دیوناني مصري جغرافیه لیکونی (بطلیموس) او (استرابون) او نوروآثار په لاس لړو.

استرابون په داسې حال کې چې دبکتر (بلخ) دښار نوم اخلي هغه په لاندې ډول هم يادوي: يعنې (زراسپه) ( داراسپه)يا (ادارسپه) "

"آرين" يوتن بل يوناني جغرافيه ليکونکی دباختر دمشهورو ښارونو په قطار کې د(زاراسپه) دښاريادونه هم کوي.او هغه يې د(زاريسپيس) په نامه هم ياد کړی دی د (زار اسپه) يا (زارپسيس) دښار ارزښت دسکندر مقدوني ديرغلونو پر مهال چندان روښانه نه دی، مګر د سکندر د يرغلونو ددوام پر وخت له باختر نه د (سغد ) يا(سغديان) (ماوراء النهر) اودآمو دسيند شمال لور ته په نورو سيمو دبريدونو پر مهال يې ژمی په نومړي ښار کې تيراوه ځکه چې د زراسپه ښار مهم ښار و. اودجنګي پياوړتياوو اولوړو برجونو له نظره په زړه پوري ځای و اوکه داسې نه وای نو د سکندر په باختر کې دجنګ پر مهال له يوناځاپي سپرله ييز ګواښه په هغه ځای کې نه اوسيده. په عمومي ډول داسې راښيي چې (بکترا) يعنې ديونانيانو دعصر له بلخ ښار ياد سکندر معاصر اود(زاراسپه) له ښار يوشخه وو.

دپخوانيو جغرافيه ليکونکيو په جمله کې يوازينی شخص بطليموس دی چې دهغو دورو ترمنځ توپير کوي لکه چې د(بکتريا ) اوزراسپه ښارونه بيل بيل ښارونه وو، خو ددې له پاره چې ډير سره نژدې واقع وو، يوشمير خلك دواړه يوښار بولي.

پاتې دې نه وي چې د(زراسپه) نوم پرته له ښار نه ديو رودپه باره کې هم راغلی دی چې نومړی ښار دهغه رود په غاړه اباد شوی و اوددې ښار اوسيدونکي د (زراسپه يانو) په نامه ياديدل.

دښار دنوم په شاوخوا غور کول زموږ معلوماتو ته نسبتاً پراخوالی ورکوي اوپه دې کې شك نشته چې داښار دمخه ديونانيانو له زمانې اودمقدوني سکندر له يرغلونو شخه موجود و. او په دې کې هم شك نشته چې يونانيانو دسيمې له خلکو دانوم اوريدلی اوپه هغه بڼه چې پورته مو وليدل چې له جملې شخه يې يو هم (زراسپه) دی، قيد کړی وي. په دې دوو کلمو کې په کوم نامه کې شك ليدل کيږي؟ يو(زر) اوبل (اسپه) دويمه

کلمه ډیره روښانه ده چې عبارت له (اس) او(اسپه) څخه دی چې په فارسي اوپښتو ژبو کې یې تر اوسه تغیر نه دی کړی. لومړی کلمه ډیره مطالعه اوترجمه غواړي. ځکه چې تر اوسه یې د(زر) د(طلا) په معنا او(هزار) یې د زر په مانا ترجمه کړی او نوموړی ښار یې د(یوزراسونو) اویاد (طلائي اس) په صفت توجیه کړی دی. اولکه څرنګه چې دباختر اسونوله پخواراهیسې شهرت لاره، دواړه تعبیرونه له حقیقت څخه خالي نه دی.

دهمدې کلمي له پاره یوه بله توجیه هم لرو چې هغه د (اذر) کلمه ده یعنې اور او لکه څنګه چې مو په لاپخوانی زمانه کې دبلخ ترڅنګ اورتون د (ازر اسپ) یا (ازر یاسپه) په نامه درلود نو کیدای شي یونانیانو همدغه نوم اوریدلي وي او اصلا دښار دواقعي نوم معنا د (اتشي اسپ) دمطالعې په باره کې وي چې داتشکدو له جملې څخه دیوې مشهورې اتشکدې داسم خاص په صورت ایښودل شوی وي لکه څنګه چې پوهیږو داسپ کلمه په باختر کې داوېستایي عصر په ځانګړو شاهانو اومشهورو شخصیتونو پورې ډیره اړه درلوده. چې دادبي اوتاریخي حلقو پدې تسلسل کې د (ادراسپه) دښار مبداء په اوېستایي عصر کې ترمیلاده یوزر کاله وړاندې رسولی شو.

# تخاري ژبه د باختر اوتخارستان دخلکو آرنی ژبه

د ۱۹۵۷ کال دمی ۴مه نیټه دافغانستان دلرغون پیژندنې دکیندلوتاریخ یوه ډیره مهمه ورخ شمیرل کیږي. خکه چې په دې ورخ دسره کوتل په کیندن ځای کې دتیږې یوه لویه لوحه کشف شوه چې په لوی ډبر لیک پوښل شوې ده ، دغه چې له یونیم کال مطالعې اوتدقیق وروسته یوتن موسیوماریك بلژیکي چې دفرانسې دکیندلو دپلاوي غړی دی ، په دې وتوانید چې هغه ولولي اویوشمیر کلمې اوجملې یې ترجمه کړي اوداخرګنده شوه چې له کومې ژبې نه چې په دې ډبر لیك کې ګټه اجستل شوی دباختر اوتخارستان اصلي اومحلي ژبه ده، چې بایدهغه دتخاري ژبې په نوم اصلاً موسیو ماریك داژبه په فرانسوي اصطلاح "اتوتخارین" یعنې د (تخاراصلي) ژبه ونومولـه اوددې وجه تسمیه داده چې له دې وړاندې یوشمیر ژب پیژندونکیو داسکایي یوه لهجه چې د "سنګیانګ" خوانان په علاقه کې کشف شوې د(تخاري) په صفت یاده کړېده ( ددې وینا تصحیح ایجابوي چې دتخاری اصلي ژبې دپیداکولو له مخې باید هغه دتخاري داصلي ژبې په توګه یاده کړو او دا کار موسیو(ماریك) په همدې غرض عملي کړی دی چې دپخوانیو ژب پیژندونکیو تیر وتنه اصلاح شي.

تول په دې پوهیږو چې دافغانستان خاوره دهند اواروپائي ژبو دپاتې شونیوله نظره ډیره غنې ده اوددرو په کرلیچونو کې کم ترکمه د (۲۰) بیلابیلو لـهجو شواهد تراوسه خوندي شویدي. دادحیرانتیا ځای دی چې ددې لـهجو یوشمیر دهندي کورنۍ اویوشمیر نور یې اریاني ژبو کورنۍ ته اړوند یږي.

لکه څنګه چې دژبو اړوند له مطالعو څخه جوتیږي چې اریایي قبایل له هندي، ارياني کورنۍ یاله شمالي سیموڅخه اویاهم دهمدې خاورې له لرغونیو هغوڅخه به پيل شوی وي.

تخاري ژبه چې تازه يې له سره کوتل څخه دلوی ډبر لیك شواهد څرګند شوي دي،وروسته له پهلوي ، پارتي، سغدي، خوارزمي او اسکايي لهجې داریاني ژب لهجو شپږمه ژبه ده چې دډبرلیك په مضمون يې څرنګوالی څرګند شوی اودافغانستان په ژبو کې يې دډېرې مطالعې له پاره نوې فصل پرانستی دی.

موسیوماريك عقیده لري چې وروستی تن چې دتخاري ژبې یادونه کوي هغه البیروني دی چې په خپل یوتالیف ددارو ګانودنومونو په باب کې دیوشمير نباتاتو نومونه يې په تخاري ژبه یاد کړي دي.

کله چې چینائي ګرځند کتونکی هیوان تسنګ داوومې پيړۍ په لومړۍ نیمايي کې دافغانستان شمالي برخو ته راداخليږي په تخارستان کې دادب اولیکدود دمعنا اوڅرنګوالي په اړه چې په هغه وخت کې په دې علاقه کې رواج او معمول و معلومات ورکوي او له هغې نه داسې څرګندیږي چې زموږ دبحث وړ تخارۍ ژبې دادبي آثارو په نسبت يې له سغدۍ ژبې نه ډېر پراخوالی درلود. دنوموړي کتونکي نظریات ددې لکيدود له پاره ډېر په زړه پورې دی، څکه وايي چې لیکدود يې ۲۵ توري لري او په افقي توګه له چپ نه ښۍ خواته لیکل کیږي لکه څرنګه چې دتخارۍ ژبې لیکدود دسره کوتل په ډبر لیك کې څرګند شوی یوناني دی، ۲۴ یوناني توري پکې شامل دي او پنځويشتم توری يې د (ش) حرف دی چې د (ش) اواز لکه دکنیشکا په څیر اداکوي.

په دې ترتیب څرګندیږي چې دځاګړو اړتیاو له مخې يې نوی حرف هم په الفباء کې اختراع او ورزیات کړی و.

موسیوماريك دمطالعې پر مهال دتخارۍ ژبې صفت دانتصاب څرنګوالي له پوښتنو سره مخامخ کیږي، چې پخپله يې ځوابونه ورکړي دي، مثلاً:

ایا طبعاً موږ په خاطر کې راځي چې نوموړې ژبه دمتهاجمو یامهاجرو قومونو ژبه نه ده چې دتخارۍ پر نامه دويمه م ز پيړۍ کې دآمو له سیندرا

تیره شوې او دافغانستان دغې څنډې ته راغلې او دهغو دراتلو په تعقیب سره بکتریان په تخارستان شهرت وموند؟

نوموړی مدقق په ځواب کې خپله پوښتنه داسې ردوي چې هیڅ دلیل نشته چې یوډله کوچیانو اوکېږدی والو خلکو خپله ژبه دباختر پر خپلوخلکو چې دلته مېشت او ډېرې مودې اوسیدونکي وو،تحمیل کړې وي.

دهغه بله پوښتنه داده لکه څنګه چې کشف کړای شوې‌ډېر لیک یورسمي ډېر لیك دی اوتقریبا دکوشاني امپراطور کنیشکا حکم اودیوې رسمي اعلامیې بڼه لري ولې ژبه یې کوشانی ژبه نه ده؟ ددې پوښتنې ځواب داسې ردوي چې که چیرته داژبه دشاهي کورنۍ اویادکوشاني پرګنیزه شاهي ژبه وای نو ډېرو پراخو ادبیاتو څخه برخمنه کیده. ځودچیني ګرځندیا لیدونکي پر وینا داډېره پراخه ژبه ده او حتی له سغدي ژبې نه هم پراخ اوبډای ادبیات لري.

نودبلژیکي پوه په عقیده هغه ژبه چې دسره کوتل په ډېر لیك کې ترې کاار اخستل شوی دی دباختر اوتخارستان داصلي اوسیمه ایزو اوسیدونکیو ژبه ده او دلویدیزو اوختیزو ډلوترمنځ دایران ژبو کورنیو داستعمال عامل شمیرل کیږي.

دتخاری باختري ژبې رسم الخط داستعمال له مخې دمنځنۍ ایرانۍ ژبو د رسم الخطونوسره لکه پارتي، سغدي، اوخوارزمي توپیر لري ځکه چې نوموړي رسم الخطونه په مستقیمه توګه له ارامي رسم الخط څخه مشتق شوي چې په ډېره پیمانه دهخامنشیانو ددفتري منشیانو تاثیر په کې څرګند دی، حال داچې باختر اوتخارستان دیوناني عنعنوي لرغونتیا پر اساس یوناني الفبا په خپله لیکنۍ ژبه کې استعمال کړې ده او دارسم الخط دصوتي سیستم په لرلو دتخاری ژبې دصوتونو له پاره بشپړ غوره او مناسب و او په عین حال کې دباختر اوتخارستان ادبي ازادي هم راڅرګند وي.

۱۳۳۷\۱۱۲\۵

# باختري یابلخي ژبه او د سره کوتل

# د ډبر لیك وروستی ژباړه

دبغلان دسره کوتل ډبر لیك ( ۱۹۵۷ م کال دمی ۴ مه ورځ) په افغانستان مرکزي اسیا هند او ایران کې ډېر تاریخي اوفرهنګي (تاریخ اوادب له نظره) ارزښت لري. له ۱۹۵۷ کال څخه تر نن (۱۹۶۷) کال پورې ددې لسو کالو په اوږدو کې چې له کشف نه یې پوره لس کاله تیریږي یوشمیر اروپائي پوهان لکه په فرانسه کې (پروفیسر بن وانیست) په انګلستان کې فقید پروفیسر هیننګ) او پروفیسیر ګرسه ویچ) په المان کې (پروفیسر هومنبخ اوګوبل) او دنړۍ په ډیرو برخو کې یې په تحلیل، تجزیه، قرائت دالفاظو په سموالي اودمتن په راټولولو بوخت دي.

د(اتوتخاري) او(اصلي تخاري) صفت هغه صفت و چې دډبر لیك دکشف په لومړیو کې دموسیو (ماریك) دفرانسې لرغون پیژندنې دپلاوي دغړي له خوا ورکړای شواو (په تیره مقاله) کې مې دهغې یادونه وکړه نو موسیو" راوول کوریل" دفرانسې دلرغون پیژندنې دپلاوي غړی په (ازیاتیك ژورنال) داسیا په تحقیقاتي مجله کې په دې باره کې په ځانګړي توګه دلیکونکي له زاویې خپره کړه مګر یوډیر مهم قدم په ۱۹۶۰ کال کې دفقید استاد " هنینګ" له خوا په لندن کې واخستل شو،او نوموړی په

خپله مشهوره مقاله کې (دبکتریان ډبرلیک) ترعنوان لاندې ددې ډبر لیک ژبه د(باختر) یا (بلخي) ژبې په نامه یاده کړه.

استاد هنینګ په یوه مثلث ډوله کاڼي باندې چې له سره کوتل نه کشف کړی شوی، او ددري کرښولرونکی و، دلومړي ځل لپاره دبغلان دنوم په لوستلو بریالی شو. په دې ترتیب سره چې دډبرلیک په دویمه کرښه کې دانوم په لرغوني بڼه د(بغولانګو) په بڼه ولوست هغه باوري دی چې دا کلمه په سغدي ژبه کې د (بغدنك) ( اوبغدنګ) په صورت راغلې اوټول داریاني له پخوانی کلمې ( بغودانکه) څخه مشتق شوي او معنایي اتشګا اورتون دی او وروسته تر دې چې وروستی حرف یې حذف شوی له (بغولانګو) څخه لومړی (بغلانګ) اووروسته اوسنی نوم (بغلان) منځ ته راغلی دی.

لکه چې فرانسوي لرغون پیژندونکی پلاوی وروسته دسره کوتل له ستر ډبر لیك څخه دکیندلو په نهمه اولسمه مرحله کې (د ۱۹۵۸ کال دنومبر له ۲۰ څخه ددسمبر تر ۲ نیټې اوبیا د۱۹۵۹ کال دنوامبر له ۴ مې څخه دنوامبر تر ۲۶ نیټې پورې ۵۳ نورې دکاڼي خښتې چې دځاه په سنکاری کې ترې کار اخستل شوی و.) نوي اسناد (لاسوندونه) و. چې په لاس راغلل او پروفیسر بن اونیست چې دواړه داریاني ژبې متخصصین وو او یوتن بل استاد کولشر دوفرانس په ۱۹۶۱ م کال کې دبغلان په ډبر لیکونو مطالعه پیل کړه او څرګنده یې کړه چې دغه ۵۳ ډبر لیکونه په حقیقت کې دهغه ډبر لیك دویم نقل دی چې پر ۱۹۵۷ کال پریوکاڼي کښل شوې وه. ددې لیکونو (۲۱ پارچې یونقل او ۳۲ پارچې کاڼي بل نقل دالیکنه بشپړوي) په دې ترتیب دبغلان له سره کوتل نه درې نقله ډبر لیکونه په لاس راغلي دي چې ټول دکابل په موزیم کې موجود دی.

له دې سره سره یې مطالعې دژبو دمتخصصینو له پاره دکلماتو دتفکیك اولوستلو اوترجمې کارنسبتا اسانه کړی دی. همدارنګه یوشمیر الماني پوهانو لکه (هومیخ) او (ګوبل) هم دډبرلیکونو دکلمو په تعبیر اولوستلو اومتن په ترجمه کې نظریې ورکړې چې ټولې دقیقې اوډیرې علمي جنبې لري چې دټولو مقالو شرحه رسالو ته اړتیا لري چې په ډیره پیمانه به دژبو مدققین ورته پاملرنه وکړي اوپه دې ورکوټې مقاله کې یې دتشریح ګنجایش نشته.

لکه څنګه چې مې په پیل کې وویل چې د سره کوتل دلومړي ډبر لیک دکشف دغه لس کاله تېرشول، تر دې وروستیو پوهان دهغې په ژباړه کې بیلابیلې هڅې ترسره کوي، ددې ژباړو یوځه برخې دڅوکلمو په معنا اوتعبیر منحصرې دي، بلاخره ټوټه ټوټه څوکرښې ژباړل شوي او هغه وخت دټوټه کیدو په وجه دمتن عمومي ګټه استنباط شوه.

وروستی شخص چې دمتن په بشپړه ژباړه یې لاس پوري کړ دفقید هنینګ شاګردانو څخه یوتن پروفیسر (ګرشه ویچ) و چې تیر کال مې دایران پیژندنې په کنګره کې ولید او په همدې باره کې مې ورته دلرغون پیژندنې دڅانګې خبرې واورولې چې مقاله یې د(چاه بغلان) ترسرلیک لاندې د(ریشیامیجر) په مجله کې خپره شوه.

په (فروغ فرهنګ) رساله کې چې دانیس په ۱۳۴۶ کالنۍ کې چاپ شوې له انګریزي ژبې نه یې یوه ډیر ازاده ژباړه پکې نشر کړه چې همغه کټ مټ دلته نقلوم:

"کله چې دکنیشکافاتح معبد جوړشو، یوپاچا په خپل نامه ونوماوه. اوبه هلته موجودې وې، مګر وروسته وچوېې اوداوبو دکم والي په وجه خدایان له خپلو ځایونونه پورته شول اومعبد شړ پاتې شو، اوس په دې حالت و چې (نوکرو نزوکو) (فریخ وادیو) چې دهیواد پورو، داسمان زوی ،عادل، شفق دټولو موجوداتو خیر غوښتونکی پاچا له سرپریکړو پلویانو څخه و دڅور په میاشت کې ۳۱ کوشاني عهد کې داخل شو اوامپراطور د اوامرو په اثر په ملګرتیا د(کوزګنک) زوی د (برزومهر) (خیرکمن) ( سیتل ګانزیک) دمعبد چارچاپیر کلاجوړه کړه او څاه یې وکیندله اوهغه یې په ډبرو وپوښله او څاه ته یې څرخ نصب کړ اوداوبو ذخیره یې جوړه کړه او دمعبد محوطه یې تر لرې لرې ځایونوخړوبه کړه (اپومن) (مهرامن) او (پرزومهرپور) ډبر لیک ولیکه"

البته دبغلان دډبر لیک دمتن لوستنې ترجمې اوتفسیر دمناظرې په اړه ورخلاص دی په همدې ترتیب راتلونکې پر راتلونکیو سپارو. سملاسي دبغلان دډبر لیک اصلي ژبې ته چې هغه لومړی موسیو مایک د اصیلي تخاري په نامه لوستی اوبیا فقیداستاد هنینګ د (باختري) یا(بلخي) په نامه ونوموله.یوه داریاني ژبو له کورنۍ ختیزه منځنۍ ژبه ده چې دکوشانیانو په دوره دمسیحي په لومړۍ پیړۍ کې دهندوکش په شمال

بغلان کې اودباختر په ډېرو برخو کې پرې خبرې کېدلې اوپخوانیو (سغدي) او (خوارزمي) ژبو ته يې ډېر ورته والی درلود.

لکه څرنګه چې دډېرو اریاني ژبو پرخلاف (که هغه پخوانۍ دي منځنۍ او که نوي دي) چې په سامي لیکدود لیکل شوی دی یواځې ددې کورنۍ مېنځۍ ژبه چې دیوناني ژبې په لیکدود او حروفو لیکل شوی داپه ډبر لیک کې په سمه توګه تلفظ او خوندي شوې ده یواځې دکار په پیل کې چې کوم اشکال محسوس وو او شاید تر اوسه به هم په بشپړه توګه له منځه تللي نه وي هغه دکلمو بیلتون دی ځکه چې دډبر لیک یوناني توري چې په اسانۍ سره لوستل کیږي، هغه پرله پسې اوځنګ پر ځنګ لیکل شوي دي.

۱۳۴۶-۵-۷

# کابل او دتاریخ په دوروکې

# یې پخواني نومونه

کابل دطبقات الارضي په اصطلاح "ژوره کاسه" ده چې په هغې کې د شاوخوا نقاطو اوبه راټولې شوي دي په بل تعبیر داوبو دټوئیدو ځای دی. دکابل شاوخوا ته په یوې کتنې شمال لور ته دخواجه رواش چمن، غرب لور ته یې دبیني نیزار چمن، جنوب ختیځ لورته یې دقلعه حشمت خان چمن لیدل کیږي چې دطبقات الارض مفکوره اواصطلاح پکې حقیقت لري او یوه برخه اوبه چې د چاپیریال له غرونوڅخه ښکته راتللې او راخي لاره یې نه درلوده اوپه مختلفو "کاسوکې" راټولیدلې اوتراوسه یې دښار شاوخوا نښې نښانې لیدل کیږي.

داخرګنده ده چې په پخوانیو دورو کې رودخاني دتلو راتلو طبیعي لارې وې مهاجر به همدغو رودخانو ته تلل راتلل لوي کلي او ښارونه به دهمدغو سیندګوټو ترخوا ابادیدل دلرغون اریاییانو دیادګار دوید په سندرو کې دکابل درود نوم د"کوه بهار" په بڼه راغلی او په تکرار سره استعمال شوی دی. اوداخرګنده ده چې اریاییانو په افغانستان کې د استوګنې پر مهال او دجلګې " هفت دریا" یعني پنجاب پر لور دهجرت په مهال رود پیژانده.

طبیعي ده چې دا وخت ښار او دښار اوسید نه نه وه او ددې سیندګټوتې پر غاړه لاښار اباد شوی نه و او اریایي مهاجر دخیمو اوسیدونکي وو او دشنو رودخانو پر غاړو دمالداری په چارو بوخت وو. دکوبهار دپخوانی کلمې چې دکابل درودخانې نوم دی "کو" د "اوبو" په معنا چې د"و" بدلیدل په "الف" تر اوسه د "کابل" په کلمه کې له منځه تللی

نه دی او دهغوی چې په شاعرانه صورت کې دکابل په کلمه کې "اوبه د "گل" په منځ کې لیدل هغوی دفیلوژي حقایقو ته هم نژدې دی.

پخوانی کابل چې هر ځای و خو څرگندہ دادہ چې پرغرونو ددیوالونو جوړولو وروسته دابادی دثقل مرکز ددوو غرونو "اسمایي" او(شیر دروازي) په منځ کې یې پراخوالی وموند او دا وروسته له ۵ مسیحي پیړۍ نه پیدا شوی دی.

هماغه ډول چې "وید" دکابل درودخانې یادونه کړې ده اوبستا هم د۱۴ قطعوځمکو په یادونه کې۷ قطعې ځمکه د (ویکده ته) په نامه یادوي اولرغون پوهان ټول هغه کابل بولي اویوتن حماسي پهلوان ((کرسپه)) یې ډیرمشهورو چې بیاوروسته دکابل او کاپیسا دپهلوانانو یادونې شوي دي پیل یې له همدغه ځایه شوی دی.

ددریمې م ز پیړۍ په نیمایي کې یوتن مورخ چې اراتوستنس نومیده له دې سیمې (اورتسپانا) یا(اورتسپنه) په نامه یادونه کوي چې پوهان دبطلیموس مصري جغرافیه لیکونکي په مرسته دویمه مسیحي پیړۍ کې داسیمه کابل تعبیر وي، البته یوشمیر ددې ښار موقعیت ښکته پورته کړی دی اودنوروځایونو وړاندیزیې هم کړی دی لکه "حصارسکندري" دسرای خواجه ترځنگ اوداسې نور مگر دکابل دښار موقعیت د "اورتسپانا" دموقعیت ارزښت له دغې څخه څرگندیږي چې دپخوانیو کاروانونو لار چې دهند ،باختر او اراکوزي "قندهار" په لور تیتې شوي، موجودې وې اوفاصلې یې معمولا دموقعیت له مخې شمیري او همدې کتنې له مخې "استرابون" هغه ځای (څلور لارې) بولي دهمدې تعبیر له مخې څرگندیږي چې د "اورتسپانا" ښار چې اوس یې (فعلي کابل) بولو دکاروانونو پر لاره یې یو مهم موقعیت لاره چې دالارې له همدې ښار نه دهند ، بلخ، باخترو ارغنداو سیمې اودښارونو پر لور یې تیتې شوې وې او دکابل موقعیت داخصوصیت اوس هم لري او ددې درې تر خواوولارې اوس هم له همدې ځایه تیریږي. البته داصفت په سرای خواجه اوبگرام کې حصار سکندرې هم لري. مگر مدققین ډیر په دې خوامتمایل دي چې کابل نومورې (اورتسپانا) (ارانوستنس) وکړلو جغرافیه پوهانو جوړښت هم دانظریه تائیدوي.

بطلیموس یوناني مصري جغرافیه لیکونکی چې په دویمه مسیحي پیړۍ کې یې ژوند کاوه دښارونو او قریو په ډله کې (دپاروپامیزاد) ولایت د (کارورا) دښار په نامه یادوي چې پوهانو یې دتلفظ صورت د (کابورا) دښار په نامه هم کړی دی او دکابورا نوري برخې یې دښار داوسیدونکیو نوم (کارورا) تلقي کړی دی دبطلیموس د (اوراسپانا) او (کارورا) دواړه یوښار بولي او (کارورا) یې د (بازلیئوس) په صفت یعنې (شاهي ښار) هم یاد کړی دی. دبطلیموس نظریات د (کارورا) او (اواتسپانا) دښار په اړه دکابل تاریخچې په اړه ډیر ارزښت لري او په ځانګړې توګه داچې داښار د (شاهي)ښار په نامه یادوي. اوتر دې اندازې پورې چې دا ښار اداري مرکزیت څرګندوي.

لکه څنګه چې دنوموړي جغرافیه لیکونکي دقریوپه نومونو کې دکابل دچارچاپیره ځینونقطو لکه (لوکرنا ـ لوګر) ( ارګوده ـ ارغنده) (بګرده ـ وردګ) هم یادوي اوادارې نقطې دکابل په چاپیریال کې لوګر، ارغنده اووردګ یادوي دهغه لیکنې د کارورا، کابورا چې کابل دی داهمیت اوموقعیت په اړه دډیر ارزښت وړ دي اوداڅرګندوي چې نوموړی نه یوازې دمرکزي ښار له موقعیت نه، بلکې دچارچاپیره مهمونقاطو څخه هم بې خبره نه وه، دکابل دنوم وروستی تلفظ (کاول ) او کابل) دی لومړی یې د (پراچې) او (اور مړي) لهجو دتاثیر په وجه اود یفتالیانو دتمرکز په اثر منځ ته راغلي او دویم دپهلوي ادبیاتو د (بنداهش) په متن کې یې یادونه شوې.

(کاول) ، (زاول) ، (کاولستان) او (زاولستان) به مو تل اوریدلي وي داتلفظونه دمسیحي له پنځمې پیړۍ نه له یفتلیانو سره معمول شوي و. لکه څرنګه چې (زاول) (زابل) شو همدارنګه (کاول) (کابل) شو او لکه څنګه چې وروسته له (کاول) څخه د کابل ضبط هم لرو کولای شو ووایو چې د (پ) اوښتل په (ب) چې دواړه قریب المخرج دي دکابل دنوم ضبط وتلفظ منځ ته راغلی چې تقریبا له یوزر کالو راپه دیخوا معمول اومتعارف دی.

۱۶-۳-۱۳۳۷

# بودايي کابل

ديوناني اوپهلوي کلاسيك متون کې دکابل دنوم درېښې او ددې ښار دبيلابيلونومونو دضبط په اړه چې راډيو ته مې يوه لنډه مقاله وليکله (تيره مقاله) دلته غواړم دبودايي کابل موقعيت تصريح کړم.

په دې کې شك نشته چې کابل ديوې (وادۍ) په حيث، ديوې کلا په حېث ، ديوې درې په حيث،ديو کلي په حيث اوبلاخره ديوښار اودافغانستان دپايتخت په حيث اوږد تاريخ لري. او که چيرته يې دپخوانيو اثارو پر اساس چې يوه مجموعه يې ۲۰ کاله دمخه له چمن حضوري اودمرنجان غونډۍ له کوزنۍ برخې نه کشف شوې او اوس هم دکابل په موزيم کې خوندي ده وشميرل شي نوکولای شو چې دکابل تاريخ تر ميلاد پنځه پيړۍ دمخه دکابل تاريخچه شروع کړو. ددې ۲۵ پيړيو په اوږدو کې کابل دتاريخ بيلا بيلې دورې تيرې کړې دي چې له هغې جملې څخه يې يوه هم دبودايي دوره ده چې هغې ته دلويو کوشانيانو دوره هم ويلای شو.

په دې کې شك نشته چې دلرغون پيژندا او دڅيړنو په وجه بودايي معابدو اواستوپو دکنډوالو اثار دغرونو په څنډوکې او دښار په ماحول کې دغونډيو دپاسه په مختلفو برخو کې لکه چکړې، کمرې، شيوکي دشاخ برنتي دغره له لمنو، پنجه شاه، دعلي اباد گردنه او همدا راز له نورو

ځایونو څخه هم پیدا شوي دي. څو که چیرته په غور سره ددې عبادت ځایونو او استوپو دودانیو طرز، شواهد او اثار مطالعه شي څرګندیږي چې داهر یو دیوې نوې اوتازه دورې سره اړه پیداکوي.

داګوښه معبدونه وو چې دبودایي وخت له دود سره سم دمشخصو څنډو دپاسه دکابل چار چاپیره تپوباندې ابادې شوي دي.

فرانسوي فقیدموسیوفوشه عقیده لري چې بودايي کابل دیو کلي په توګه داوسني کابل جنوب ختیځ لور ته په ۱۲ کیلومترۍ دچکري په برخه کې په داسې ځای کې واقع و چې نن ورځ یې هم دغره پر څوکه (دپای په برخه) کې یومنار دچکري منار په نامه موجود دی چې لیدل یې مدققینو اوسیلانیانو ته ډیر ارزښت ور دي.

دموسیو فوشه نظریه ددې ځای دتاریخي ودانیو پر مطالعاتو اودده پر هڅو ولاړه ده چې دده په غوښتنه دموسیو (ګودار) له خوا یې صورت نیولی دی.

په چکري کې پرته له دې چې دغره په یوه څوکه باندې منار موجود دی چې دهغې توري وارثې او ثبوت ته رسول ځانګړې مقاله غواړي، یوبل منار د (سره منار) په نامه او څو استوپې موجودې دي چې له نیکه مرغه دزمانې په تیریدو سره دقصدي خرابیدو ساتنه او محافظه یې په ښه توګه ترسره کړې ده او مطالعه یې په کوشاني عصر کې دکابل دبودايي معمارۍ دسبك له نظره خاص ارزښت لري. دهغې غونډۍ چارچاپیره چې سره منار پرې اباد شوی دی دلوړو دیوالونو اثار تر ۴۰ کالو دمخه هم موجود وو چې اوس یې شواهد لږ لږ له منځه تللي دي، مګر دسره منار په مقابل کې دبودايي کابل دلوې استوپې نښې نښانې تر اوسه موجودې دي چې دمحیط اوږدوالی یې ۴۷ متره دی مګر دمعبد یې پرته له پوړۍ لرونکې ځمکې نه نور څه پاتې نه دي.

دسره منار شاته دیخ درې په نامه یوه وړوکې دره ده او دچکري دمنار ترشا یوه بله دره ده دسنجد درې په نامه چې ددواړو په منځ کې تر اوسه وړوکې استوپې موجودې دي.

له چکرې نه لږ لرې دلمرختیځ پر خوا دخورد کابل په لور یوه ساحه ده ددامن کمري په نامه یادیږي چې هلته هم ددوه استوپو نښې نښانې لیدل کیږي چې دیوې دمحیط اوږدووالی ۴۵ متره دی او له هغه ځایه بیا لږ

دلمر خاته پر لور یو بل ځای راځي چې دسیمې خلك یې (سه توپان) بولي، خولکه څنګه چې توپ همغه داستوپې کلمه ده. څرګندیږي چې هلته استوپې موجودې وې، نه یواځې د دري استوپو بلکې د ۵ استوپو نښې نښانې ښکاري.

په دې ترتیب څرګندیږي چې د (کمري اوچکري) په علاقو کې په لومړي مسیحي پیړۍ اوپه ځانګړې توګه له لومړۍ څخه تر دریمې مسیحي پیړۍ پورې ډیرې استوپې اومعابدونه موجود وو او پدې کې داستوپو اومعبدونو نښې نښانې هیڅ شك نه پیدا کوي.

انګریز لرغون پیژندونکی میسن له ۱۴۰ کاله دمخه بودایي کابل کنډوالې لیدلي دي او حتی دچکري په لویه استوپه کې یې یولوي سوری کړی و. اویوشمیر ختین لوښي دتیږو صندوقچه او سکې یې له هغه ځایه وړي دي بودایي کابل د ودانۍ دجوړښت دښار دابادۍ اودخلکو دجمعیت له نظره چندان اهمیت نه درلود، مګر ددیني مرکزیت له مخې په پورتنیو پیړیو کې چې یادونه یې وشوه بې اهمیته نه وه دچکري دمنار موجودیت دمعبدو او استوپو شته والی دا راښیي چې دختیځ اوشمال لوري بودایان هلته روزل کیدل.

۴۱_۷_۵

# دکابل شاوخوا بودايي پاتې

# شوې ودانۍ

لرغـون پيژندونکـي پوهـان معمـولا پـدې بـاوري دي چـې کـابل بودايـي عصرځانګړې سيمه لرله يا پـر بـل عبـارت (بودايـي کـابل) لـه نننـي کـابل څخـه لـيرې وجـودلاره. دنومـورو پوهـانو نظريـه پـه دغـو دوو دلايلـو متکـي ده. يـودپخوانيـو اثـارو، ابـاديو، دمعبدونـو او داسـتوپـو ودانـۍ اوبـل دکـابل دځينـو اوسيدونکيو افواهـات، عـرف او عادتونـه.

لـدې سـره سـره دپورتـه نظريـاتو پـر اسـاس پخوانـي کـابل پـه لومړيـو دوه دريېـو مسـيحي پيړيوکـې دلـوګر دحـوزې لـه مخـې لـه‌اوسـني کـابل نـه يـې جنوب ختيـځ پلـو تـه پـه ۸ کيلـو مـترۍ کـې قـرار لاره او داهغـه حـوزه ده چـې (سـاکا) (کمـري) (چکـري) او (بګرامـي) نيولـې ده اودلـوګر اوبـه دمخـه تـر دې چـې دکـابل سـيندګوتي سـره يـوځای شـي. يـواځې د يعقـوب لـه تنـګي څخـه راوځي داپورتـه يـادې شـوې سـاحې خړوبـوي.

دکومـې سـاحې چـې مـو يادونـه وکـړه هغـه سـيمه ده چـې دشـاخ برنتـي، کمـري او چکـري غرونـو يـې لمـر خاتـه، لمـر پريواتـه او جنوبـي خـوا وې ئـې

راچپیرې کړې دي او شمال لور یې خلاص دی. همدارنګه یوشمیر غونډۍ لکه: خاك بلخ او تپه مرنجان یې په لرې شمال لویدیزه برخه کې پرتې دي.

داوس له پاره دبودایي کابل لرغونتیا دودانیو دجوړښتي سبك له نظره اویوشمیر سکودشهادت له مخې چې له پخوانیو ابادیو څخه راپیداشوی دی دلومړی، دویمې اودریمې مسیحي پیړۍ پورې ترشابیولاۍ شو اوداهغه وخت دی چې لوي کوشانیان دخپل قدرت اوج ته رسیدلی و. او دافغانستان په ټولو برخو اودهند په ځینو فتح کړای شویو برخو کې یې واکمني درلوده.

فرانسوي هیوادپیژندونکی موسیو فوشه باور لري چې دبګرامي وجود پر دغوسیمو کې چې یادونه یې وشوه دغلته دوجودیوبل دلیل دی اواحتمال لري چې (کابورا) دبطلیموس یادونه (چې دښار په حیث یې ترینه یادونه کړې ده) په همدغه سیمه کې واوسیږي.

لکه څنګه چې کتل کیږي اوپخوانی بقایا وې اونومونه شهادت ورکوي دغرونو دلوړو څوکو نه نیولی دغرونو ترلمنو او غونډیو پورې په ټولو ځایوکې معبدونه اواستوپې جوړې شوې وې لکه (شاخ برنتي) او د(چکري منار) چې دغرونو په ښکتنیو مورګو باندې واقع وو او په دواړو ځایونوکې دبودایي ابادیو بقایاوې ـــ دغرونو په لمنو اودغنډیو دپاسه په پنجه شاه غونډیو، جان باز، جبه کهنه، کمري، چکري او تپه مرنجان او نوروکې مشاهده کیږي.

په هغو سیمو کې چې یادونه یې وشوه دبودایي ابادیو پاتې شونې معمولاً له زراعتي ځمکو پورته اوهمدا راز له کلیو لکه (شیوکي) او(کمري) نه پورته اوډیر وختونه یې ددرو په منځ کې چې له نظره نسبتاً پناه وې جوړې کړای شوې دي.

دپخواني بودايي کابل له مشهورو ودانیو څخه یو هم دچکړې منار دی چې داوسني ښار جنوب ختیځ لور ته په ۱۲ کیلومترۍ کې دیوغر دمورګي دپای په برخه کې ودان کړای شوی دی. او نژدې ۲۰ متره لوړوالی لري او داهم له شك نه وتلې نه ده چې په پخوانیو وختونو (مسیحي لومړۍ پیړۍ کې) ددې منار په پورتنۍ برخه کې یوڅرخ یادبودائي دین علامه و لکه څنګه چې په بنارس کې داشوکا دوخت منار پاتې دی او په سر کې یې څرخ لیدل کیږي.

دپخوانیي بودایي کابل دودانیو په قطار کې یو بل دقدر وړ څیز (سره مناره) یاسور منار دی چې دچکړې دغره په پای کې لیدل کیږي لکه څنګه چې ددې منار په تعمیر کې دسور رنګ کاڼي لګیدلي دي په دې وجه یې د

سور منار په صفت شهرت موندلی دی. ددې دوارو منارونو ترمنځ دځو استوپو پاتې شونې لیدل کیږي چې مخ یې بنه ساتل شوی دی. دلویې استوپې احاطه یې له ۴۵ مترو نه اوړي.

ددې استوپو په مقابل کې دوره وړوکې درې دي چې یوې ته (یخ دره) او بلې ته (سنجد دره) وایي اودهرې یوې په دننه کې وړې استوپې لیدل کیږي.

له چکرۍ نه دختیځ پر لورې دغره دیوې ګرځنې ترشا یوه بله لویه ساحه پرته ده چې معمولاً ورته دکمرې دامان وایي هلته ددوو ځانګړو درو په پای کې دوې نورې کنډوالې څرګندې شوې چې هر یو یې ځانته استوپې لري چې دیوې دقطر اوږدووالی څه دپاسه ۴۰ متره دی همدا ډول له دویمې ساحې نه لمر خاته پلو ته دبل غره دیوې څوکې تر شا یوه بله لویه ساحه راځي چې معمولاً هغې ته (سه توپان) وایي چې پخپله یې له نوم څخه څرګندیږي چې دلته یوشمیر معبدونه اوبودایي استوپې جوړې کړای شوې وې. ځکه چې باید هیر نکړو چې (توپان) د(توپ) جمع ده اوتوپ تر اوسه دافغانستان په بیلابیلو ځایونوکې داوسیدونکیو په عرف کې داستوپې له پخوانۍ کلمې نه عبارت دی لکه: (توپ دره) چې چاریکار ته مخامخ پرته ده او یوه لویه استوپه اوس هم هلته لیدل کیږي.

لنډه داچې هغه سیمې چې داوسني کابل جنوب ختیځ لور ته پرتې دي له (جبهه کهنه) څخه تر ( سه توپان) پورې په بیلابیلو برخو کې پرله پسې دګرځنیو اوځنډو ترشا یوشمیر مهمې بودایي ودانۍ ابادې وې چې بقایایې دمعبدونو، استوپو او منارونو په بڼه پاتې دي، خودزماني په تیریدو او ددې سیمې بنار ته دنژدیوالي په وجه پکې ډیرې خرابۍ پیښې شوې، خوبیا هم ویلای شو چې بودایي ودانۍ پدې برخه کې ډیرې وې او داهم له احتمال نه لرې نه ده چې حتی په دریمه ق م پیړۍ داشوکا په وختونوکې کله چې بودایي دین افغانستان ته راغی په دې سیمه کې ابادې شوې وې.

۱۶_۱_۴

# کابلي رتبیل شاهان

تردریمې زېږدي پیړۍ وروسته په لویدیځ کې دساسانیانو او په ختیځ کې دغربي ترکانو درامنځ ته کیدو پر اثر په افغانستان کې دکوشاني دولت قدرت ورو، ورو کمزوری شو. په پنځمه زېږدي پیړۍ کې دیفتل په نامه دنوو خلکو دځرګندیدو په وجه چې دهغوي شل زره کورنۍ اوس هم په بدخشان کې دفیض اباد په شمالي برخه کې اوسیږي، ترکان او ساسانیان دواړه تر شا کړای شول یفتلیانو لومړی دهندوکش په شمال اوبیا په جنوب کې دزابل په سیمه یعنې دغزني اوکندهار ترمنځ مقتدر دولتونه منځ ته راوړل اوپه هند کې یې ډیر فتوحات ترسره کړل چې له هند څخه ګوپتایانو دوی بیرته افغانستان ته پر شا کړل، چې وروسته بیا په ترکیبي بڼه وړو کوشانیانو اویفتلیانو په شریك ډول دافغانستان په بیلا بیلو برخو کې دیوشمیر سیمه ایزو واکمنۍ په مرسته حکومت اوقدرت ته ورسیدل، چې دبامیانو زمریان دهغو قبیلو نمونې وي، باید یاد ولرو چې په غربي ماخذونو کې په عموم ډول دکابل سیمه ایز واکمن د(کابل خدا) په لقب یاد شوی دی چې مقصد ترې همغه کابل شاهان دي، چې کولای شو دکابل شاهان په بیلابیلو کورنیو اوډلو وویشو چې په هغه ډله کې یو هم رتبیل شا شمیرلی‌شوچې یو ښاخ ته یې د (رایان کابلي) په لقب سر لیك تاکلی شو.

له کومې ورځې چې عربانو دافغانستان له لویدیزو سرحداتوسره تماس وموند یعنې له ۲۳ هجري ( ۶۴۵ مسیحي) ترهغې زمانې پورې چې کابل

دیعقوب لیث صفاري لـه خـوا پـه ۲۵۸ هجـري (۸۷۹ مسـیحي) کـې فتـح کـړای شـو دڅه دپاسـه دوه پیړیـو پـه اوږدو کـې دکـابل دسـیمې پـاچاهـان چـې دهندوکـش جنـوب پلـو تـه یـي پـه پراخـه او لويـه سـاحه کـې امـارت درلـود د (رتبیـل) پـه نامـه اوصفـت یادشـوي دي.

دعربـي مـاخذونو پـه تعقیـب دفارسـي متـون پـه تـاریخي اوادبـي اثـارو کـې هـم یـاد شـوي، واکمنـان دهجـري پـه لومړیـو پیړیوکـې هـر ځای د (رتبیـل) او (رتبیـل شاهانو) پـه نامـه یـاد شـوي دي.

دارتبیـل شـاهان دهندوکـش پـه جنوبـي برخـه کـې پـه لويـه او پراخـه سـاحه کې لـه کـابل نـه دسیسـتان ترهـامون یـا پـه بـل عبـارت لـه کـابل نـه تـر زرنـګ یعنـې داوسـني افغانسـتان اوایـران تـر پولـو پـورې سـلطنت درلـود او ډېـر قـدرت لرونکـي وو مـګر پـه کـابل کـې دسـیمه ایـزو واکمنـانو پـه نامـه یـې ډېـر شـهرت لاره لکـه چې برسـیره پـر ادبـي اوتـاریخي مـاخذونو دکـابل دعوامـو پـه فوکلـوري کیسـو کـې یـې هـم شـهرت لاره او لـري یـې او حتـی ـــ دشـیر دروازې او شـاخ برنتـي دغرونـو دپاسـه دابـادیو نسـبت ورکـړ شـوی او ورکـول کیـږي دا اولسـي کیسـې او عامیانـه داسـتانونه ددې شـاهانو دتـاریخي حقایقو پـه روښانولـو کـې ډېـره مرسـته کـوي.

پـه دې کـې شـك نشـته چـې د (رتبیـل) دکلمـې دلیـك اوضبـط صـورت لـږ څه غـور غـواړي، اودمطـالبو دتحلیـل صـورت یـې راڅرګنـدوي. ټول پوهیـږو چـې د (رتبیـل) کلمـه پـه عربـي اوفارسـي متـون کـې لـه بیلابیلـو بڼوضبـط شـوی دی.

لکـه لـه هغـې ډلـې نـه "رتبیـل" زنتبیـل، زنبیـل، زنـده پیـل اونورداضبـط تـوپیر پـه غـالب ګمـان چـې دعربـي لیکدودونـه راولاړ شـوی چـې پـه دواړوژبـو عربـي او فارسـي کـې یـې دتـاریخي اوجغرافیـایي نومونودلیکنـې دسـم ضبـط سـتونزه یـې جـوړه کـړي او پـه داسـې کلمـه لکـه (رتبیـل)کـې د(ت) (ب) او (ی) دتـورو ځای پرځای کـول تغیـیرکوي اوبیلابیلـې بـڼې خپلـوي لکـه چـې مثالونـه یـي لـرو.

لکـه څرنګـه چـې رتبیـل شـاهان ددیـن لـه پلـوه دهندویـي دیـن پـیروان وو او دهنـد اوبـابر شـاهانو پـه سلسـله کـې همدغـه کـابلي شـاهان راځي، پرغـالب ګومان وایـو. چـې د (رتبیـل) نـوم لـه کـابلي هندوي نامـه سـره اړیکـه ولـري. لـه احتمـال نـه لـرې نـده چـې ددې کلمـې ترکیـب د "رتـن پالـه" یـا نـو "رای پالـه" لـه کلمې لـه اسـم خـاص سـره دخـالت ولـري. "رتـن پالـه" چـې یوځانګړی هنـدي نـوم

دی د "رتبیل" له نامه سره ډیر ورته والی لري او په اسانی سره له "رتن پاله" څخه "رتن پال" او "رتبیل" جوړیږي ،همدارنګه "رای پاله" هم د "رتبیل " په تشکیل کې دخالت لرلی شي، "رای" د"شاه" په معنا او "راني " يي " ملکې" ته ویل او"پاله" دکورنی نوم و. د "راې پاله" او"رای پال" له ترکیب نه چې هغه يي ( دپاله کورنی باچا) ترجمه کولای شو، نوکیدی شي په اسانی سره د "رتبیل" کلمه منځ ته راوړي.

په هر حال ددې کلمې دتشکیل صورت چې څنګه وي هسې به وي خودومره په ځرګندتیا سره ویلای شو چې "رتبیل" دکوم پاچا نوم نه و دعربي اوفارسي ماخذونو څخه یواځې دکابل دیوتن سیمه ایز پاچا مقصد نه دی، بلکې مقصد يې دکابل دځوپاچاهانواوکورنیو څخه دی چې ددوه پیړیو په اوږدو کې يي کابل له کابل څخه بهر دافغانستان په ټوله جنوبي برخه باندې سلطنت کړی دی او موږ دافغانستان (دهغوی) د تر اسلام دمخه تاریخ معمولا په دوه ډولو ویشو: (۱) رتبیل شاهان (۲) کابلی رایان دادواړه ډلې دنژاد اواصلي ریښې له نظره سره ګډې وې، دوړو کوشانیانواویفتلیانو له بقایاو څخه چې دافغانستان په ډیرو برخوکې يي سیمه ا یز امارتونه منځ ته راوړل اوداسلام ترراتګ پورې يې په خپلو حوزوکې امارت وکړ یواځې يې داوروستی هندي اوبرهمني دین لاره لکه چې د بامیانو سیمه ایزو واکمنو یادبامیان زمریانو بودايي مذهب درلود.

پدې کې نشته چې درتبیل شاهانو مرکز اوپلازمینه د کابل ښار و او یاتردې ښه ووایو چې په دې کې شك نشته چې د"کابل کلا" یفتلي شاهانوپنځمې مسیحي پیړی په اوږدو کې له بګرام نه دپایتخت د لیږدونې په هوډ په کابل کې جوړه کړه او په کابل کې دبالاحصار په ودانولو کې يې ډیرې هڅې تر سره کړې او حصار يي دښار دغرنیوسیمو کې وکېښ چې کله پدې ځای کې امارت ته ورسیدل دبلې واکمنی مرکز يي همدغه دکابل کلا وټاکله او بیا ددې کلا په ټینګښت برجونو اوغرونو دپاسه د یوالونو په استحکام کې ډیرې هلې ځلې وکړې.

تردې دمخه مو اشاره وکړه چې دپخواني افغانستان په تاریخ کې رتبیل پر دوه ډلو ویشلی شو: یوکابلي رتبیل شاهان او بل کابلي رایان ددې کورنی. دواړه ډلو دعربو دلښکرو اودعرب دخلافت دراستول شوو سرتیرو په وړاندې او حتی دسیستان دصفاري مسلمانو نسلونو سره په

مختلفو ځایونو په ځانګړي توګه دغزني، لوګر او کابل ترمنځ سختې جګړې وکړې چې خاطرې یې په جزئیاتو سره دتاریخ په متونوکې خوندي دي.

تر دې پورې چې یعقوب لیث صفاري هم دوروستي رتبیل شاه له خوا دیوحربي چل پر اثر دکابل په غربي برخه کې معالجې ته ددعوت په مهال ګرفتار کړای شو او کابل په ۲۵۸ هجری کال چې له ۸۷۹ میلادی کال سره سمون خوري دنهمې میلادي پیړۍ په دریمه نیمایي کې افغانستان دلویدیځ له لوري دمسلمان امیر په لاس فتح کړای شو. خو درتبیل شاهانو پایځوړونه بشپړ له منځه لاړل پدې چې تاریخ دیعقوب لیث صفاري دورور عمر لیث صفاري په وخت کې هم دلوګر اوغزني په برخو کې درتبیل شاهي وګړو یادونه کوي.

۴۱_۳_۲۹

# برهمني واکمني یاهند او کابلي شاهي

داوومې مسیحي پیړۍ له پیل نه وروسته دجنوبي هندوکش په مختلفو برخو کې بیلابیل نسلونه واکمنۍ ته ورسیدل چې عربي، سانسکریټ، فارسي اوچینایي ماخذونو په دوه ځانګړو نومونو یادکړل چې نن ورځ دواقعاتو ترتجزیې اوتاریخي پېښو ترپېښیدو وروسته دومره ویلای شو چې ددې کورنیو نومونه او القاب هر څه چې و خوداصلي ریښې له مخې یې د(کوشانیو یفتلیانو) په صفت یادولی شو، ځکه چې ددې دوه اصلي ریښو عنصر زموږ په هیواد او په ځانګړې توګه دخیتځ هندوکش په جنوبي برخه کې دپخوانیو سوابقو له مخې تیت او ځای پر ځای وو.

دبرهمني شاهانو په اړه چې دکابلي شاهانونسل و دوه منبع لرو یو البیروني چې هغه وخت په غزني کې اوسیده او له غزنوي واکمنو سره یې هند ته سفرونه کړي اوډیر پراخ او افاقي معلومات یې تر لاسه کړي او بل ( کلهنه) دکشمیر مشهور شاعر اومورخ دي چې اثر یې (راجاترانګیتي) نومیږي چې کولای شو هغه ( دپاچاهانو رود) وژباړو اودشرح په ضمن کې یې دکشمیر اوهنددشاهانو کارنامې دحال څرنګوالی اوددواړو ترمنځ دتعلقاتو په اړه خبرې کوي.

البیروني دکابل شاهي نسل دهغې زمانې چې دمطالعې وړ ګرځیدلی په دوه نومونو اونښانو یادوي: یو (ترکیان) اوبل ( شاهي برهمن) ترکي

شاهیان یې د (کشتاتریه) نسل څخه عبارت دي او یاهم هغه جګړه ماران دی چې دافغانستان په تاریخ کې یې د (رتبیل شاهانو) په لقب لاښه پیژنو. دبرهمن نسل دشاهانو بل نسل دی چې دعقیدې له مخې (برهمن) یا (هندي) وو. او دکابل دسیمه ایزو برهمنیانو او هندوانو څخه شمیرل کیدل او ډیر معبدونه یې په کابل اودکابل په چار چاپیره سیموکې درلودل چې د لوګر د ( سګاوند ) معبد یې مشهور معبدو.

څرنګه چې له یادو شویو ماخذونو څخه ثرګندیږي چې رتبیل خلک عسکر پیشه (عسکري) خلك وو اومعمولا به یې ښه عسکري مشران له برهمنانو څخه ټاکل.

البیروني د (ترکي شاهي) نسل لومړی پاچا د (برهاتګین) اووروستی یې د (لکه تورمان) په نومونو یادکړی دی او وایي چې وروستی پاچا یعنې ( لکه تور مان) د (کلر) په نامه برهمني وزیر لاره.

له ترکي شاهي وروستی پاچا څخه دپاچاهۍ دقدرت اواقتدار انتقال صورت برهمني وزیراویاهم دبرهمنشاهي کورنۍ ته یوه سلسله ئیسه لري چې البیروني طبعا هغه اوریدلې اوداسې یې نقل کړی دی."

البیروني وایي: (کلر) برهمني وزیر اتفاقا خزانه وموندله او یوناخاپي پانګه وال شو،او لکه څرنګه چې پانګه پخپله قدرت دی ورو، ورو یې دمال په لرلو ډیر پلویان وموندل او لږ لږ یې دپاچاهۍ اقتدار دترلاسه کولو لپاره ځان چمتو کړ. اوله بله پلوه دترکي شاهي وروستی پاچا لکه تورمان چې ډیر ظالم شخص و. له رعیت سره یې ډیر بد سلوك کاوه او پدې وجه خلك ترې ډیر په تنګ راغلي وو ټولو دپاچا وزیر ته شکایت وکړ دبرهمني وزیر پانګه او دارائي چې دده شخصي اعتبار نور هم ورزیات کړی و له پاچا څخه یې ګټه پورته کړه (لکه تور مان) یې بندي کړ او پخپله دپاچاهۍ په تخت کښیناست . داو د البیروني له نظره برهمشاهي نسل دموسس منځ ته راتلل، خو که چیرته همدا عین موضوع دکشمیري مورخ په کتاب ((کلهنه)) کې مطالعه کړو یو بل څه به وګورو کشمیري مورخ دبرهمنشاهي نسل بنسټګریاهندوشاهي د((کلر)) په نامه بالکل نه پیژني، بلکې ددې کورنۍ بنسټګرد((للیه)) په نامه یو تن یادوي دا ((للیه)) دکشمیري پاچا ((سکنره ارمان)) معاصر و چې د ( ۹۰۲_۸۸۳م) ترمنځ یې په هغه ښکلې دره کې پاچاهي درلوده.

په دغه ترتیب ددوو مورخینو دنظریاتو پر اساس چې یودغزني اوبل دکشمیر و دبرهمن شاهي یاهند وشاهي کابلي نسل موسس دوه تنه ګورو یو ((کلر)) او بل ((للیه)) اروپائي مورخین اوباختري مدققین لکه "کننګهم" او "سراورل ستین" چې دواړه انګریزان دي او دوی ((کلر)) او ((للیه)) یوسړی بولي . "سراورل ستین" چې پخپله دکشمیري مولف ((راجاترانګین)) ژباړن دی تعجب کوي چې څنګه دوه تنه دغزني اوکشمیر مورخین ((کلر)) و((للیه)) دواړه انځورلي اودا دواړه اشخاص دیوتن جز نشي کیدلی دا په همدغه ترتیب.

یوبل خیتخ پیژندونکی چې د ((کلر)) او ((للیه)) دنومونو ظاهري اختلاف دعربي حروفو لیکدود راولاړه شوې ستونزه بولي اوپه حقیقت کې یې هغه دوه نومونه دیوه سړي ګڼلي دی په هر حال که چیرته دا دواړه نومونه یو تن ته مربوط وي نو دادغور وړ ده چې کشمیري مورخ په داسې وخت کې ((للیه)) دبرهمن شاهي دسلسلې سر بولي چې مرکز یې کابل نه ((ویهند)) ته منتقل شوی او په کابل کې ((لکه تورمان)) پاچاهي خپله کړې ده. یوشمیر اروپائي پوهان په دې باوري دي چې دادواړه نومونه یو دي د ((کلر)) او ((للیه)) نومونه په مشترک ډول د ((کلرللیه)) په بڼه لیکي او همدارنګه دزمان اومحل دتشخیص په پام کې نیولو سره دهغوی پاچاهي داسې تعبیروي چې ((کلر)) په کابل کې دبرهمن شاهي کورنۍ دسلسلې سر و او هغه په کابل کې دبرهمني شاهانو بنسټګر ګڼلی شو، پداسې حال کې چې للیه ددې کورنۍ پاچا و چې برهمن شاهان یاهند اوکابلي شاهان دغزنو یانو دفتوحاتو په اثر کابل، لوګر، اوګردیز کې له پښو ولویدل اوپه پای کې یې داټک ترڅنګ (ویهند) کلك کړ اوهلته یې نوی مرکز منځ ته راوړ.

برهمنشاهي یادهند اوکابل شاهي نسل په کابل کې معبدونه اباد کړي اودښار په یو درم سال کې یې دیوتن پاچا مجسمه تر یوه حده نقش کړای شوې ده.

۳۱_۱_۳۸

# دکابل پخواني دیوالونه

یو لـه پخوانیـو خاطروڅخـه چـې دکـابل ښار ارزښت یـې مخصوصـا دتدافعي ترتیبـاتو لـه نظـره ثـابت کـړی دی دپخوانیـو دیوالونـو وجـود دی، چې لـه نیکـه مرغـه پـر دوو غرونوشیردروازه ا واسـمایي یـې ځینـې برخـې تـر اوسـه پـاتې دي چـې دښار لـه هـرې برخـې نـه څرګندیـږي. داسمایي اوشیر دروازې واړه غرونـه یودبـل پـه مقـابل کـې یـو دپخوانـي ښار جنوبـي پلـو او بـل یـي شـمال لویدیـز لـور تـه پـروت دی او پـه پخوانیـو وختونـو اوداسـلام پـه لومړیـو پیړیـو کـې یـي دطبعي حدوداتـو پـه تـوګه دکـابل ښار محدود کـړی او د ښار سـاتونکیو (دفـاع کوونکیـو) لـه دې غرونـو څخـه دطبیعـي پنـاه ګاو پـه حیـث کـار اخیسـتی او پـه لـوړو برخـو کـې یـي ښه کلـک دیوال تـیر کـړی دی.

لکـه څنـګه چـې ټول پوهیـږو دکـابل اوسـنی ښار درود دوو غـاړو تـه چـې دکـابل پـه سیندشـهر ت لـري پـروت دی.چـې داسیند دپغمـان دغرونـو لـه لـړۍ نـه سـر چینـه نیسـي، او لکـه څنـګه چـې مـې یـوې راډیویـي مقـالې تـه هـم لیکلـی و یـو وخـت و چـې دکـابل ډیـرې ابـادۍ دیـوې بلـې رودخـاتې پـه حـوزه کـې پرتـې وې چـې هغـه دلـوګر درود پـه نامـه یادیـږي او دلـوګر ډدرې لـه جنوبـي برخـې نـه راغلـی اوبلاخـره د یعقـوب لـه تنـګي څخـه راتـیر

دسهاك اوشيوكي سيمې خړوبوي او له تنګ غارونه څخه څو کيلو متره
وړاندې دکابل له سيند سره يو ځای کيږي.
دکابل دابادیو تاريخي بهير که په غور سره وکتل شي څرګنديږي چې
کابل دپخوانيو ابادیو دثقل له مرکز نه په دويمه او دريمه مسيحي پيړيو
کې چې په چکړيي کې يي قرار درلود په تدريج سره دلوګر رود حوزې اوبيا
دکابل دسيندګوټي حوزې يې ځايي بدلون موندلی اوپه دې تدريجي سير
کې داسې وخت هم راغلی دی چې ددوه غرونو شير دروازه او اسمايي
ترمنځ ځمکې دبالاحصار،دمورګي په ګډون داهميت وړ ګرځيدلی دی.
دځلورمې اسلامي پيړۍ دمتون په شهادت لکه د المسالك
اصطخري، ابن خردادبه، حدود العالم او اشکال العالم چې جيهاني ته
منسوب دي. کابل هميشه د(کلا) (قهندز) يا (کهندژ) (ادژ) او (حصار)
په صفت ياد شوی او داکلاودژيا حصار هميشه دحصين، محکم او
استوار په صفت ياد شوي او ښارله ځانه (ربص) يا حومه درلوده چې
دکلا يا حصار دديوالونو څخه دباندې يې لمنه ډيره پراخه ده.
نو دځلورمې اسلامي پيړۍ دماخذ له مخې چې له لسمې عيسوي
پيړۍ سره سمون خوري دکابل کلا اوحصار وجودلاره او داستحکام
اوشهرت يې ډيره اوازه خپره وه.
دې ته بايد پاملرنه وکړو چې دکابل پر غرونو زاړه ديوالونه دښارله
مستحکمې کلاسره اړونده موضوع ده. اواصلا دکهندژيا زړې کلا شته
والی چې داوسني بالاحصارپرځای دديوالونوجوړاونه پر غرونو ددې له امله
شوې وه چې کلا ددفاع له نظره استحکام ومومي.
افغاني مورخينو تريوه وخته داسې فکر کاوه چې اصلا دکابل
پخواني ديوالونه داسلام د مقدس دين دخپريدلو په مهال دلويديزو
بلوسګرودمنخينوي له پاره دکابلي پادشاهانويعنې رتبيل
شاهانو جوړ کړی دي.
خو که چيرته دکار اوږدوالی،دجوړولو عظمت او هغه وخت ته پاملرنه
وشي چې ددې په جوړولو کې ترې کاراخستل شوی دې ټولوته په غورسره
ترکتلو وروسته داسې څرګنديږي چې داديوالونه په بيړه جوړشوي نه دي
اوددې دجوړولومفکوره پخوانۍ سابقه لري.

یو تن لویدیز عالم پادر کسپاني دیکالوي چې نږدې ۱۸ کلـه یـي پـه کابل کې ژوند کاوه او دافغانستان مجله ۱۹۴۸ کال په دویمه شماره کې یې مقاله هم خپره کړې ده. هغه لیکي چې دکابل پرغرونو دیوالونه په احتمال سره دیفتلیانو په وخت کې (پنځمه زېږدې پیړۍ کې اباد کړای شوي دي.

پدې کې شک نشته چې یفتلیان اوس هم نږدې (۲۰) زره تنه بدخشان کې دفیض اباد شمال لور ته اوسېږي دوی دپنځمې پیړۍ په اوږدو کې دیو فعال قوت په حیث دهندوکش شمال او جنوب لور ته په فعالیت لاس پورې کړ ساسانیان یې دهیوادله مرکز څخه لویدیځ لوري ته شا کړل او دهندوکش جنوب لور ته یې (دزاولي) په نامه یوه مشهوره قبیله په زابل اوکابل یعنې په غزني اواوسني کابل کې ځای پر ځای شو اود (زاول) (کاول) زابلستان او کابلستان نومونه دهغوی دوخت داستقرار خاطرې دي.

لکه څرنګه چې یفتلیان وسله لرونکي او جنګیالي خلك وو او همدا راز دسوق الجیشي له نقطه نظره یې په ځمکو کې ډیر شناخت اومهارت لاره، دتومورې ایتالیایي پوه له نظره قوي احتمال دی چې دکابل دکلا مستحکمه هسته دکابل اوسنی بالاحصار اودمحافظې له پاره یې دغرونو دپاسه دیوالونه ددوی په لاس اباد شوي دي.

دکابل پخواني دیوالونه دچین دسترو دیوالونو یوه وړوکې نمونه ده چې نښې نښانې یې دپیکن غرب لور ته ۹۰ کیلو مترۍ کې په ختیزه نړۍ کې نوم لري لکه څرنګه چې ټول پوهیږو چې دچین لوی دیوالونه د ۳۰۰۰ کیلو مترو په شاوخوا کې اوږدوالی لري اودادیوال په ۲۴۰ ق م کې دیوې چیني کورنۍ له خوا چې مانچو نومیده اودهیوانګنو خلکو دیرغلونو دمخنیوي له پاره جوړ کړای شوی و.

دکابل دیوالونه دچین دلویو دیوالونو په مقابل کې فوق العاده وړوکي دیوالونه دي او دایواځې د یووړوکی ښار له پاره چې ددوه وړوکو غرونو په منځ کې پروت و ددفاع په خاطر جوړ کړای شوی و.

**مګر ددې** دواړو دیوالونو دجوړښت دسبك له نظره چندان توپیر نشته.

**دکابل** ددیوالونوپه جوړولو کې دډېرو ټوټو، غټو خامو او پخو خښتو **څخه کار** اخیستل شوی، برجونه، کنګرې او تیر کښونه یې تر اوسه په ښه ډول تشخیص کیږي، ددیوالونو دجوړولو دځای ټاکل مخصوصا دغرونو په

لمنوکې چې ددهمزنګ په تنګي کې سره مخامخ کېږي دمهندسانو کمال اومهارت په ډېرو سختو ځایونو کې څرګندوي. په دې کې شک نشته چې دې دیوال خپلې دروازې درلودې او یوه دروازه یې همدغه ددهمزنګ په برخه کې وه او دا له امکان نه لرې نه ده چې د (شیردروازې) وجه تسمیه له همدغه ځایه اخستل شوې وي.

دادیوالونه درتبیل شاهانو په عصر کې دعربانو دحملې پر مهال اوتر هغې په نژدې دورو کې جوړ شوي دي لکه څرنګه چې داحمدشاه درانې اوابدالي تیمور شاه په وختونو کې هم پکې یوڅه رغاونې شوې دي لکه څنګه چې په لمر خاته پلو کې دیوال دجلګو او زراعتي برخو نه تیریده هلته یې اثار پاتې نه دي او دبرید تاکل یې یوڅه شکونه پیداکوي.

دکابل دیوالونه زمونږ له تاریخي میراثونو څخه دي دهغې ساتل اومحافظه که هغه دتاریخي خاطراتو له نظره وي اوکه دګرځندویانو دمطالعاتو له نظره وي، زموږ ملي دنده ده.

۱۱_۸_۴۱

# دکابل لمنوکي داباديود پراخوالي

# ستراتيژي مفهوم او موقعيت

کابل دجغرافيايي جوړښت له مخې دغرونو په څو پردو کې تاوراتاو پيچلي پروت دی. که چيرته يې شاوخواته وکتل شي نو يوشمير غونډۍ لکه (مرنجان) (کلوله پشته) ( بي بي مهرو) او نورې يې دابادېو نږدې چاپيريال کې واقع شوی دی. څو دښار مرکزي برخه ددوه وړوکو غرونو (شير دروازې) او (اسه مايي) په منځ کې پرته ده او خارج ته په لرو برخو کې يې نور غرونه په کږه وږه بڼه پراته دي.

ټول پوهيږو چې دبودايي اثارو د شهادت له مخې دکابل ښار له اسلام څخه دمخه په خپل چاپير چل کې دغونډيو دپاسه هم ابادۍ درلودې ددې ابادېو لمنه تردويمې ،دريمې زېږدې پيړۍ پورې رسيږي او دهغو مسکو کاتو له مخې چې په چمن حضوري کې تر لاسه شوي دي څرګنديږي چې په څلورمو اوپنځمو م ز پيړيو کې په دې حدوداتو کې اباديووجود لاره م سکندر او حتی چينايي ليدونکي هيوان تسنګ له دې ځايه دتيريدلو په مهال دکابل ښار ليدلی نه دی خو داسې اټکلوي چې دکابل ښار په پخوانيو وختو کې دمخه تر اسلام سره لدې چې ډير اباد معبدونه يې درلودل مګر ډير ارزښت يې نه لاره او داخبره هغه وخت ښه څرګنديږي چې دبګرام دښار موقعيت په ۸۰ کيلومترۍ کې په نظر کې ونيول شي. هغه وخت سرې پوهيږي لکه څنګه چې بګرام يو لوی ښاراود کوشانشاهانو

پایتخت و دسترو خلکو او بودایي علماو ګڼه ګوڼه هلته جوړه وه او کابل دلاړي له اوږد کناره په یوه څنډه کې واقع شوی و.

هغه څوك چې دکابل په ښار کې ژوند کوي او بهرنیان چې دلومړي ځل لپاره دي ښار ته راځي ټولو یو عجیبه څیز پدې ښار کې لیدلی او وینې چې هغه یولوی حصار دی چې دشیردروازې او اسه مائي په غره باندې جوړ کړای شوی دی ایاددې حصار په جوړولو کې پرته له نظامي اوستراتیژیکي ګټې نه نور څه و؟

لکه څنګه چې دچین لوي دیوال دهن ما دیرغلونو په مقابل کې جوړ کړای شوی و او نور څه تری مطلب نه و همدا راز دکابل په غرونو دیوالونو یواځې اویواځې دیودفاعي غرض په خاطر له ښار او ابادیو څخه چارچاپیره جوړ کړای شوی و چې مطلب تری یواځې مدافعه وه. اوتل ددې دیوالو له لیدلو ځیني پوښتني په ذهن کې ګرځي چې دامستحکم حصار دچا له خوا؟ په کوم کال اوکومه نیته جوړ کړای شوی دی؟

له بده مرغه چې تر اوسه هیڅ یوموثق تاریخي ماخذ او هیڅ یوډبر لیك په دي اړه درك نلرو چې صحیح اوموثق معلومات راکړي، یو تن (پاورکسپاني) ایټالیایي پوه چې ۱۸ کاله دکابل په ښار کې اوسیده او دافغانستان اړوند یې یوکتاب هم لیکلی سرلیك یې دی (افغانستان چهار راه اسیا) هغه پدې باوري دی چې دکابل په غرونو دیوالونه دیفتلیانو په وخت کې پیل او تکمیل شوی دی.

دایفتلیان چې دافغانستان دتاریخ دپنځمې مسیحي پیړی په اوږدو کې راڅرګند شوي داخلك نظامي او جګړه مار خلك وو په بل عبارت په ټوله معنا متحارب، نظامي او جنګجو خلك وو دوی له منځنی اسیا دپامیر له هغه لوري او سر دریا اوامودریا نه راغلي وو او دبلاخره په پخوانی تخارستان او بدخشان کې میشت شول.

دایفتلیان وروسته تر هغې چې دسلطنت په تشکیل بریالي او په بدخشان کې یې مقر اختیار کړ په دوه ډولو وویشل شول چې یوه ډله یې له همغه بدخشان څخه غرب لور ته داوسني افغانستان تر وروستیو پولوپورې خواره شول اوله ساسانیانو سره تر مخامخ کیدلو وروسته یې هغوی پر شا کړل او بله ډله یې دهندوکش جنوب پلو ته راغلل په زابل، کابل او کاپیسا کې خپاره شول چې ددوی مهمه قبیله (زاول) نومیده دا ډله لکه څرنګه چې په غزني کې اوسیدل هغې سیمې په زاول شهرت وموند.

دایفتلیان په همغه نظامي شیوه چې درلوده یې دکابل په غرونو ددیوالونو دجوړولو په فکر کې شول، ددوی دښه یو والی او داوامرو

تعمیل له مخې یې دديوالونو په ابادولو لاس پورې کړ او دالوي حصار چې له نیکه مرغه بقایایي تر یو حده اوس هم موجودې دی منځ ته راغی.

کابل پخپله (کهن دژ) یالویه زړه کلا درلوده او دا (کنهدژ) یې بالا حصار و، چې په پخوانیو عربي او فارسي ماخذونو کې د(حصار)، (دژ)، (کهندژ) (کلا) په حصینه اومستحکمو صفاتو یاده شوې ده او ښار له کلا سره سره چې مستحکمه هسته یې وه دښار چار چاپیره یې دیوال هم لاره، که چیرته ښه دقت وشي لومړی پخپله کهن دژ دښو استحکاماتو او برجونو لرونکی اوښه مضبوطه کلا وه او بیا دښار چارچاپیره بل حصار جوړ کړای شوې و چې دکابل دغرونو په څوکو یې یوڅه برخې پاتې دي.

دکابل دغرونو دپاسه دحصار جوړول ددقت او مصالح له نظره څه اسان کار نه دی او دایو لوي کار ګڼل کیږي او ددی کار تکمیل ډیر وخت اومقتدر سلطنت ایجابوي او داسې څرګندوی چې نظامي او سوق الجیشي ارزښت چې کابل پکې اباد اومعمور و په پنځمه مسیحي پیړۍ کې ایجاب کاوه چې ددفاع له پاره مهم تدابیر ونیسي.

تول په دې پوهیږو اوریدلي اولوستلي مو دي چې دکابل رتبیل شاهانو دې حصار اودې استحکاماتو ته ډیر ارزښت ورکاوه. دا حصار دعربو مجهزو قواوو درسیدلو پر مهال په اوومه زېږدې پیړۍ کې څای پر څای، و چې پدغه مهال دښار ساتندویانو او عربو ترمنځ خونړۍ جګړې هم شوي اوداجګړې دمدافعینو ترمنځ ددې دیوالونو ترڅنګ څوځله تکرار شوي دي. دکابل ـ غرونودپاسه دحصار تر جوړولو دمخه خاص کلي نه و او دې دیوالونو جوړولو یو خاص ارزښت ورکړ خو کله چې دیوالونه اباد او حصار له لویو اوضخیمو دروازو سره خپله وروستۍ بڼه خپله کړه کابل ډیومستحکم پایتخت اومرکز په حیثیت وشمیرل شو.

۳ـ ۴ـ ۴۷

# دچکړي منار

دکابل جنوب ختیز لوري ته لږ څه لرې که په دقت وکتل شي دغره په یوه تیغه باندې یوتور رنګه یاباریک عمودي کرښه ځرګندیږي کله چې داغر په ژمي کې واورې سپین کړي داکرښه لږه څه ښه ځرګندیږي داتور عمومي خط دچکړي له منار څخه عبارت دی.

د (چکړي منار) دجغرافیایي، تاریخي ،فرهنګي او معماري مفهوم له نظره پایتخت ته په نژدې ساحه کې یوه مهم میراث دی او دپورته شرح له نظره ددې آبادۍ ارزښت هغه وخت ځرګندیږي چې په هغه ځای کې چې دامنار واقع دی په جغرافیایي مفهوم یې ړنا واچول شي.

کابل دافغانستان مرکز اوپه عین زمان کې یوتاریخي ښار شمیرل کیږي چې له ډیرو وختو راپه دیخوا دې اوسني حال ته رسیدلی دی یووخت بالاحصار په جنوب شرقي برخه کې دښار مهم مرکز ؤ دبالاحصار تر شا زره جبهه اوشهدای صالحین واقع دي چې داځایونو هم دمخه تر اسلامي دورې ډیر ارزښت لاره دزرې جبهې تر شا یو لږ غرونه لکه شاخ برنتي،کمري اوچکړي ډیر مشهور دی‌او ددې هر کنډر تر شا په څوکو کې یې دپخوانیو زمانو دآبادیو پاتې شونې شته .

اوځینې نقاط لکه پنجه شاه، جانباز، بیني نیزار، سهاك، کمري او چکړي دپاملرنې وړ دي اووروسته دچکړي دغرونو تر کنډرونو یخ دره، سنجد دره او"سه

توپان" داسي درې دي چې ليدونکي داوسني کابل له حوزې نه قدم په قدم لمر خاته لوري ته راکاږي اوبلاخره دبت خاك او تر هغې هم ليرو منطقو ته يې بيايي.
دچکرې منار چې دغره په يوه څوکه واقع دی په موجوده حال کې ۱۵ متره يا څه دپاسه لوړوالی لري او قطر يې د ۲۰ مترو په شاوخوا کې دی.
دچکرې منار په استوانه يي بڼه جوړ کړای شوی دی په داسې ډول چې پورتنی برخه يې په تدريج سره نری کيږي دمنار پورتنی برخه داوښ دمورې په شکل ده اولکه څنګه چې پوهانو او بلاخره موسيوفوشه فرانسوي دخپل نظر څرګندونه کړې ده داسې څرګنديږي چې په لرغونو زمانو کې دمنار په پورتني برخه کې ( څرخه يعنې ( عراده) چې دبودايي دين آيين او قانون ؤ وضع شوی وه ، لکه چې همدې نظريي او مفکورې ته مربوط په هند کې بنارس ته نژدې دموريا هندي امپراطور (اشوکا) دوخت منار موجود دی چې په سرکې يې (چکره) يا(عراده) دبودايي دين علامه ليدل کيږي او (چکره) عين همغه کلمه ده چې دچکرې په منارکې ليدل کيږي اوله نامه څخريږې هم معلوميږي چې دنومورې منار په پورتني برخه کې (چکره) (څرخه) يا (څرخ) چې دبودايي دين او قانون علامه وه وضع شوې وه.
معمولاً فرانسوي لرغون پيژندونکي دتاريخ له نقطه نظره دچکرې منار او يو شمير استوپې چې ورته لرې او نژدې واقع دی لکه (يخ دره) (سنجد دره) ( سه توپان) اونوروکې دويمې مسيحي پيړۍ ته نسبت ورکوي مګر پوښتنه پيداکيږي چې ايا دامنار د(اشوکا) زمانې دريمې م ز پيړۍ لومړۍ نيمايي پورې تعلق نه نيسي؟
موريا امپراطور اشوکا چې دهغه کتيبه په بودايي اخلاقي لاربښوونو ليکلې وه پدې وروستيو کې دکندهار په سر پوزه کې تر لاسه کړای شوه چې بودايي دين ته يې په افغانستان کې رواج ورکړی دی او همدا راز يو بل ډبر ليك په جلال آباد کې دډرونټې په برخه کې ترلاسه شوی دی.اوهمداراز دچيني ليدونکي هيوان تسنګ دليکونو له مخې چې ياد شوی امپراطور په هډه اوبګرام کې استوپې اومعابدونه جوړ کړی ؤ دا ملاحظات پورتنی پوښتنه تقويه کوي چې دچکرې منار بايدداشوکا په وخت کې جوړ کړای شوی وی.
دچکرې منار يوه مذهبي ابادي ده او په ټول موجوديت يې له بودايي قانون څخه استازيتوب کاوه او دغره په پوزه باندې يې موقعيت داسې مفهوم لاره چې له يوې خوا يې دبودايي کابل څرګندونه کوله او له بلې خوا يې دبودايي دورو راهبانودلاربښوونې له پاره شميرل کيده. لکه چې دشرق دلوري يې دهډې، دشمال دلوري يې دبګرام او دشمال غرب له خوا يې داراکوزي (کندهار) له پاره جلب توجه

کوله. بگرام، چکړي، کمري، سهاك چې چارچاپیر پراته او ډیره ساحه یې نیولې وه چې دبودائي کابل ابادۍ یې په مختلفو برخو کې پرتې وې او ډیرې ابادۍ دچکړي دمنار په نژدې چاپیریال کې متمرکزې وې.

ټول په دې پوهیږو چې اشوکا په هند کې ډیر معبدونه او استوپې جوړې کړې دي او په ځانګړي توګه دتیږو منارونه یې په مختلفو ځایونو کې اباد کړي او خپل فرمانونه یې پر ډبرو کیندلي او په منارونو کې کلك کړي دي او تر اوسه لکه څنګه چې دمخه وویل شول دوه فرمانونه یې دافغانستان په خاوره کې هم موندل شوي دي.

که چیرته داملاحظات په نظر کې ونیول شي په اسانۍ سره ویلای شو چې دچکړي منار به هم دهغه وخت ابادي وي، لکه چې مو وویل ،همدغه شان د(چکړه) لرونکی منار په بنارس کې هم لري چې تر اوسه موجود او مشهور دی. لکه څنګه چې (اشوکا) دپاچاهۍ ترڅنګ درهبانیت مقام هم درلود، او دخپلې واکمنۍ په لسم کال یې دبودائي دین مبلغین دارغنداو سیمې موجوده کندهار ته ورسیدل، غالب ګمان دادی چې دچکړي دمنار اساس هم هغوی ایښی وي او په کابل کې دبودایي دین دخپریدلو دخاطرې په ډول یې دامنار جوړ کړی وي ځکه چې طبیعي وه ددې منار چارچاپیره په درو کې ډیرې استوپې اومعبدونه و چې دځینو شواهد اوس هم لیدل کیږي اوداهم له امکان څخه لرې نده چې ددې ابادیو لمنې تر لومړۍ، دویمې اودریمې مسیحي پیړیو پورې اوږدې شوې وي.

۴۷\۴\۱۷

# خم زرگر

## دبودايي معبدونو او استوپو پاتې شونې

((خم زرگر)) يوبې نښانه ځاى دى چې په ځانګړې توګه يې په کتابونو او تاريخي اثارو کې دنوم يادونه شوي نه ده، مګر دتاريخي اباديو دلرلو په وجه په پخوانيو زمامونو کې مهم ځاى و. پرته له شکه په کابل کې به داسې څوك نه وي چې د "ګلبهار" نوم يې اوريدلى نه وي. دا ښکلى کلى دپنجشير ددرې په دننه او دکوهستان او نجراب په لاره د (شتل) او پنجشير دمستو او څپاندو رودونو پر غاړه واقع دى او داځاى دنوې پلازمينې کابل دخلکو دتفريح اوميلو ځاى دى.

ګلبهار په خپله شمالي برخه کې د "شيخان خيل" په نامه يوځاى لري چې له څوکالو راپديخوا هلته يوه لويه دټوکر جوړولو فابريکه جوړه شوې او په فعاليت يې پيل کړى دى اود "شيخانخيل" نوم دګلبهار دنساجي په ښه منځ ته راغلى دى.

بايد هير نکړو چې دشيخانخيل هغه دښته چې اوس هلته دفابريکې ودانۍ جوړه شوې، څلور سوه کاله دمخه يې ډيرو ګلونو په لرلو او په ځانګړې توګه دلاله ګل په لرلوې ډير شهرت لاره. او ظهير الدين محمد بابر په خپلو يادښتونو کې چې په "تزك" شهرت لري د شيخان خيل دنوم يادونه يې د (شيخاددښتې) په نامه کړې ده.

اوپه پښتو کې دلاله ګل دمختلفو ډولونه تعریف کوي اوپه ځانګړې توګه یې یادونه کوي چې دلاله د ۳۲ ډوله ګلانو څخه یې پدې دښته کې د (لاله ګل بوی) او (لاله صدبرګ) یې ډیر شهرت لري چې دغور بند دتنګي په خوله کې راټوکیږي.

دګلبهار دکلي شمال شرق لوري ته دشیخان خیل دښته، خم زرګر او خوا ته یې اشترګرام پروت دی او ددې منطقې شمالي لوري ته د"سنجن" او "درنامي" غرونه پراته دي. خم زرګر اواشترګدام دکاپیسا دډیرونورو نقاطو په څیر دپخوانیو دورو ډیرې مذهبي ابادۍ درلودې او دقدیمه اثارو بقایاوې دامفکوره په وضاحت سره تائیدوي.ددې کلي دشمال لوري ته دغرونو اوسیدونکي که هغه د(سنجن) (درنامه) اوکه دشتل درې اوسیدونکي دي چې شمال لویدیځ ته واقع دی ټول په پشه یې ژبه خبرې کوي او داسې څرګندیږي چې په پخوانیو وختونو کې دې لهجې پدې سیمه کې عمومیت لازه.

داخبار، فرهنګي او اطلاعاتي یادښتونو پر اساس چې ما پخپله په همغه ځای کې اخیستي، پدې وروستیو کلونو کې بودایي اثار او تراشلې مجسمې ورو، ورو له سنجن" اوخم زرګر څخه ترلاسه شوي دي.

په دې اړه لومړۍ په زړه پورې پارچې چې له "سنجن" څخه تر لاسه شوي عبارت له دوه لویو دکاڼو هیکلو څخه دي چې یوېې یومتر اولس سانتي لوړ والی لري اودبودا مجسمه په داسې حال کې څرګندیږي چې له اوږدو وېښتو څخه یې داور شغلې لوړیږي اودپښو له تلوڅخه یې اوبه جاري دي داډول مجسمه دمخه تر دې هم په ۱۹۲۶ کال کې چې ډیره ښکلې هم وه د"پایتاوه" په کلي کې چې سرای خواجه ته نژدې دی کشف شوې وه او هغه د بودایي خارقه بزرګ په صفت یادوي او دویمه پارچه چې له "سنجن" څخه تر لاسه شوې یوه دناستې "پودلس اتوا" مجسمه ده.

دشیخانخیل اوخم زرګر ترمنځ دیوه غره لړۍ ده چې ډیره برخه یې سلیت کاڼی لري او ددې غره لمنې چې مخه بې دشیخانخیل په لور ده تاریخي شواهد نلري مګر هغه لمنې یې چې د"اشترګرام" او"خم زرګر" په لور دی تاریخي شواهد لري اوځای په ځای دخرابو اواستوپو بقایاوې دسړي پاملرنه رااړوي.

دبودايي معابدونو اواستوپو شواهد په څونقاطو کې ليدل کيږي، هغه نقطه چې لومړی دپام لرنې وړگرځي "رامو" نوميږي اومتصل يې دبي بي سبز په نامه يو زيارت دی، ددې ځای په پورتنيو برخو کې دخونگو دپاسه ديوې بودايي استوپې بقايا ليدل کيږي چې کولای شو هغه د (رامواستوپې) په نامه ياده کړو. دغره په لمنه کې دوه درې ځايه له کاڼي جوړې دزمري مجسمې پرتې دي چې دهغو وجود دلويو اباديو په وجود شهادت ورکوي، ځکه تر کومه ځايه چې دکاپيسا دبودايي عصر په معمارۍ مطالعه شوې ده دازمريان به معمولاً دمعبدونو دپوړيو دوه خواو ته نصب کيدل.

درامو استوپې جنوب لويديځ لوري ته نژدې ديوکيلو متر په فاصله دغره دپرخونگو دنورو استوپو شواهدليدل کيږي چې يوې ته يې بهمن استوپه او بلې ته يې تخت توپ وايي.د "توپ" کلمه بشپړه او خوبخود داستوپې پخوانۍ کلمه ده چې دافغانستان په ډيرو ځايونو کې هماغسې پاتې ده. د (تخت توپ) پورتنۍ برخه دسراج الملة والدين اميرحبيب الله خان په عصر کې هوارې شوې او دسوپې په ډول يې جوړه کړې ده، لکه څرنگه چې دپخوانۍ استوپې خرابه يې دتخت په بڼه جوړه کړې ده نوځکه يې(تخت توپ) بولي.

هغه غر چې درې د(رامو) (بهمن) او (تخت توپ) استوپې لرلې دنيمې دايرې په بڼه يې ميداني احاطه کړې ده،چې ورځ دځومعبدونو بقاياوې پکې ليدل کيږي اوخرابې يې هم يو له بلې نه برجسته دي. پدې کې شك نشته چې دوخت په تيريدو سيلابي بارانونه دغره له لمنو راښکته شوې ډيرې خاورې اوختې يې دمعبدونو په پاتې شونيوانبار کړي، همدارنگه دبنيادگر دې تيرې او پايي چې پکې کلونه کيندل شوي څلور متره دځمکې لاندې څرگنديږي او داراښيي چې ډيرو رسوياتو ډير تاريخي شواهدتر خاورو لاندې پټ کړي دي.

دبودايي عصر کې دا دود ؤ چې مذهبي معبدونه اواستوپې به يې په غرنيو برخو کې دغرونو په لمنو اولوړو برخو کې جوړولې، خو زرگر يوځل بيا دابادۍ داروش ثابت کړو. د (اشترگرام) له وجه تسميه نه څرگنديږي چې دلته نه يوازې معابد بلکه محتملاً کلي اوښار هم اباد وو، اصلاً داشترگرام غره دبگرام پهلوان غر ته ډير ورته والی لاره، لکه څرنگه چې مودپهلوان غره ترڅنگ دبگرام ښار لاره

همداراز داشترګام ترځنګ هم حتماً ښار موجود و نوم او نښان يې دتاريخ له پاڼو څخه وهل شوی خوخامخا به څيړنې اوکيندنې پدې باره کې دوباره رڼا واچوي.

په لويي او عام مفهوم دګلبهار دموقعيت په ارزښت کې شك نشته چې دځمکې په مخ دشواهدو او له مختلفو منطقو څخه دتراشلو هيکلونو دټوټو له بيابيا موندلو څخه چې هر يو يي په خپل ذات کې ارزښت لري او له پخوانيو مدني کاروانونو څخه راپاتې دي. څيړنې دخم زرګر، اشترګرام او دګلبهار په نورو ډيرو کليو کې دځمکې پر مخ اوترخاورو لاندې ډير نور ارزښتمندشواهد لري، ځکه چې نن ورځ دګلبهار دنساجي فابريکې دې منطقې ته يوځانګړی ارزښت ورکړی دی او دلته ديو وړوکي ښار په بڼه ابادیو صورت نيولی چې خامخا به په راتلونکي کې دا ابادي لاپراخوالی ومومي.

۴۱\۵\۱۲۰

# جبل السراج (دهندوکش ور)

دلومړي پنځه کلن پلان ددويم کال په نيمايي کې چې دهيواد دابادۍ له پاره ترسره کيده، ديوستر کاردااجراء خبر په ورځپاڼو کې خپور شو چې هغه دسالنګ په دره کې دموټر و سړك او هندوکش په زړه کې دهغه تونل کښنل دي چې جبل السراج او خنجان به سره وصل کړي يعنې چې دهندوکش دوه برخې شمالي او جنوبي برخې به سره وصل شي، او له نيکه مرغه چې نن دا کرښې ليکم دپروګرام مطابق دکار په اړه دشمال او جنوب دلوري دپاملرنې وړ پرمختګ شوی دی او دهغه وړاندليد له مخې چې دکارپوهانو له خوا جوړ شوی ددويم پنځه کلن پلان په نيمائي کې به داستر کار پای ته ورسيږي.

دکاپيسا (کودامن او کوهستان) دلويې جلګې دنيمه شمال او شمال غرب په نيمه دايره کې يوه مهمه او حساسه نقطه لروچې له نيمې پيړۍ راپديخوا يې دجبل السراج په نامه شهرت پيداکړی دی او تر دې دمخه په ټولوپخوانيو دورو کې دپروان په نامه يادېده.

جبل السراج ياپخواني پروان دجغرافيايي موقعيت له مخې (په لرغونووختونو کې هم خاص ارزښت لاره او اوس يې هم لري . چې داستوګنې دمنځني ځای په توګه دمنځني هندوکش دلويو څلورو لارو په حيث قرار لري، پدې معنا چې جنوب لويديځ لوري ته يې د ۵ کيلو مترو په فاصله دغور بند دره پرته ده اوشمال ختيځ لوري ته يي په همدغه فاصله په ګلبهار کې د پنجشير ددرې پيل دی چې بيا پدې دواړو درو کې دوه دتيريدنې نورې لارې دي چې يوه دشتل دره اوبله دسالنګ دره.

دشتل دره تنګه محدوده او دتيريدنې له پاره ډيره له ستونزو ډکه ده، مګر دسالنګ دره نسبتاً له دې درې څخه پراخه اوديانه له پاره مساعده ده که چيرته دشتل دره حذف کړو درې ،درې نورې به پاتې شي لکه پنجشير، سالنګ او غوربند چې دادرې واړه په لرغونو زمانوکې دعبور او مرور له پاره مساعدې وې او غوربند چې دهندوکش جنوب لوري ته دشيبر تر کوتل پورې امتداد لري په اکثرو لرغونو وسطي او نويو لارو کې شامل و او له څه مودې را پديخوا دموټر و لاره ګرځيدلې ده.

له دې لنډې شرح ورکولو وروسته که چیرته ښه پاملرنه وشي جبل السراج له خپلې ښکلا سره سره د "ګلبهار" او "متک" ترمنځ اویاد پنجشیر اوغوربند ترمنځ او یاخو هم دسال او لنګ یا سالنګ په خوله کې قرار لري اوکولی شو چې هغې ته دهندوکش جنوبي دروازه ووایو.

وایي چې تاریخ تکراریږي. ایا دابه بهتره نه وي چې ووایو ثابت جغرافیایي موقف اوموقعیت په تاریخ کې خپل نقش تکراروي؟ لکه څنګه چې اوس جبل السراج ډیر ارزښت حاصل کړی په راتلونکي کې به تر دې ډیر ازرښت تر لاسه کړي. په لرغونو وختونو کې یې هم ډیر اهمیت لاره او دااتول ارزښتونه دهغې سیمې په جغرافیایي موقعیت پورې تړلي ؤ چې دهندوکش په درو اومهمو کوتلونو لارې تیرې شوي دي او له هغې ورځې چې په دغه درو کې دشیبر ښنه لګیدلې ده جبل السراج خپل ارزښت ترلاسه کړی دی.

معمولاً مورخین دلته دیوښار څرګندونه کوي چې په ۳۲۹ ق م کال کې پخپله د سکندر مقدوني په لاس جوړ کړای شوی، داهمغه دهندوکش دپای سکندریه یا پاروپامیزاد دی، لکه څرنګه چې اسکندر په هغو ځایونو کې سکندریه جوړوله چې هلته به تردې دمخه ابادي موجوده وه، نو کله چې مقدوني سردار دښار بناکوله هلته حتماً ښه مستحکمه کلا موجوده وه چې اوس یې اثار نه څرګندیږي او نه دتاریخ په خاطره کې ځای لرلی. مګر موقف او اقلیمي موقعیت یې په یقیني توګه حکم کوي چې وړاندې؛ د سکندر دعسکرو تر رسیدلو پدې ځای کې ابادي وه لکه په هرې رود کې وړاندې د سکندر تر رسیدلو د (ارقاکانا)کلا موجوده وه همدارنګه حتماً دهیرمند په سیمه او ارغنداو کې وړاندې د سکندر تررسیدلو موښارونه او مستحکمې کلاګانې درلودلې.

جبل السراج یا پروان دهندوکش جنوبي دروازه وه او په اینده کې به هم وي، لکه څنګه چې دهوامرغان ددوبي او ژمي پر مهال دمهاجرت په وخت کې دسالنګ دلارو څخه ګټه اخلي انسانان هم له همغو او ترڅنګ لارې دپنجشیر له درې څخه استفاده کولی.

سکندر مقدوني ۲۳ پیړۍ دمخه هلته سکندریه پیل کړه او د سکندریې دجوړولو پر مهال یې روزانه دسیمې له خلکو څخه دهندوکش دلارو ګودرو په هکله معلومات ترلاسه کول. مخصوصاً دهغو ځایونو په اړه چې له اوسني جبل ا لسراج سره پیوست پراته دي.

ددې ۲۳ پیړیو په اوږدو کې یې جغرافیایي جوړښت او دلارو وضع دلر ډیر توپیر سره یوشان وه او اوس دادی تازه پدې کلونو کې چې موږ په کې ژوند کوو دسالنګ وضع شرایط اوعبور ومرور هلته په کلي ډول بدل شوی.

یو له هغومسایلو څخه چې دافغانستان په دې برخه کې دسکندر دخطو سیر په هکله تر اوسه په یقیني توګه معلومه نده همغه دسکندر په هندوکش باختر ته ورتلل اوبیرته پروان ته راتلل دي.

پدې کې شك نشته چې داندراب اوسیدونکي چې له هرې نقطې څخه یې وي دخاواك په کوتل شپه ترمنځ یعنې په دوه ورځو کې ځان ګل بهار ته رسوي. او په همدغه دوه ورځو کې یو تن کولی شي چې له اندراب څخه دخنجان په لاره دسالنګ په کوتل ځان جبل السراج ته ورسوي.

په (پادشاه نامه) کتاب کې چې دمغلي پاچا شاه جهان دپهر پیښې پکې لیکل شوې دي په قول ویلی شو چې هغه وخت چې علي مردان خان له کابل نه دبدخشان دتسخیر په قصد حرکت کاوه، هغه ته وویل شول چې دهندوکش له درو څخه ډیر عسکر نه شي تیریدای، نو ځکه هغه له لس زره سپرو سره دپروان، اهنګران، سالنګ، اودوشاخ دلارې ورتیر خنجان ته ورسیدل اندراب ته په رسیدلو له سراب او دطول (خاواك) له کوتل نه ورتیر (شپن) ته او له هغه ځایه (رخه) دپنجشیر حاکم نشیني سیمې ته راغی او له هغه ځایه ګلبهار ته ستون شو.

اګر چې دعلیمردان خان تلل او راتلل په ۱۱ هجري شمسي پیړۍ کې (۱۷ مسیحي پیړۍ) کې ترسره شوي دي مګر موږ ته ښه معلومات راکوي اوکولی شو ترنتیجې اخستلو وروسته ووایو چې په ډیر باور سکندر مقدوني هم ۲۳ پیړۍ دمخه له همدغو دوه لارو او دوه کوتلونو سالنګ او پنجشیر نه ګټه اخیستې یعنې دسالنګ پرلار تللی او دخاواك او پنجشیر پر لار ګلبهار او له هغه ځایه دپروان سکندریې ته یې مراجعت کړی دی. دامفکوره راته هغه مهال پیداشوه چې تیره اونۍ مې پروان، ګلبهار او پنجشیر ته سفر وکړ پدې سفر کې ماته ثابته شوه چې سکندر لدې دوه لارو استفاده کړې ده جبل السراج او دپروان سکندریه لکه څنګه چې ۲۳ پیړۍ دمخه دجنوبي هندوکش دروازه وه بیا دنوي سرك په خلاصیدلو ، سالنګ لوي تاریخي موقعیت بیا له سره نوی کړ.

۴۱۱۳۱۵

# دلوګر تاریخي او جغرافیایي

## موقف

کابل دجغرافیایي جوړښت له مخې په یوه غرنی نقطه کې پروت دی چې دغرونو پردو له نژدې تر ډېرو لیرو په غیږ کې نیولی، ددې تاریخي ښار په شمال اوجنوب کې دوه نسبتاً پراخې او حاصل خیزې ساحې پرتې دي چې دواړه دکابل انبار خانه شمیرل کیږي. لکه څنګه چې کاپیسا (کوهدامن او کوهستان تراوتازګی دشمیرې ډېرښت حاصل خیزې او تاریخي اثارو دبقایاوله مخې دکابل په شمال کې شهرت لري، تقریباً په همدې فاصله په مقابل سمت یعنې دپایتخت په جنوب کې یوه بله علاقه د (لوګر) په نوم لرو چې لکه دکابل دشمالي برخې په څیر زر خیزه، حاصل خیزه تراوتازه او ډېر نفوس لرونکې ده، دا دواړه سیمې چې سره ډېر ورته والی لري په عین حال کې دزراعتي تولیداتو یوتوپیر هم لري او هغه دادی چې په لومړي ځای یعنې کاپیسا په ډېره پیمانه د انګورو باغونه اومیوې تولیدوي او په مقابل کې لوګر ډېره غله لري. همدارنګه ددواړو سیمو ترمنځ درودخانو او د اوبو دمنابعو توپیر هم موجود دی پدې ترتیب چې کاپیسا ښه مست او څپاند رودونه لري چې له لوړو غرونو څخه سرچینه نیسي او په مقابل کې لوګر بیا یورود لري چې دلوګر رود په نوم یادیږي منتها ددې روداوبه ډېرې ښې ویشل کیږي او اراضي ته ښه رسیږي او په کرهڼه کې ترې ښه ګټه اخېستلای شي او دکاپیسا ردودونه په ډېرې تیزۍ سره حرکت لري لکه څومره چې باید ترې ګټه واخستل شي هومره ګټه ترې نه اخستل کیږي.

لوګر لکه دکاپیسا په څیر چې دتاریخ په اوږدو کې یې سترې دورې ترسره کړې دي منتها دکاپیسا په څېنو نقاطو کې لکه (بګرام)، (پایتاوه) (شترك) او نورو کې

دلروغون پيژندونکو له خوا کيندنی شوي او څيړنې ترسره شوي مگر په لوگر کې متاسفانه تر اوسه هيڅ ډول علمي او عملي هڅې ترسره شوي نه دي، ددې علاقې موقعيت دکابل، گرديز اوغزني ترمنځ چې دادرې واړه لوي اداري، سياسي او فرهنگي مرکزونه دي او دادرې واړه داراښيي چې داڅومره دتاريخ په ژورو کې دارزښت وړ ده.

تر اوسه مودلوگر دنوم دیادونې له پاره پرته ديوناني مصري جغرافيه ليکونکي بطليموس له يادونې چې په دويمه عيسوي پيړۍ کې تير شوی نور څه نه دي موندلي. دهغه دليکنو له مخې چې د(پاروپاميزاد) چې عبارت له کابلستان څخه وي دکابل درودخانې مرستيالانو اومختلفو ځايونو نومونه يې اخستي چې يويې (لوگرنا) ده يوتن انگريز کننگهم او نورو پوهانو همدا (لوگرنا) دشباهت او ورته والی له مخې همدا اوسنی لوگر کړی دی.

لکه څنگه چې (گر) دغره په معنا دی او (لو) د (لوی) مخفف دی نوويلای شو چې په لرغونو زمانوکې دانوم د(لوی غر) په معنا ويل شوی او ورو ورو دوخت په تيريدلو دعوامو په ژبه چې اختصار ته متمايل دی د(لوغر) او (لوگر) په بڼه منځ ته راغلی دی.

لوگر په لرغونو زمانو کې هغه سيمه وه چې هلته (اورمړی) ژبه ويل کيده چې بقايايي اوس هم په (برکي برک) کې ليدل کيږي دانوم اوداسې نور ډير نومونه چې لنډه يادونه به يې وشي ددې محتاج دی چې پرې څيړنه وشي او په (رمړي) ژبه کې مطالعه به ډيره مرسته وکړي.

په لوگر کې دبعضې ابادیو، نهرونو، کاريزونو نومونه واقعاً په ذهن کې يوه مفکوره توليدوي لکه: کاريز رسن، کاريز تشن، کاريز روشن( داوسنی ارزي درويش نوم)، کاريزخزر، پل جوگي، نهرراجان، نهر منسچ، نهر پند جوی بابوس، ده کشن، غندي کشن، پادخواب، شانه اونور.

همدغه د(برکي برک) تسميه چې همدا اوس هم يو شمير محدودې کورنۍ په اور مړي ژبه خبرې کوي عجيب نوم نه دی؟

همدارنگه د(برکي راجان) تسميه، داور مړی ژبې بقايا پرته له برکي برک نه دوزيرستان په (کاني گرام) کې هم پاتې دی.

په لوگر کې داسې نور ډير ځايونه هم شته چې اوسيدونکو يې ياخوشواهد ترلاسه کړي او يا خو ليدل شوي او يا يې درك لرلی. موسهي چې داهم يوله همغو عجيبو ومونوڅخه دی چې پدې هم نه پوهيږو چې سهي صورت يې څرنگه وليکو

هلته هم وړوکي مجسمې موندل شوي چې ختيني ججوړې او پخې شوې د اسپ او دسوار کار مجسمې په لاس راغلي دي چې يوه يادوه نمونې يي د کابل په موزيم کې موجودې دي او په لږ اختلاف يي جوړه له بګرام نه هم په لاس راغلې دی او معمولاً هغه د کوشانيانو دوروستی دورې يعنې دعيسوي ددريمې پيړۍ ته نسبت ورکولی شو.

د (پادخواب شانه) له چار چاپيره زراعتي ځمکو او باغونو څخه دغزنويانو او کوشانيانوسکې ترلاسه شوي او تر لاسه کيږي او ځينې فلزي مجسمې اوفلزي مهرونه او نورتري هم تر لاسه شوي دي، په ياده شوې سيمه کې (خم هندو) چې د (کنګار) شرق لوري ته واقع دی دخلکو دوينا له مخې ډيرې سکې پيدا کيږي او همدارنګه له نورونقاطو څخه لکه (تخت شاه) او(استي ميدان) کې تاريخي شواهد کله کله تر نظره کيږي.

پدې کې شك نشته چې سيمه ايز او فولکور داستانونه په ډير پيمانه دانومونه خپل کړي دي، همدا پادخواب شانه ډيرې مختلفې کيسې لري وائي چې اصلاً داتسميه "باد ـ خواب" و او دسهار نسيم به دلته ډير ښه چليده او دغزنويانوخواب خانه ياخوب ځای همدلته و نو پادخواب شانه اصلاً "بادخواب شاهانه" تعبير کولای شو.

يوشمير نور ددې ځای په چينو کې نورې کيسې ګوري او وائي چې ددې چينو او د "سلطاني پور" دچينو تر منځ دځمکې لاندې ارتباط موجود دی. پدې کې شك نشته چې دلوګر دپادخواب شانه او دجلال اباد دسلطان پوري چينې دکابل داهل هنود په عرف کې متبرك مقام لري اوتر اوسه هم پدې دواړو برخو کې کال په کال ستري ميلې ترسره کيږي. لنډه داچې دلوګر منطقه چې د "واغجان" له تنګي نه دالتمور تر کوتل پورې او همدارنګه له چرخ نه تر (سجاند) پورې لويه علاقه راچاپيره ده چې په اسلامي اوتر اسلام دمخه دورونو کې يي فرهنګي دورې تر سره کړي دي او هغه شواهد چې پدې ناحيه کې حد په حد ليدل کيږي دلته بايد حتماً هغې صورت ونيسي.

۱۹-۴-۴۷

# استوپه یا توپ

## په افغانستان کې د بودايي آباديو، يو ميراث

دافغانستان په اکثرو ځايونو کې مخصوصاً ددې خاورې په نيموختيزو برخو کې چې بودايي دين څه دپاسه يوزر کاله پکې رواج و، لکه دګنبدي په څير د کاڼو يو امبار چې له کاڼو او خاورو جوړ او ديو برج په څير چې په عموم ډول خارجي برخه يې له تزئيناتو خالي نده څرګنديږي لکه څرنګه چې اکثره معبدونه په لوړو او وچو ځايونو اودغرونو پرخونګو جوړيدل، همدارنګه داستوپو پاتې شونې هم په لوړو داماني برخو اودغرونو په لمنو کې وجود لري، هيڅ به دافکر ونکړي چې دبودايي دين پر مهال په زرګونو وړې او غټې استوپې دافغانستان په مختلفو برخو کې ابادې شوې وي، هرې خواته چې به کتل کيدل يوه استوپه به خامخا په نظر ورتله او ددې معبدونو او استوپو د معمارۍ او فرهنګ سبك په وروستيو وختونو خپل اثر پريښودی دی او پخپله د استوپې کلمه له منځه تللې نه ده او دتوپ په بڼه وروستيو وختونو ته هم را پاتې ده. او د کابل د محيط په ۱۰۰ کيلو مترۍ کې څو ځايه داکلمه اوريدل کيږي او د بودايي وخت په پخوانيو استوپو شهادت ورکوي

لکه (توپ دره) چې دچاریکار په مقابل کې دعمومي سرك چپ لوري ته په یوه دره پورې نښتې. چې په یوه نقطه کې یې چې ډیره ښکلې اوبرجسته نقطه ده دیوې استوپې پاتې شونې څرګندېږي چې شاید داپه افغانستان کې ترټولوستره استوپه وي،توپ درې ته کولی شو.

(استوپه دره) ووایو. په عرف او دمنطقې په دود کې "توپ" همغه استوپه ده چې له لریو ځایونو څخه ښکارېږي او دکوشاني عصرد تلپاتې کارونو څخه یې پاتې شونې څرګندېږي اوله چارچاپیر سیمې څخه یې دکوشاني عصر مسکوکات په لاس راځي هغه مربع شکل ستوپه یې ۱۵ متره لوړ والی لري او خارجي وړې استوپې یې خپله ښه بدله کړې ده او خرابې شوې دي.

دکابل په لور ښکته له بیګ توت کلي نه یایې که په دقیقه توګه ووایو دبیګ توت او چهل تن ترمنځ یوه غونډۍ ده چې "سه توپان" نومیږي لکه څنګه چې یې له نامه څخه څرګندېږي هلته درې ښکلاوې په نظر راځي چې سترګې له ورایه هلته دتاریخي پاتې شونیو تاریخي شواهد ګوري چې دلته په بودایي دوران کې درې استوپې خوا تر خوا ابادې وې او ننني دتوپ کلمه پخوانۍ داستوپې کلمه ده اوهلته سیمه ایزې ژبې دتوپ له واحدې صیغې نه دجمعې صیغه توپان جوړه کړې ده او ( سه توپان) اوسنی نوم دتاریخي حقایقو له مخې په درې استوپو موافق او شاهد دی.

دکابل شمال ته له چاریکار لږ څه لرې دګل بهار شمال شرق لوري ته دخم زرګر په علاقه کې (اشترګرام) ته نژدې دغره پرخونګه یوه نقطه ده چې "تخت توپ" نومیږي دلته هم په یوه ښکلې نقطه کې یوه استوپه موجوده وه چې دډیرې ښکلې منطقې اوښه موقعیت په مناسبت چې لاره یې شپیته کاله دمخه شاید دسراج الملة والدین په امر به هغه بدله شوي وي چې وروسته له هغې ورته "تخت توپ" وایي او دادی ګورو چې په یوه بله نقطه کې پخوانۍ استوپه دتوپ دکلمې په ښه له منځه نه ده تللې.

دوه ښکلې نور مثالونه دتوپ رستم دی چې یو په سمنګان او بل په بلخ کې مشهور دی او دواړه بودایي استوپې دي خوتوپیر یې دومره دی چې هغه توپ رستم چې ایبك سمنګان کې واقع دی تیرېږي یې تراشل شوی او کار یې ناتمام پاتې شوی دی او هغه توپ چې دبلخ دنوبهار دروازې ته نژدې واقع دی له غټو خامو خښتو څخه جوړ شوی دی او یوه بله ښکلا هم دتخت رستم په نامه موجوده ده چې تر

اوســه دهغــې دتشــخیص پــه هکلــه دیــو معبــد یــا اورتــون پــه حیــث اتفاق نظرندی حاصل شوی.

ددې لنډې شرح په رڼا کې شکونه نه پاتې کیږي چې ا ستوپې که هغه دودانیو دجوړښت دبقایا له نظره وي او که هغه دادبي خاطرو له نظره وي له منځه نه دی تللی، د غرونو په خونګو او لمنو اوشیلووکې یې بقایاوې په تیره، ښتنه کاڼو او برجستګیو کې پاتې دي. او په خاطرو او کیسو کې د "توپ" په صورت نقش دی او د عوامو قاموس ددې محلي نومونو دتاریخي خاطرو غوره ساتندویه وسیله ده.

اصلاً په هند کې استوپې د"بودا" دایرو دمحافظې او بودائي راهبانو له پاره جوړیدلې وروسته سلاطینو، شاهانو، وزیرانو اوحتی مشهورو اشخاصو دخاطرو په خاطر دا ودانۍ جوړولې او په عموم ډول به یې قیمتي نګینې، سکې مهرونه او نور په همدغو استوپو کې ښښول لکه چې یوه ورانه شوې استوپه په همدغه غرض ولټول شوه او له لدې پرته دانګریزانو دلومړي او دویم یرغل پر مهال په کابل، ډرونته بګرام، او بامیان کې وپلټل شوې او ډیر څیزونه یې دلندن برتش موزیم ته یوړل، دودانۍ په بڼه استوپې په افغانستان کې له تاثیراتو تشې ندی او اکثر ضخیم برجونه چې زموږ دکلاګانو په کنجونو کې لیدل کیږي تر ډیرې اندازې پخوانۍ استوپې را یاد وي.

۴۷\۱۱\۳۰

# توپ دره

څه موده دمخه په جرايدو اوورځپاڼو کې خبر خپور شو چې کابل موزيم په نظر کې لري چې ديونسکو ديوتن راليږل شوي مهندس په لارښوونه دکابل دنژدې سيمو دځينو تاريخي ابادۍ مرمت کاري وکړي او په همدې تازه ورځو کې دتوپ درې دابادۍ مرمت هم پيل شوی دی.

پدې کې شك نشته چې په کابل او دکابل په لرې اونژدې چاپيريال کې يو لړ مذهبي تاريخي ابادۍ داسلامي اوبودايي دورو وجود لري چې مرمت او بيا جوړونه يې داثارو حفظ اوساتنه يې دافغانستان دهنري او تاريخي اثارو له مخې ډيرارزښت لري.داکار نه يواځې زموږ پخوانۍ مذهبي ودانۍ له نړيدلو څخه ساتي لاچې دسياحانو له پاره هم دډيرې پاملرنې وړ دی. ځکه چې دخارجي سياحينو په نظر کې پرته له طبيعي مناظرو څخه دويم ارزښتمند څيز مذهبي تاريخي ودانۍ دی چې له نيکه مرغه افغانستان تر اوسه خپل پخواني ټول اثار په خپلو ځايوحفظ او ساتلي دي. مقصد دتوپ درې له مذهبي آبده څخه څه شی دی؟ او توپ دره په کوم ځای کې واقع ده؟ دادی ددې پوښتنو ځواب ته راځو :

دلومړۍ پوښتنې ځواب بايد سملاسي ووايو چې دابده مقصد له بودائي استوپې څخه دی.

استوپه ياتوپ چې دپخوانۍ بودائي دورې خاص اوعام نوم دی چې په کابل او دکابل په چارچاپير سيمو کې زموږ تر وخته شکل او اصلي مفهوم ساتلی دی هغه (استوپه) ده.

په عموم ډول بودايي معبدونه په دوه برخو ويشل شوي چې يوته يې سنگهارمه يامعابد او بل ته به يې استوپه ويل او په بودائي عصر کې له دويمې م ز پيرۍ نه

تر ۹ زیږدې پیړۍ پورې د ۱۱ پیړیو په اوږدو کې په نیمه شرقي افغانستان کې له (بلخ نه تر کندهار دختیځ په لور) رواج درلود پرته له مبالغې څو سوه وړې او غټې استوپې ودانې شوې دي اود کابل دښار په منځ کې دشیردروازې او آسه مایي غرونو پرخونګولسګونې استوپې وې.

په اساسي توګه هر یو معبد کم ترکمه یوه استوپه درلوده او ډیروختونه دیو معبد چارچاپیره ډیرې ورې اولویي استوپې هم جوړیدې. استوپې به اکثراً له منځ نه ډکې اودباندې به دګنبدې په ډول جوړیده. په لومړي وخت کې به یې دهند په بنارس کې داستوپې دننه دبودا الماس ایښوده اوبیا وروسته به یې دراهبانوالماس اونور قیمتي څیزونه په ځانګړي صندوقچه کې اچول اود استوپې دننه به یې ایښودل له پورتني شرح نه څرګندیږي چې توپ دره اصلاً استوپه دره وه د (س) حرف په اسانۍ سره حذف شوی او اوس دتوپ په بڼه پاتې دی او دکوهدامن او کوهستان خلکو لکه دافغانستان دنورو برخو په څېر ددې پخوانی مفهوم په سهي توګه ساتلی دی.

توپ دره دخواجه سیاران اوسنجد درې په منځ کښې دپغمان دغره په کوزنۍ برخه کې دچاریکار ترځنګ پرته ده اودکلي کورونه یې له دوه ګاونډیو کلیو او چاریکار نه په وضاحت سره معلومیږي یو کیلو متر دچاریکار دبازار له پیل څخه یوه لاره چپ لوري ته دتوپ درې په لور تللې ده چې کیدای شي دجیپ په واسطه یو کیلو متر فاصله طی کړای شي. اووروسته بیا دکلي ترځنګ کله چې له غونډۍ ور واوړئ او پلي تر توپ پورې ورسئ.

دمخه ددرې ترخولې په دامان کې په تیټ توګه ښې جلګې موجودې دي چې لویه یې تر یوې نیمې پیړۍ دمخه دتپه رستم په نامه یادیده.

دمخه مې اشاره وکړه چې دتوپ کلمه دافغانستان په ډیرو برخو کې داستوپې په معنا اومحفوظه پاتې ده دمثال په توګه له (توپ رستم) څخه په ایبك (سمنګان) او له (توپ رستم) د بلخ په ښار دنوبنهار ددروازې جنوب لوري ته یادولی شو.

دادواړه توپونه که هغه په ایبك کې دی او که په بلخ کې له نیکه مرغه دلویو توپو له جملې څخه دی چې تر اوسه پاتې دی همدارنګه دچکرې دمنار (بودایي کابل) اوخورد کابل ترمنځ ددرې استوپو بقایاوې موجودې دي چې سه توپان ورته وایي، البته داخه دتعجب ځای نه دی چې په اسلامي دوره کې یې اکثر کلاګانو او استوپوته دکابل اوزابل درستم پهلوان شهرت ورکړی دی.

په توپ دره کې لکه چې مو وویل نه یواځې غونډۍ درستم په نامه شهرت لري بلکې هلته یوقبر هم وچې هغه ته به یې درستم دزوی قبر وایه.

په هر حال لدې لنډې شرح نه څرګندیږي چې دتوپ درې آبده همغه استوپه ده چې ددرې په منځنۍ برخه کې دکلیو په منځ کې لیدل کیږي اوخلك دپخوانیو خاطرو په یاد لرلو هغې ټولې درې ته توپ دره وایي.

لکه څنګه چې مې دمخه شرح ورکړه پرته له مبالغې په کابل او دکابل په اطراف کې له پغمان څخه تر شیوکیو کمري، چکړي اوخورد کابل پورې اوهمداراز دکاپیسا په حوزه کې که هغه په بګرام کې دی او که دپهلوان غره چارچاپیره اوکه دخواجه سیاران په لاره کې، سنجد دره استدغچ،استالف، ګل دره اوشکر دره ،ونوروکې اوڅه په ګلبهار او اشترګام اوریزه کوهستان کې مو په سلګونو استوپې درلودې چې زیاتره بیخي له منځه تللي دي مګر په دوه ځایونو په چکړي منار اوتوپ دره کې استوپې په ښه ډول حفظ او ساتل شوي دي. توپ دره دکابل په چارچاپیرونقاطو کې داستوپو د پاتې شونیو له نقطه نظره ډیر ارزښت لري ځکه چې هم ترټولو استوپو لویه ده او هم تر ټولو ښه ساتل شوې ده او له نیکه مرغه کابل د چاریکار لویې لارې ته نژدې واقع دی اوسیلانیان کولای شي په اسانۍ سره ترې لیدنه وکړي.

دغه استو په نژدې ۱۵ متره لوړوالی لري او ددایرې محیط یې نژدې څلویښت متره دی او په ملا کې یې لکه دکمربنددوه حلقې لیدل کیږي اوپلستر کاري یې په ښه توګه محافظه شوې ده.

دالویه استوپه له ډیرولریو ځایونو څخه لکه له بګرام څخه هم ښکاري او ددوربین په واسطه یې دچاریکاروله عمومي سرك څخه دجوړښت ټول جزئیات څرګندیږي،دغه استوپه دلویو کوشانیانو دتلپاتې ودانیو یادګاردی او که په دقیقه توګه ووایو نو دامپراطور کنیشکا دسلطنت یعنې ددویمې مسیحي پیړۍ تر نیمائي پورې اړوند.و.

هیله لرو چې ددې لویې مهمې تاریخي ابادۍ مرمت چې دکوشاني عصر دمعمارۍ نمونه ده داسې په دقت مرمت شي چې پخوانیو ښیګڼو ته یې تاوان ونه رسیږي.

۴۱-۳-۳

# بامیان دسیاحت او نړۍ

# ګرځېدنې له نظره

لکه څنګه چې دعجائباتو په نړۍ کې اووه خارقه ځیزونه شهرت لري زموږ په هیواد افغانستان کې چې تاریخي هنري شهکارونه یې په هر کنج اوکتار کې لیدل کیږي لکه (۱) بامیان (۲) بند امیر (۳) منار جام (۴) دایبک استوپه) (۵) تاق بست (۶) دخواجه محمدپارسادمسجد رواق (۷) اوګازرګاه شریف).

بامیان چې هغه مو په افغانستان کې په لومړۍ درجه دعجایبو په قطار کې راوړی، ډیره ښکلې او زړه راښکونکې دره ده چې هنري او طبعي ښکلایې سره یوځای شوې ،هنري اعجاز یې منځ ته راوړی او دابنکلې دره یې په نړۍ کې مشهوره کړې ده،بامیان یې له لریواونژدې نقاطو سره لکه:

شهر غلغله، شهر ضحاک، شهر سرخشک، اثر دهای سرخ در، فولادي درې، ککرک، کالو، سوماره ،آهنګران، آغرابات، داهغه برخې دي چې طبیعت پکې ټولې ښکلاوې راټولې کړي دي اوهنري بدیع یې پرې ورزیات کړی دی او همدارنګه ښکلې خاطرې یې پر هره پاڼه ورزیاتې شوې دي او بیا ترې یوهنري قدرتي کتاب منځ ته راغلی دی چې هره پاڼه یې دهندوکش او بابا دغره له سپینو واورو ډکه او ښکلې ده.

هغه لویې مجسمې چې دنړۍ تر ټولو لوی مجسمې شمیرل شوي دي اواقونه اومعبدونه چې دسمڅو په ډول په غرونو کې کیندل شوي دي دبامیان دديوال نظیفه او رنګه نقاشي چې دهندوکش په زړه کې دیونګارستان په څېر منځ ته راغلي چې دټولو ورپیښنو شویو روزګانو سره سره دلیدونکیو دکتنې وړ دی بامیان دهند او

چین تر منځ دتلو راتلو لویه لار وه چې په همدې سیمه به ددې دوه برخو ترمنځ ستره لاره تیره او دهندوکش په غرو رغو کې به تیریدل.

بامیان ترتاریخ دمخه دورو کې دهندوکش دښکاریانو مرکز ؤ چې چهل ستون ستره نغاره ددې دعوې ډیر ښه ثبوت دی خو بیا دبودائي دین په خپریدلو سره مخصوصاً دکنیشکا او هوویشکا لویو کوشانیانوپه دوره کې چې (د دویمې میلادي له دویمې نیمائي څخه تر دریمې میلادي پیړۍ پورې ) دې درې بل ارزښت خپل کړ او څخه دپاسه ۸ پیړۍ په منځنۍ اسیا کې دبودایي دین یو پرتمین مرکز پاتې شو. بامیان دمملکت دارۍ له مخې هم ښه سوابق لري که هغه له اسلام نه دمخه دی اوکه وروسته دغوري په وخت کې دافغانستان دقلمرو ؤ تاریخ ؤ چې کله کله یې شمال لوري ته تخارستان او دهندوکش جنوب لوري ته کابلستان هم پکې راتلل.

پدې څو کالو کې چې افغانستان ته سیلانیان راغلي او شمېره یې هم ورځ تر ورځې په ډیریدو ده نو ډیره شمېر یې بامیانو ته راغلي دي. او ددې وجه څرګنده ده وجه یې همغه دبامیانو ۵۳ او ۳۵ متره بودا مجسمې دي چې تقریباً ۴۰۰ قدمه یوله بله لرې واقع دي او دغره په کمر کې یې مجسمې کندل شوي او دبدن غتې برخې یې له صدمونه په امان پاتې دی.

بامیان له کابل نه ۲۴۵ کیلو متره فاصله لري چې په هرډول موټر کې کولای شو په ۷ ساعتو کې دالاره ووهو.

بامیان پرته له دوه سترو مجسمو او یو شمیر معبدونو څخه نور هم په زړه پورې دلیدلو ځیزونه لري چې سیلانیانوته ډیر په زړه پورې دي او هغه په هغه سیمه تاریخي محاسن طبیعي مناظر او یو شمیر نورو ته دخالدارو ماهیانو ښکار ډیر په زړه پورې دی.

پرته له لویو مجسمو څخه چې یادونه مو وکړه یوه بله مجسمه هم دلس مترو په لوړوالي دککرک په دره کې وجود لري او دککرک دره دبامیان جنوب ختیځ لورته پرته ده او هغه سرک چې نوی جوړ کړای شوی ، دهوټل له مخې د بابا دغره شاته هغې منطقې ته نژدې کیږي.

ددې درې نور تاریخي اثار دضحاک ښاراوشهر غلغله دی چې په ډیره پیمانه دغوري دورې خاطرې ، خوارزمشاهي او دچنګیز دخرابیوډیرې خاطرې لري او پدې دریو دورونو پورې یې خاطرې تعلق نیسي دچنګیز لمسی دضحاک په ښار

کې دجلال الدین منکبرني دعسکرو دلاسه ووژل شواوشهر غلغله دمقاومت کولو په وجه دچنګیز دلاسه وسوځول شو. او هیڅ شی یې ژوندی پرې نه ښود.
هغه ځایونه چې د بامیانو په لرې اونږدې برخو کې پراته دي او سیلانیانو ته دیر په زړه پورې دی هغه بند امیر دی چې په ۸۰ کیلو متری کې واقع دی او نور وړوکي رودونه دي چې فوکلوري کیسې لري او هر لیدونکي ته په زړه پورې اودلچسپ دی.دفولادي دره دلویومجسمو جنوب لویدیځ لوري ته واقع ده چې لوړه څوکه یې (شاه فولادي) نومیږي اونوی سرك چې ۱۲ کیلو متره اوږدوالی لري ددې درې کوزنۍ برخې ته رسیږي چې هلته یو حوض هم دی.
روانې اوبه ، مستې ویالې، ښکلي کلي، واړه واړه ښکلي باغونه، له واورو ډکو غرونو په لمنو کې چېنې پرې شوې څوکې داټول هر یوپه خپل ځای یوه ځانګړې ښکلا لري.
همدارنګه دککرك دره او په ځانګړي توګه کوزنۍ برخه یې برخې (دوکاني) پورې ډیرې ښکلې زړه راښکونکې منظرې لري چې بیا هم دبابا په غره پورې نښلي.
دضحاك دښار په پای کې یوه بله دره د بابا دغره له خواسره وړاندې تللی چې د (کالو) په نامه یادیږي اوعجیب طبقات الارضي تشکیلات لري چې دلیدنې وړدي.
همدارنګه د (سوماره) او (آهنګران) درې چې دبامیانو په لویه لاز واقع دي هر یو ځانته ځانګړې ښکلا لري او پرته له طبیعي محاسنو څخه خالدار ماهي هم لري او هغه ځوك چې دماهیانو دښکار علاقمند وي هغوی ترینه ډیر خوند اخلي.
بامیان دتاریخي اثارو او طبیعي ښکلا په لرلود نړۍ دسیلانیانو په منځ کې ډیر شهرت لري ځکه چې هر سیلاني هلته تللی دی په ډیر شوق یې بیرته مراجعه کړې ده او نه هیریدونکې خاطرې یې له ځانه سره راوړي دي او په حافظه کې یې حفظ کړي دي.

۲۰-۳-۳۷

# صلصال وشاه مامه

پدې وروستيو کې هر چا دباميانو نوم لږ ډېر اوريدلى دى او پدې وروستيو کې دنړۍ ډېر سيلانيان هلته ليدلو ته ورځي. باميان دسيلانيانو له پاره ډېر بهترين ځاى دى اونژدې ۹۰ فيصده سيلانيان هلته ور روان دي.

شايد هر هغه چاچې باميان ليدلي او يا دهغه ځاى په اړه يې څه مطالعه کړې وي اويا يې له نامه او اثارو سره اشنايي ولري درك کولای شي چې دهغه ځاى دټول بنايست اوښکلا سره سره هغه څه چې دسيلانيانو پاملرنه جلبوي هغه ددوه مجسمو موجوديت دى چې يوه يې ۵۳ متره او بله يې ۳۵ متره لوړوالى لري.

دادوه لوى ولاړ هيکلونه او نور غټ او واړه ناستې مجسمې معمولاً دباميانو په بتانو شهرت لري او داسې څوك به نه وي چې ددې لويو مجسمو په ليدلو سره حيران نشي.

دباميان ۵۳ متري هيکل دنړۍ لوى ترينه مجسمه ده او ددې وړ ده چې ددنيا په عجايب سبعه و کې وشميرل شي، هغه کسان چې دامجسمې گوري نوخامخا يې يوشمير پوښتنې په ذهن کې گرځي او دهغو په اړه يې دنوم هويت نوم اونښان په باره کې ورته پوښتنې پيدا کيږي.

مهمې پوښتنې دادي چې دامجسمې څه نوميدلې؟ پدې کې خو هيڅ شك نشته چې دبودايي دين دپلويانو پر نظر دامجسمې صرف دبودا دمجسمې تمثيل دى. چې په فوق العاده لويه اندازه له طبيعي انسان څخه ستر(دانسان له قده سترې)دغره په زړه کې کيندل شوي اوتراشل شوي دي.

ددې مجسمو بدن له اوړو څخه دپښو تر بندونو پورې په قبايا راهبي شوقه باندې پوښل شوی وُ اودهغې قاتونه او ضمونه ډير ښه څرګندېږي دادواړه قباوې رنګه وې او تر اوسه په اسانۍ سره تشخيص کيږي ځ ۵۳ مترو قبا اصلاً سور رنګ لري او د ۳۵ مترو قبا شين ياداوبو په څير رنګ

ددې دواړو قباګانو رنګونه په هغه مهال چې مسلمانان دلومړي ځل دپاره دباميان درې ته ننوتل ډير تاثير پرې کړی وُ او دا دواړه بتان يې دهغو درنګونو له مخې په (سره بت) او (خنك بت) په نومونو ياد کړل ديوشمير تاريخي او ادبي متون داشارو پراساس ثابت دي چې دا دواړه صفتونه په ۴ مه او ۵ مه پيړۍ کې او تر دې وروسته يې رواج وموند او تر ټولو دامهمه ده چې دسلطان محمود غزنوي ددربار ملك الشعرا امير عنصري دسره بت او خنك بت په باره کې قصيده جوړه کړې وه چې متاسفانه له منځ تللې ده او يو بيت نيم هم ترې پاتې نه دی ددې قصيدې کشف يو له مهمو تاريخي او ادبي کشفياتو څخه دی چې هر کله تر لاسه ... نوزمونږدتاريخ په يوه پاڼه به ډيره رڼا واچوي.

(سره بت) همغه ۵۳ متر بت او(خنك بت) ۳۵ متر مجسمه وه داټکي دکتلو وړ دي چې ددې دواړو بُتانو قباګانې په اوومه مسيحي پيړۍ يعنې (لومړي هجري پيړۍ) کې چيني ليدونکي هيوان تسنګ هم تير ويستي وُ. هغه فکر کړی وُ چې دمجسمو بدن له چودن څخه ټوټې ټوټې ريخت شوی او بيا سره يوځای شوی مجسمه ترې جوړه شوې، خوداچې موږ پوهيږو چې دامفکوره په قطعي توګه غلطه وه او له فلز څخه دمجسمو په جوړولو کې بلکل کار اخستل شوی نه و.

او ټول بدن يې دهمغه غره په دانه داره تيږه کې تراشل شوی او دقباګانو قات يا لوړې ژورې د پلستر او رسۍ په ذريعه لوړې ژورې شوي دي او په مخ يې ورته سور او شين رنګ وهلی وُ او همدغه رنګ مسلمان دې ته اړ ويستل چې يو ته (سور بت) او بل ته (خنك بُت) يعني سين بت ووايي.

کولای شو دې مجسمو ته دباميانو په کيسو او اسطورو کې دوه نور نومونه هم پيدا کړو: يو (صلصال) او بل (شامامه) دباميانو په سيمه ايز دود کې صلصال د۵۳ متر بت نوم و شامامه د ۳۵ متر ... ت نوم وُ دصلصال دکلمې لغوي مفهوم ګل او خاورې دی دباميانو سيمه ايز ... خپل ساده فکر کې صلصال دنر له پاره او شاه مامه د ښځې له پاره تصور کا ... او کوي يې او داهم فکر کوي چې يو يې شاه او بل يې ملکه وه پدې معنا چې دا يوه جوړه شاه او ملکه دي. دتاريخ څيړنو او لرغون پيژندنې په رڼا کې څرګندولی شو چې دافکر ونه ټول له حقيقت نه لرې دي

او دا دواړه مجسمې دبودا دي، خوبايد وويل شي چې دفولکلور مطالعه او دعوامو فرهنګ ډېر په زړه پورې دی مخصوصاً په تاريخي مسايلو کې ورته ډېر ارزښت ورکول کيږي او سيمه ايزې کيسې اوريدل ډيرې دلچسپې او اموزنده دي.

دشاه مامه دکلمې په ترکيبي جوړښت کې دوه کلمې څرګندې دي يو (شاه) او بل (مامه) چې دا دواړه دپنجشېريانو په لهجه کې ورګډې دي او مور ته يې اطلاق کيږي. همدارنګه دشهبانو هم توجيه کيدی شي.

لکه څنګه چې مو دمخه وويل چې عوام دا دواړه بتان ښځه، ميړه او همدارنګه شاه او ملکه بولي همداراز درې وړې مجسمې دلويو مجسمو په طاقونو کې په ناسته تراشل شوي دهغو دوه و ماشومان بولي او هغوی (نقصاني) بولي، په همدې ترتيب دباميانو سيمه ايز خلك هغه ټول غټ او واړه بتان چې دځلور سوه قدمونوپه ليرې والی تراشل شوی دی يوې کورنۍ ته منسوب بولي چې عبارت له پلار ، مور او ماشومانوڅخه دي.

دباميانو ۳۵ متري بت دځيرنو له مخې داسې څرګندوي چې له ۵۳ متري بت څخه ډېر ه لرغونتيا لري او ۵۳ متري بت په ۴مه يا ۵مه عيسوي پيړۍ کې جوړ کړای شوی دی او په همدې ۵۳ متري مجسمو کې تناسب ډېر په نظر کې نيول شوی دی او دادګويتا دمدرسې له دخالت نه بې تاثيره ندی.

وايي چې دباميانو دلويې مجسمې وړې نمونې دتجارانو په کاروانونو دوربينم په لاره کې دچين او جاپان ترخاورو پورې دلارې په اوږدو کې انتشار موندلی وی.

۵_۳_۴۱

# دسرخ در اژدها

دبامیان لـه عجیبو ځیزونـو څخـه چـې دداسـتان، کیسـې، تـاریخ، فولکلـور، عامیانـه کیسـو، طبیعـي تشـکیلاتو طبقـات الارضـي لـه نظـره دپـاملرنې وړ دی هغه(اژدها)دی‌چې دبامیان په یوه فرعي دره کې(سرخ در) نومیږي قرار لري.

سرخ در دبامیان جنوب لویدیځ لوري ته دخاورینو غونډیو په منځ کې واقع دی چې دبامیان دګڼو ځایونو په څیر یې خاوره سور رنـګ لـري او پـه عامـه تـوګه داوبـو نلرلو په وجه دکرهنې وړ نده. دطبقات الارض کوایف څرګندوي چـې تربنـد امـیر اویکـاولنګ اوحتـی تـر ده زنـګي پـورې اوږدوالـی لـري چـې پـوښل شـوی داهغـه سرچینې دي چې اوبه یې ډیر اهکي موادلري. په بل عبارت دخاورې هغه طبقه چې دځمکې سطحي قشر تـه نژدې ده ډیر اهکي مـواد لـري اودسرچینـو پـه اوبـو کـې نوموړي مواد په ډیره اندازه تحلیل شوي دي. لکه څنګه چې هماغـه شـان دسـرخ در دتشکلاتو په څیر دلارې په اوږدوکې په مختلفو برخو کې لکه بندامیر، یکـاولنګ اوده زنګي کې مشاهده کیږي. هغه څه چې دسیمې په عرف کې په اژدهـاي سـرخ مشهور شو یوطبقات الارض تشکل دی چې شاید څو میلیونه کاله دمخه دسرچینې دبنعان په وجه یې تشکل پیل شوی‌وي چې لا تراوسه هم ادامه لري.

اژدهای سرخ نن ورځ د ۴۰۰ قدمونو په شاوخوا کې اوږدوالی لري چې له لکـۍ نه تر سره پورې په اژدها کې یو ژور شق لیدل کیږي اوله هغه ځایـه چـې داداژدهـا

دسر تصور کوي تر اوسه يو څه مخلوط معدني مواد چې له اوبو سره يوځای دسور او جيګري رنګ په لړلو جريان لري او دڅو دقيقو په موده کې سوړ اومنجمد شي او شيکي يې لکه دمار يا دماهي دشا په څير تشکيل شوی، حد په حد داوبو سوري نژدې يومتر جګوالی تشکيلوي او همدارنګه په شاکې يې شق شوي ځای کې داوبو دسړيدلو او موادو دورتللو په وجه ديو حوض بڼه خپله کړې ده چې واقعاً هېښنده ده. ميليون کاله دمخه سور اژدها محض په چينه کې وې داوبو له دريمې جريان سره اويايې داهکي موادو په سريزې سره له لومړۍ نقطې څخه بې ځايه شوي او به دزمانې په مرور سره له خپل اصلي ځايه ۴۰۰ قدمه لرې شوي دي. داوبو حرکت او داهکي موادو ددريجي سرېښت په وجه دوه خواوو ته يې اوږدې غونډۍ تولید کړي دي چې سراسر يې شاشق يا دوه ځايه ليدل کيږي.

ماچې ترکومه د(اذان چينه) په غور ليدلې نه وه نو تر هغې داژدهای سرخ د دطبقات الارض په موضوع ښه نه پوهيدم.

په غور کې چينه ده چې د(اذان په چينه) مشهوره ده چې له اهکي موادو سره ګډې اوبه لري ددې چينې اوبو د۶ يا۷ مترو په اوږدوالی يو مار تشکيل کړی دی. کله چې دامعدني اوبه سړې اومنجمدې کيږي دمنځني خط ترځنګ په جريان کې يوه برجستګي لکه دمار په څير کږه وږه تشکيلوي او دجريان خط يې ژور پاتې شوی دی او يوه ژوره توليدوي چې داژدها سرخ په شاوه نظر داوبو په ظرفيت ډيره ژوره ليدل کيږي.

اژدها سرخ لکه داوبښ په څير له اسلام نه مخکې هم دسيمې دخلکو دکيسې او داستانونه تشکيل کړې دي ، هغه څوك چې دباميانو دبتانو له تاريخي دورو څخه اطلاع لري پوهيږي چې پرته له دوو مجسمو څخه چې يوه ۳۵ متره اوبله ۵۳ متره ده يوه بله مجسمه هم وه چې اوږدوالی يې يوزر قدمه و هم وجود لاره چې دخوب په بڼه پروت و لکه چې بودا يې په (نيروانا) يعنې قبر کې ځرګنداوه.

کله چې چينايي ليدونکی هيوان تسنګ داوومې پيړۍ په لومړي نيمايي کې له باميانو تيريده لدې اوږد پروت بت څخه يې يادونه کړې ده او ويلي يې دي چې دابت دباميانو دوه مشهورو بتانو ته نژدې واقع دی.

او وروسته ترهغې ددې ۳۰ کالو په اوږدو کې پوهان ددې بت دموقعيت اومحل په اړه ډير پلټنه کې دي او دځای په هکله يې اټکل کاو او کوي يې.

تر کومه ځايه چې مې دافسانو او تصوراتو په روح کې فکر کړی دی ګمان کوم چې دطبيعي جوړ( اژدهای سرخ) تشکل او داوږد پروت بت چې يوزر قدمه وه

ترمنځ ارتباط موجود دی. او داچې یووخت بودائیانو دبامیانو دره د(بودایي خوابیده) دره یا دوله داسلامي دورو په داستانونو کې د (اژدها) په بڼه منځ ته راغلی او نوي تصوري زیب او زینت یې موندلی دبوداداوړود پروت بت ترڅنګ په ۸ مسیحي پیړۍ کې یو معبد وجود لاره چې په کال کې یوځل هلته لویه میله ترسره کیده او اوس داژدهاترڅنګ یوه ګنبده وجودلري چې دسیمې خلك خپل نذرونه هلته پخوي. تر اوسه دیو شمېر غرنیو غرځو ښکرونه هم داژدها پر بدن موجوددي چې ګمان کوم دعرف اوعاداتو له مخې له ډیرو پخوانیو زمانو څخه تر اوسه له منځه ندي تللي.

خلك دتاریخ په دوه مختلفو دورو کې په یوځیز کې ګډون چې هغه عبارت دتصور، تخیل، داستان او اسطوروڅخه دی، دمعدني چیني اهکلي اوبه چې دوخت په تیریدو سره راوتلې اومیلیون کاله کیږي دتکمل په لور ده اوبلاخره یې دبودا په بڼه اوړده مجسمه جوړه کړې ده او پدې دورو کې په اژدها مشهوره شوې او لیدنه یې له مختلفو نقطو نظریو څخه ډیره په زړه پورې ده او دبامیان له عجایبو څخه یوه هم همدا مجسمه‌ده.

۸_۳_۳۸

# دباميانو زمريان يا

# شاه شكاري

له اسلام نه دمخه په لرغونو زمانوکې په ځانګړي توګه له دريمې زېږدې پېړۍ راوروسته چې په افغانستان کې دکوشاني دامپراطورۍ اساس ددوو قدرتونوپه رامنځ ته کيدلو چې يو يې ساساني په لويديځ کې ( په ايران کې) اوبل په ختيځ کې عربي ترکان ( په مرکزي اسيا کې) مخ په سقوط شول په افغانستان کې يوه دملوك الطوايفي دوره منځ ته راغله چې داسلام تر راتللو پورې يې په مختلفو عناوينو دوام وکړ او ديو شمير مقتدرو دولتونو دهندوکش شمال او جنوب کې په درو او سيمو کې وجود لاره چې دهغوی دهر يونوم اونښان دنفوذ ساحه دافغانستان په پخواني تاريخ کې ځانته بحث او په زړه پورې مطالعه غواړي.

هغه څه چې دملوك الطوايفي دورې ته يې تر يو حده په ذهنونو اوتاريخي ماخذونو کې شخصيت ورکړی دادهغوی عناوين او القاب دي چې انعکاس يې په لومړۍ هجري پيړۍ کې دعربو مورخينو اوجغرافيه نګارانو څخه اورو، پرته لدې چې په جزئياتو کې ورداخل شو ويلای شو چې دافغانستان مختلفو نقاطو واکمنو مختلف القاب اوعناوين درلودل.

مثلاً دکابل واکمنو لقب (کابل خدا) دزابل واکمن يعنې دغزني اوکندهار ترمنځ (زابل خدا) دباميان دواکمنو لقب ( شير باميان) او دغرجستان يعني دميمنې

دعلاقې له وړوکو درو اودهري رود ددرې دپاى تر برخو پورې دواکمنولقب (شارغرجستان) له داډوله عناوينو او القابو څخه ډير ؤ چې دلته دتولو يادونه خبره ډيره اوږدوي ،ددوه لومړيو لقبونوپه باره کې يعنې (کابل خدا) او (زابل خدا) همدومره يادونه کوم چې دخداى کلمه چې اوس دپاك پروردګار پر لوى ذات اطلاق کيږي. په هغه وختونو کې له اسلام څخه دمخه يې ځانګړې معنا درلوده او د "شاه" يا "پادشاه" په معنا وه لکه "شاه نامه" چې مختلف، ډولونه يې درلودل په پهلوي لهجه کې د (خناى نامه) په صورت يا (خداى نامه) په بڼه يادوي نو پدې بنا (کابل خدا) او (زابل خدا) په (کابل شاه ) او (زابل شاه) تعبيرکولاى شو.

پدې ترتيب سره دباميانو سيمه ايز واکمن تر اسلام دمخه عبارت ؤ له "شير" او دباميانو له شيرانو څخه چې عربي ماخذونو يې يادونه کړې ده عبارت ؤ په سيمه ايز واکمنې کورنۍ پانسل څخه په بودايي دوره کې، چې مرکز او پايتخت يې باميان ؤ او دلرغون پيژندنې څيړنو څرګنده کړې ده چې (شهر شاهي باميان) يا دباميان پايتخت په بودايي دوروکې په دره فولادي کې چې دباميان په جنوب غربي زاويه کې واقع دى موجود و. سيلانيان او هغه کسان چې باميانو ته ورځي او يا ورغلي دي ددره فولادي له پيل نه تر دوه درې کيلو مترو پورې يې په سلګونو بلکې په زرګونو سمڅې ليدلي دي او ليدلى شي چې په مختلفو ارتفاعاتو کې دتيږو په منځ کې ليدل کيږي. اوداثابتوي چې دلته يوګڼ شمير کسان اوسيدل او واقعاً ديووړوکي ښار حيثيت يې خپل کړى ؤ.

دکابل دموزيم دباميانو په ځانګړي خونه کې درنګه تصويرونو په ډله کې چې ديو ښکلې اونفيسې اوقيمتي بودايي کلکسون دى ديوپادشاه رنګه تصوير وجودلرى چې پروفيسر هاکن په افغانستان کې دفرانسې فقيد پخوانى دلرغون پيژندنې دهيئت مدير چې دباميانو په دره ککرك کې دبودايي تصاويرو کاشف ؤ نوموړى پاچايي د شکاري پاچا په حيث ياد کړى دى.

داتصوير واقعاً دکابل دموزيم يونفيس او قميدار تصوير دى که دهغه تصوير ارزښت درسامۍ او هنر له نظره هر څه وي خو دتاريخ له نظره ډير ارزښت لري، ځکه چې فعلاً داتصوير يواځينى تصوير دى چې داسلام نه مخکې دساسانيانو او بودايي دورې په باميانو کې لومړى تصوير دى چې زموږ لاسوته رارسيدلى دى.

شاه لکه ۴_۵ عيسوي پيړۍ په څير نسبتاً تنګې اوله تن سره نښتې جامې اغوستلې ،دارنګه جامې چې ساسانيانو دودکړي تر ۷ عيسوي پيړۍ يعنې داسلام ددين تر ظهور پورې دودوې او دپاچا اوملکې مجسمه چې له فندقستانه ( په

غوربند دره کې سیاه گرد ته نژدې ) تر لاسه شوې او فعلاً دکابل په موزیم کې محفوظه ده دارنګه تنګې او په تن نښتې جامې یې تر اوومې عیسوي پیړۍ پورې دخسرو اونوشیروان ساساني تروخته څرګندیږي، ګلوبند ، کمربند او له مروارید نه ډك امیل ددې عصر رواج اودود و.

هغه څه چې تر هر څه مهم اودپاملرنې وړ دی هغه دپاچا دتاج شکل او بڼه ده چې مرکب ددرې (هلال) او درې (کره) حلقې څخه دی او دپروفیسر هاك دهغوڅیړنو له مخې چې ددې دورې په سکو یې تر سره کړی دي، دې نتیجه ته رسیدلی دی چې درې (هلاله) او درې (کرې) په مختص ډول دبامیان او غزني دواکمنوپه تاج کې وو.

پاچا په داسې حال کې لیدل کیږي چې لیندۍ یې له خپلې سینې سره جوخته په دواړو لاسونو نیولې ده او په چپ خوا اوږه باندې یې د دو مرغاویو غاړې او ککرۍ څرګندیږي.متصل دښي خوا زنګون سره یې دوه غشي او دښکاري سپي نیمه تنه څرګندیږي. غشی، لیندۍ، مرغاوۍ، او ښکاري سپی ټول سره یوځای شوي دي او پاچا ته یې دیوښکاري پاچا بڼه ورکړې ده.

دپاچا مخ ښي خواته دبودا پر لور چې تر څنګ یې انځور دی کوږ دی او په حقیقت کې لیندۍ هغه ته ورښیي او داسې څرګندوي چې له ښکار دحیواناتو او پرندګانو وژل دبودایي په دین کې منع وو اوهغه ډبر لیك چې ۵ کاله دمخه په کندهار کې کشف شو دا ډیر پخواني تاریخي سند له مخې څرګندوي چې (آشوکا) په دریمه م ز پیړۍ کې خلك دپرندګانو اوماهیانو له ښکار نه منع کول، دبامیانو ددې ښکاري پاچا رنګه تصویر چې دبامیانو دککرك له درې څخه په ۱۹۳۰ کال کې لاس ته راغلی په حقیقت کې دبامیانو یو سیمه ایز پاچا دی چې لرۍ یې دالپتګین اوسبکتګین همداراز دیعقوب لیث صفاري تر راتلو تر ۹ زیږدې پیړۍ (دریمې هجري پیړۍ) پورې دبامیانو پر غرونو روانه وه او له منځه نه وه تللې.

عربي اواسلامي مؤرخین دوی دبامیانو دزمریو په لقب یادکړیدي. او اصطخري یوتن دځلورمې پیړۍ په لومړۍ نیمائي کې چې دلسمې عیسوي پیړۍ له لومړیو سره برابره ده له دوی نه یادونه کوي او طبري نژدې نیمه پیړۍ دمخه دبامیان داسیمه ایز واکمن په همدغه لقب دبامیانو دزمریو په نامه یادوي.

دچیني لیدونکیو له یادونو او یادښتونو څخه واضحه څرګندیږي چې بامیان هغه وخت چې دتګ راتګ لار پرې سپره وه په ۵ـ ۶ـ او۷ مسیحي پیړۍ کې یې سیمه ایز پاچاهان او سلطنتي کورنۍ درلودلې اوله چیني ګرځندویانو څخه لکه

دمثال په ډول هیوان تسنګ چې په ۶۳۲ مسیحي کال کې بامیانو ته ورغلی او هغه دسیمې دپاچا له خوا استقبال شوی اوهغه یې سلطنتي میلمستون ته بیوولی او هملته اوسیدلی دی بل چیني لیدونکی په ۷۲۷ عیسوي کال کې له بامیانو تیر شوی اوپه ۸ عیسوي پیړۍ کې دبامیانو دسیمه ایز پاچا دقدرت او ځواکتابه یادونه کوي.

دادوه سیمه ایز پاچاهان چې چینایانو په ۶۳۲ او ۷۲۷ کال کې په بامیانو کې لیدلي دي دیو لړ پاچاهانو جز بلل کیږي چې عربي او اسلامي مورخینو هغوی د دبامیانو دزمریو په نامه یاد کړی دي.او دا کورنۍ د (کوشانو یفتلي) له بقایاو او پاتې شونو څخه وه.

لکه څنګه چې تول پوهیږو دوړو کوشانیانو وارثین (کیداریان) همداراز یفتلیان وروسته له ۵ مسیحي پیړۍ چې دیفتلیانو سلطنت سقوط وکړ دافغانستان دغرونو په سختو اومرکزي برخو کې لکه بامیان، غرجستان، دیراود، جاغوري، مالستان، شارستان، ګردیز او نوروبرخو کې تیت کیږي اوپه محلي یاسیمه ایزه واکمنۍ لاس پورې کوي اوبامیان یې یوله مرکزونو څخه ؤ او دبامیان زمریان یو له همدغو نسلونو څخه و چې دبودایي دین پلوي وو اوله نیکه مرغه ښکاري پاچا چې له همدغو پاچاهانو رنګه تصویر یې هم شته او دواکمنۍ تاریخ یې ۵ مسیحي پیړۍ ته منسوبولای شو.

۲۰_۳_۴۱

## دباميانو د ((جي)) په سمڅه کې يوبودايي کتابتون:

افغانستان دزرکالو په اوږدوو کې (له ۲ ق م پيړۍ نه تر ۹ مسيحي پيړۍ) داسيا يو مهم بودايي مرکز و او له مختلفو ځايونو څخه دکشف شويو اثارو شواهدو لکه په هډه، بګرام، شترك، فندقستان، او دباميانو لويې بودايي مجسمې او دلويو استوپو پاتې شونې چې څو نمونې يې په بودايي کابل، توپ دره، ډرونته، دبلخ په ايبك درك کې لرو کولای شو دامفکوره په ښه توګه زبات کړو.

ديوزرکالو په دوره کې چې بودايي دين په دوه مختلفوطريقو دخلاصون وړوکې لاره او لويه لاره په نامه دهيواد په مختلفو نقاطو کې اباد و يو شميردامعبدونه که هغه په هډه کې وو که په، کابل،بګرام، باميان،اوکه په بلخ کې اويادافغانستان له حدوداتوڅخه بهرپه اسياکې ډيرشهرت يې لاره.

بودايي معابدونه عموماً لکه داسلامي دورې دخانقاوو په څير چارچاپيره يوه لويه مستطيل شکله احاطه لري او خوا پر خوايي حجرې لرلې دا په ځانګړې توګه دراهبانو، علماو روحانيونو او پوهانو داوسيدنې له باره وې او ځنې وختونه په ځينې معابدو نو کې درې يا څلور سوه راهبانو دتفکر ، انزوا په عالم کې ژوند کاوه او په ډيره پيمانه دهغوی فکري محصول ليکل او دمذهبي ، اخلاقي اوکيسو او رواياتو ترجمه وه.

په بل عبارت دامعبدونه لکه داسلامي دورې مدرسې دتعليم و روزنې، تدريس افادي او استفادي مرکزونه وو، راهبان او دهغوي شاګردان په ډيره ارامی اوخاطر جمعې سره په لوستلو او ليکلو مشغول وو او هر معبد ځانته کتابخانه درلوده، په کومو ځايونو کې چې دغرونو په منځ کې يې سمڅه کيندله لکه په افغانستان کې باميان په چين کې توان، هوانګ او لانګ من همداراز په اجانتا کې کتابخانې اکثراً په همداسې سمڅو کې وې او ټولو په عموم ډول تحريري اثار له همدغه شان سمڅو او غرونو څخه کشف کړي دي.

له نیکه مرغه په ۱۹۳۰ عیسوي کال کې چې له پروفیسر هاکن د دڅیړنې او سپړنې لپاره باميانو ته لاړو دهغو پلټنو له مخې چې دنوموړي پروفيسر تر څارنې لاندې پيل شوې د ۳۵ متری مجسمې په ښکتني شرقي برخه کې مو يوه نوې سمڅه ومونده چې وروسته په سمڅه ونومولشوه او په هغې سمڅه کې دیوې پخواني کتابخانې شواهد څرګند اوښکاره شول.

پدې سمڅه کې چې پکې دپخواني بودايي ورقې دسنسکریت په ژبه او رسم الخط کشف شوي دباميانو یوه پخواني سمڅه وه چې په ډير احتمال له اسلام نه دمخه په ۴ او ۵ زيږدي پيړۍ کې دځينو کانو په رانړيدلو دا سمڅه ورانه شوې وه او دځينې طبيعي عواملو په وجه يې خوله بنده شوې وه او تر ۱۹۳۰ کاله پورې په همدې حال پاتې وه خو چې فرانسوي پلاوی ورته ورسيد اودايي کشف کړه او کشف کړای شوي څيزونه يې دکابل موزيم ته منتقل شول او هلته دباميان په ځانګړې خونه کې ځای پر ځای کړای شول.

په ياد مې دي چې ددې سمڅې په منځ کې مو يوه استوپه وکتله چې داطراف ديوالونو يې رنګه تصويرونه درلودل او دبودا دزيږيدلو دمجلس څرګندونه يې کوله دهمدې استوپې دکتابخانې ټوټه ټوټه پاڼې خورې ورې پرتې وې چې دباران داوبو او رطوبت په وجې سره نښتې وې چې سره بيلول يې ستونزمن او شكمن كار وُ.

داپاڼې دکاغذ نه وې بلکې يو ډير نازك نباتي پوستکی وُ چې له خانبانغ کاغذ څخه يې ضخامت ډير نه وُ واو دوخت دتيريدو په وجه ډير ژر ماتيده مطلب داچې ترڅنده شوې وه کله چې به يې له يوې برخې سره تماس وشو نو ټول به له منځه لاړ، دې نازکه او تر څنده باڼو دپورته کولو له پاره دساعت جوړ ولو ډير نازك وسايل پکار وُ، دډير زحمت په تيرولو مو وکړای شول چې داوبو دبخار په واسطه يې غټې ټوټې له خاورې سره له ځمکې پورته کړو، چې دځينو عرض او طول ۱۰/۲۵ سانتي متره دی.

دافغانستان دښوونې او روزنې دوزارت په موافقه يې ځينې ټوټې دمطالعې په خاطر پاريس ته واستول شوې چې بيا وروسته دوباره دکابل موزيم ته راوړل شوې او يو تن فرانسوي لرغون پوه موسيو سيلون لوی پدې برخه کې مطالعات ترسره کړي چې لنډيز يې دلته وړاندې کيږي.

دکوم کتاب پاڼې او ټوټې چې په لاس راغلي دي عموما په سنسکريټ ژبه او رسم الخط کښل شوي دي او دهغې رسم الخط دسبك اوشيوې له نظره په درې برخو و... شو.

۱) کوشاناروش ـ ۲) دګوپناروش ـ ۳) دمرکزي اسيا روش ـ

لومړۍ ډله په۳ ـ ۴ مسيحي پيړۍ پورې مربوطه او دويمه ډله په ۷ـ ۸ مسيحي پيړۍ پورې مربوطيږي او دريمه ډله دليکدودونو دډولونو نمونې را په يادوي چې دمرکزي اسيا له مختلفو نقاطو څخه لکه په ((ختن)) او ((کوتچه)) کې بېلګې اويا ورته نمونې يې دکوشاني امپراطورۍ په برخو کي موندل شوي دي درسم الخط مختلف انواع واضحوي چې دباميانو په سمڅه کې يوه بودايي کتابخانه دايره شوې وه او درسم الخط مختلفې نمونې څرګندوي چې علماوو او روحانيونو له مختلفو نقاطو لکه ((ختن)) او((کوتچه)) څخه يې بېلګې اويا ورته نمونې يې دکوشاني امپراطورۍ په برخو کې موندل شوي دي.

درسم الخط مختلف انواع واضحوي چې دباميان په سمڅه کې يوه بودايي کتابخانه جوړه شوې وه او درسم الخط مختلفې نمونې څرګندوې چې علماو او روحانيونو له مختلفو نقاطو څخه له ګاونډيو هيوادونو څخه باميانو ته تګ راتګ درلود. او لکه څنګه چې باميان د هغو لويو لارو پرسر واقع وو چې له مرکزي اسيا څخه هند ته تللی وې نو طبعاً راهبان دافغانستان له شمال او شرق څخه او له سرحداتو نه دباندې دهند او چين له همدې لارې تيريدل اوهلته يې اقامت هم کاوه او داقامت پر مهال يې په مختلفو رسم الخطونو اثار ليکل نوځکه دا دتعجب ځای نـدی چې دباميانو په يوه کتابخانه کې دې په مختلفو رسم الخطونو اثار وموندل شي.

په هر حال کله چې دموسيو سيلون لوي له نظريې څرګنده شوه پدې کتابخانه کې پخوانی ا ثار د ۳ او ۴ مسيحي پيړۍ اثار دي او نوي د ۷ او ۸ مسيحي پيړۍ اثار موجود دي او داتاريخونه په باميانو کې دبوداپانو دعروج او انحطاط دورې څرګندوي لکه څنګه چې په متون کې دبوريس او ذاتوا کلمه تکرار شوې ده پدې خبره نو موسيوسيلون لوی باوري دی چې ډيرې شليدلې پاڼې دبودايي دنجات دلويې لارې مربوطې دي.

هغه څه چې دبودايي مذهبي ادب په اړه ډير مهم او ددقت وړ دی هغه ديوبودايي کتاب داصلي پارچو وجود دی چې ويناپانوميده او دبودايي مذهبي دنجات وړې لارې مربوط ؤ. دچينائي ليدونکي هيوان تسنګ دشهادت په اساس باوري نه جې ددې طريقې پيروان په باميانو کې اوسيدل، نو دادتعجب ځای نه دی چې ددې طريقې د پيروانو مذهبي اثار دې دباميانو په سمڅه کې پيدا او کشف کړای شي.

د (وینایا) دکتاب پارچې د (گوپتا) په رسم الخط لیکل شوی دی. اصلاً چې داکتاب یو اخلاقي او مذهبي کتاب شمیرل کیده سانسکرت په متن کې ورک ؤ او هغه یې یواځې دیوچینائي متن له مخې پیژندہ او هغه دښو غټو جلدونو لرونکی ؤ چې دبامیانو په کتابخانه کې یې څو په سانسکرت لیکلې پاڼې وموندل شوې، لکه څنگه چې خبر یو درې کاله وروسته (دبامیانو ترکشف وروسته) څو پاڼې نورې یې په کشمیر کې په یوه سمڅه کې ترلاسه شوي دي

پدې کې شك نشته چې په سمڅه کې کشف شوې پاڼې یوه مهمه مفکوره څرگندوي چې په یوه مهمه نقطه کې لکه بامیان چې دغره په زړه کې په زرگونو سمڅې کیندل شوي دي او ددنیا لویې مجسمې په غره کې تراشل شوي دي نوخامخا به یې مهمې کتابخانې هم درلودلې چې دافغانستان دمختلفوبرخو راهبان او دگاونډیو هیوادونو راهبان هلته دمطالعې دپاره راتلل او مطالعه به یې کوله.

۲۲_۳_۴۱

# دککرل تنګي "لس متري مجسمه"

## ((پرمعبد دیوالونو رنګه تصویرونه))
## ښکاري باچا یا دباميانې زمری

هر کله چې دباميانو نوم اخستل کیږي. او یا دهغه دمشهورتنګي په باره کې څه شرح کیږي نو لومړی ددوه لویو ۵۳ متري او ۳۵ متري مجسمو په باره کې بحث کیږي، ډیر لږ په ککرک دره کې دلس متري مجسمې او دبودایي رنګه تصویرونو یادونه کیږي اواکثرا دککرک درې او دښکلیو تاریخي او هنري اثارو یادونه یې نه کیږي. او حال داچې هغه لس متري مجسمه او په ځانګړې توګه رنګین تصویرونه یې چې کشف شول دباميانو په تاریخي مقام کې یو ځلاند ډیرښت او ارزښت دی.

ککرک تنګی : دباميانو دلویو مجسمو جنوب ختیز خواته په درې کیلو متری کې واقع دی، دتنګي فاصله له هوټل نه دوه کیلو متره او دغلغله ښار له کنډوالوڅخه څه کم یوکیلو متر فاصله لري او دغلغله ښار دارګ له خرابو څخه تږوله دره (تنګی) او د لس متري مجسمې طاق هم ښکاري دککرک دره له پیل نه تر پایه چې د بابا دغره تر لمنو پورې رسیږي د۱۵ کیلو مترو په شاوخوا کې اوږدوالی لري او سرک ددرې په امتداد تر (دوکاني) چې دهغې په کوزنۍ برخه کښې واقع دی دلس کیلو مترو په اندازه وړاندې تللی دی.

ترکومه ځایه چې دلرغون پیژندنې مطالعات او داثارو بقایا وې څرګندوي دباميان درې هر یو معبد وړې اوغټې مجسمې او رنګه تصویرونه درلودل ددرې په خوله کې دیو کیلو متر په فاصله دغره په ختیز لوري کې یو طاق دغرب په لور

کېندل شوی چې په رواق کې یې یو لس متري مجسمه ولاړه ده دامجسمه دبامیان دلویو ۵۳ متري او ۳۵ متري مجسمو چې دهغوی مخونه قصداً تراشل شوې او له قصدي خرابکاریو یې تاوان ندی لیدلی مګربادباران دوخت په تیریدوسره دمخ اوبدن څنې ځایونه ورتراشلي دي.

دا مجسمه طبعاً دیو لړمعابدو مرکز وُ او په کال ۱۹۳۰ میلادي کال کې ددې ترځنګ یو معبد کشف شو او رنګه تصویرونه یې دکابل موزیم ته راوړل شول او دغه کلیکسون د اسیا په بودایي تصاویرو کې د ډېر ارزښت وړ دی او دغه وروسته د (اجانتا) له اثارو د بودایي رنګه تصویرونو په کلیکسون کې شمېرل کېږي.

د ککرک د معبد رنګین تصویرونه څو پېړۍ د خلکو له نظره پټ وو، ځکه کله چې د دغې درې بودایان د کوم جنګي خطر سره مخامخ شوي دي نو د معبد د تصویرونو مخ یې په خټه لړلی او د بیا مراجعت په تمه لادرکه شوي دی او د زمانې په تیریدلو هغه ځای ته، دورختلو لاره ورانه شوې ده او رنګین تصویرونه دختې د نازك قشر لاندې تر کال ۱۹۳۰ پورې پاتې و.

دککرك دمعبد ددیوالي رنګه تصویرونو په منځ کې یو تصویر دافغانستان دتاریخ له نظره ډیر ارزښت لري او هغه دهغه پاچا تصویر دی چې دلیندۍ، غشي او ښکاري سپي په لړلو یې هغه ته د (ښکاري پاچا) لقب ورکړی دی او پرته له شکه دهغې درې دسیمه ایزو پاچاهانو دنیکه تصویر دی چې اصطخري دځلورمې (هـ) پیړۍ په لومړۍ نیمایي کې (دلسمې مسیحي پیړۍ لومړۍ) یې د (بامیانو دزمریانو) په لقب یاد کړی دی. دبامیانو زمریان لکه دغرجستان د شاریانو لقب داسې سیمه ایز القاب و چې دمشهورې درې دشاهي کورنۍ په وجه هغه دره مشهوره وه.ټول پوهیږو چې په بامیانو کې دسلطنتي کورنۍ ورځې واکمني کوله. چیني لیدونکی، هیوان تسنګ په ۷مه مسیحي پیړۍ کې یې یو تن په بامیانو کې لیدلی او مصاحبه یې ورسره کړې ده او په سلطنتي قصر کې دهغه میلمه و او ورسره اوسیدلی دی. هیوان تسنګ نوموړی پاچا د(کشاتریه) د کهاله بولي او په دې صفت کولای شو هغه دسیمې له نظامي سیمه ایزو نجیباوو څخه وبولو.داډول سیمه ایزو واکمنانو داوومې پیړۍ په اوږدو کې دافغانستان په جنوبي برخه کې مخصوصاً په بامیان، جاغوري، غزني، ارزګان، کاپیسا، لغمان، ګردیز، جهرستان او نورو ځایو کې وجودلاره.

او وروسته دکوشاني اویفتلي دولت له انقراض نه دهغوی اولادې او کورنۍ یې په خپل منځ کې مخلوط شوی او په هره ګوشه او څنډه کې یې سیمه ایز حکومتونه

جوړ کړل دا کورنۍ دپخواني افغانستان په تاریخ کې دکوشان اویفتلي په نامه پیژنو او ددوی مسکوکات، مجسمې او ډېر لیکونه دهیواد په مختلفو برخو کې ددوی نوم ونښان هست او بود تائیدوي او دبامیان په دره ککرك کې یو برجسته مثال دشکاري پاچا دی. چې دهغه انځور بودایي ګروهمن په معبد کې ځای پر ځای کوي او له بودا سره محبت دارنګه ښیي چې ده له ښکار اودحیواناتو له وژلو لاس کښلی او توبه یې ویستلې ده.

دا پاچا په سریوتاج لري چې درې هلاله (سپوږمۍ) او درې کُرې په سر ټومبلي لري دیو تخت دپاسه ناست او تکیه یې کړې ده او د هغه وخت دمعتقدانو په نظر د حیواناتو او پرندګانو له وژلو څخه یې لاس اخستی او مقدس مقام ته واصل ښکاري.

دبامیانو زمری چې تصویر یې دککرك له درې څخه تر لاسه شوی دی هغه دافغانستان له مرکزي دروڅخه دیوه واکمن په توګه موږته معرفي کوي. ۸۵ کاله وروسته له هیوان تسنګ څخه یو تن بل ګرځند چې اصلاً دکوریا ؤ او (هوي تچاوو) نومید، له بامیانو څخه تیریده اودهغه له وینا وو څخه داسې څرګندیږي چې نوموړي پاچا دکوم بل ځای تر تاثیر لاندې نهٔ و او خپل پیاده نظام یې ډېر قوی ؤ دکوریایي ګرځند شهادت دیوسیمه ایز پاچا په اړه تر اسلام دمخه لومړی منبع ده چې په بامیانو یې دیو پاچا په باره کې ورکوی او دهغې له مخې معلومیږي چې د ۷ مسیحي پیړۍ په اوږدو کې او حتی د ۸ میلادی پیړۍ په پیل کې دبامیانو سیمه ایز واکمن چې اسلامي ماخذونو د (بامیاني زمري) په صفت یاد کړی دی قوي او نیرومند پاچا و اودمحلي جنبې په لړلو یې ډیر قوت لاره، مګر دبودایي معتقداتو دنظریې دپیروۍ له مخې یې له جنګ قتل او وینې تویونې څخه کرکه کوله.

۲۶/ ۲/ ۳۷

# ضحاك ښار

داستانونو، او اسطورو چې له څو زره کالو راهیسې یې دملي خاطراتو دفتر احتوا کړی دی. زموږ په دماغ او حافظو کې محدود پاتې شوي ندي بلکې جغرافیائي میدان پر مخ ښکته راغلی او داوبو، خاورو، دښتو، غرونو اوصحراګانو سره مخلوط او یوځای شوی دی.

څومره چې ددې خاورې داوسیدونکیو حافظه اودماغ دتاریخي او لرغونو پهلوانانو له نومونو څخه ډك دی همدا راز دغرونو څوکو، صحراګانو ، کمرونو ،مستو او څپاندو رودونو هم عین همغه خاطرې په ځان کې منعکسې کړي دي، او هر قدم چې ددې تاریخي خاورې په هره برخه کې کېښودل کیږي نوخامخا تاریخي، فوکلوري ، داستاني،اوخیالي خاطرې په نظر ښکاري. په بامیانو کې ۱۸ کیلو متره وړاندې هغه ځای کې چې د "کالو" دره دبامیان ددې ښکتنۍ برخه قطع کوي او ددواړو غرنیو خوړونواوبه سره یوځای کیږي. دغرونو هغه پرې کړې برخې چې له خاورو او سنګ مخلوطې دي چې جیګري او سور رنګ ورته یوځانګړی هیئت او صلابت ورکړی دی. لویې ضخیم برجونه او برداره دیوالونه دپاملرنې وړ دي. اروپایانو په دې کلونو کې دانیمه وران شوي دیوالونه دشاهد په توګه نیولي او هغه یې دقلعه سرخ په نامه نومولي دي مګر دسیمې خلك د ریښتینو ژورو ته ور ننوتلي دي او دتاریخ له دورونو ورتیرشوی دی او هغه سرحد ته ور رسیدلی دی چې اسطوري او داستانونه دتاریخ ځای نیسي نو دضحاك نوم یې موندلی دی او ددې اور رنګه خرابو پر مخ یې رنګ پورې کړی .

دعامیانه نوم اینبودنې له مخې ددې کلا پورتنۍ برخې دضحاك ښار په نامه او ښکتنۍ برخې یې دنریمان ښار په نامه یادولی شو. د(کالو) ددرې له هغه ځایه چې نری شوی او اوبه ترې تیریږي لکه دمار په څیر کږه وږه لاره ختلې ده او په هره

کړلیچ کې یوضخیم برج او دزینو اثار څرګندیږي دغلغله دښار دا دفاعي برخه دنریمان په نامه یادوي او لکه څنګه چې ټول پوهیږو هغه هم دلرغوني زماني پهلوان و.

ددې له پاره چې پخواني داستانونه، دضحاك او نریمان کیسې، داهنګر "کاوه" یا "دکان ځای" او نور بشپړ شي یوه دره چې دضحاك ښار ته نژدې او دبامیان ترڅنګ واقع ده د (آهنګران) نوم یې پرې کیښود چې دعامیانه اقسامو له مخې طبیعي داهنګر (کاوه) یامرکز هلته موجود و او د علاقه مندانونظر راښکنې له پاره او په ځانګړي توګه دسیلانیانو له پاره ویلای شو چې داهنګران دره دسیلانیانو له پاره دخال لرونکیو ماهیانو دښکار بهترین ځای دی.

دضحاك ښار دبامیان دلارې په سر ددې تاریخي درې یوه ډیره مهمه نقطه ده. اصلاً دضحاك دښار خرابې دوه برخې لري اوپه بل عبارت کولای شو هغه په درې برخو هم وویشو.

اول : دفاعي سیستم چې عبارت له یو لړلارو اوبرجونو څخه دی چې دنریمان په نامه یې شهرت حاصل کړی دی.

دویم : دښار ښکتنۍ برخه چې هلته اکثرو دسیمه ایزو خلکو ژوند کاوه.

دریم: دښار پورتنۍ برخه بالاحصار چې طبعاً دحاکمه قواوو ځای و. دښار په لومړۍ او دویمه برخه کې اوس په اسانۍ سره ګرځیدل کیدای شي او لیدنه یې اسانه ده.

دریمه برخه یې چې دبارانونو اوبادونو په وجه ډیره نشیب شوې ده ډیر احتیاط غواړي او ګرځیدل پکې ډیر خطر لري مخصوصاً په هغو ورځو کې چې باد وي.

ترکومه ځایه چې لرغون پیژندونکیو څیړنې تر سره کړي د ضحاك د ښار خرابې دساسانیانو ددورې آبادۍ وې او په دې ترتیب دابادیو د پیل زمانه له اسلام نه د مخه ټاکلی شو، او لکه څنګه چې دغوربند له فندفستان څخه دخسرنوشیروان سکه تر لاسه شوې اود بامیانو په لویدیزه برخه کې دساساني رنګه تصویرونه هغه ځای چې په (خسر نوشیروان) باندې مشهور دی تر لاسه شوی نو له احتماله لرې نه ده چې دساساني نوشیروان په وخت کې پدې نقطه کې ابادي ترسره شوي وي.

دکیندلو په وجه دغربي ترکانو مارك وهل شوی کوزې هم تر لاسه شوي چې دساسانیانو په وخت کې له آمو څخه دباختر خاورې ته راوړل شوې وې له دې وختنه ر اوروسته دامهمه ستراتیژیکي سیمه آباده وه اودخوارز مشاهانوپه وخت کې یوه مهمه کلا شمیرل کیده او دلته دجلال الدین منکبرني او چنګیز خان ترمنځ خونړۍ

جګړې ترسره شوي دي یوه قیمتي خاطره دضحاك په کلا کې د "موتي جن" وژنه وه چې نوموړی دچغتي زوی او دچنګیز لمسی وه چې دمغلو یرغل ګر یې ډیر په غوسه کړل. دا تاریخي کلا هغه ځای دی چې مغل یرغلګرو د هغه وخت د افغاني مدافعه کوونکو قوت عملاً ولید.

لدې ورځې وروسته "ضحاك" دبامیانو د نورو کلاګانو په شان ورانه شوه مګر د ۱۷ پیړۍ تر پایه او د ۱۸ پیړۍ تر پیله یې له برجونو څخه ددفاع له پاره کار اخستل کیده، چې وروسته دپیړیو ترتیریدلو دجنګونو او طبیعي پیښو سره سره بیا هم یې دحصار ځیني برخې او ضخیم برجونه لاپاتې دي چې دضحاك ښار دمستحکمو کلاګانو په ډله کې وشمېري او داښکلې کلا د نړۍ دسیلانیانو پر وړاندې ستاینه ترلاسه کړي.

۳۸/۲/۱۰

# په پخواني افغانستان کې دلمر پرست دقانون سوابق

دمخه تر دې چې په افغانستان کې دقبل التاریخ په اړه دځیړنو لمنه پراخه شي او ددې سیمې دلومړیو اوسیدونکیو درسوم ،عاداتو او عقایدو په ارتباط له اریایانو تر راپیدا کیدلو دمخه روښانه شي په ډیرو مواردو کې داریایانو د اوسیدلو دځای ځایګي په اړه د هندوکش په چارچاپیره کې اومهاجرت یې ګاونډیو سیمو ته ور اوړدوو.

دلته دبحث وړموضوع (مهر) یا لمر پرستي ده چې دادی سوابق یې په اریایي (ویدي) عصر کې دپخواني افغانستان په تاریخ کې درك کوو او تحولات یې په وروستیو دوروکې مطالعه کوو.

دویدي عصر اریایان په هغه مرحلو کې چې دهندوکش په چاپیریال کې یې ژوند کاوه. دین یې دننني ورځې دکلمې په معنا نه لاره دکائناتو نوراني عناصرو پکې یوشان جذبه او امید تولیداوه. آریایان دژوند په لومړنیو مراتبو کې هر یوطبیعي عناصرو ته پخپله قائل شوی دی هر یو ته یې نوم ورکړی او هر یو ته یې سندرې درلودې چې خاطرې یې تر اوسه پاتې دي.

د (ویدي) دخدایانو دډولونو مجموعه دهمدغه طبیعي عناصرو له مجموعې څخه تشکیل شوی وه او په دې منځ کې له ستورو ډك اسمان لمر او سپوږمۍ ، باد او اور او همدارنګه شفق او فلق اونور دشخصیت څښتنان شول. او لمر هم دځانګړي خدای شکل پیدا کړی ؤ او هغه یې په مختلفو نومونو او صفتونو یاداوه او دلمر په هکله دانومونه په ویدي سندرو کې ښکاره شوي دي لکه : (سوریا) ، ( ساویتار) ، ( یوشان) ، (میترا) ، ( رود ورا).

لکه څنګه چې دویدي عصر کې په افغانستان کې اوېستایي دوره په تاریخ کې منعکس شوې ده، وروسته له هغې چې (زراتشترا) ظهور وکړ داوېستایي عصر په ائین کې واحد پرستي منځ ته راغله. او یو شمېر ځانګړو خدایانو سرچپه

مفکوره او معنا پیدا کړه، دویدي لمر (میترا) نامه دتلفظ په لږ تغیر سره (میتهرا) شو.

ژبپوهان باوري دي چې (میترا) په ځانګړې توګه د ویدي دتلفظ په صورت د (دوست) معنا درلوده او په اوېستائي دوره کې يې هغه د (قرارداد) معهود (پیمان) او (موافقې) په معنا تعبیروله، پدې کې شك نشته چې داوستائي له (میتهرا) څخه په دري ژبه کې (مهرا) منځ ته راغلی دی دغه مهر چې تر اوسه دوستي،علاقه او پیوند ترجمه کیږي دهمغه پخوانۍ معنا په مناسبت دی.

همدغه شان لکه څنګه چې (میتهرا) (میترا) په (وید) او (اوېستا) کې دلمر په معنا هم و نو (مهر) په دري ژبه کې همدغه مفهوم محافظه کړ اود اوېستا له ځینو فقرو څخه څرګندیږي چې (اهورا مزدا) د (میترا) له پاره یعنې دغره پر څوکه لمر (هرابرزتي) چې هغه پامیر ترجمه کوي ورته مسکن جوړ کړی و.

داتعبیر (دلمر راختل او ظاهریدل دغرونو له شاڅخه) ددې لپاره راوړي او داسې چې لمر له خپل مسکن څخه دغره له څوکې راپورته کیږي، بل هغه څه چې دلمر په باره کې يې اوېستایي یادونه مهمه ده داده چې دهغې زمانې دپوهې سره همداسې تخیل کیده چې لمر په طلائي څرخ بار دی او څلور طلائي اسونه يې راکاږي.

اوستایي دامفکوره دهنر په مفهوم په عام او خاص ډول سره دافغانستان له پاره فوق العاده مهمه ده ځکه چې په وروستیو دورو کې هیکل تراشانو او نقاشانو دلمر ځانګړې خدای پر څرخ سپور له اسونو سره څو څو ځله نندارہ کړی دی.

دهمدغو ویدي او اوېستا معتقدینو پر اساس په وروسته دورو کې دمخه تر هخامنشیانو "اناهیتا" او " میتهرا" یعنې "ناهید" او "لمر" وروسته دافغانستان په شمال کې دامو سیند سیمې په پخواني بکتریان کې درلودل اودامفکوره يې له دې ځایه دایران هخامنشیانو ته منتقل شوې ده، لکه څنګه چې لومړي داریوش له ۵۲۱ـ ۴۸۵ م ز او لومړي خشابارشا" ۴۸۵ـ ۴۷۲ م ز پورې دهغو دنامه یادونه نده کړې دویم شیر ته ور داخل دلومړي ځل له پاره وروسته له "اهو رامزدا" له "اناهیتا" او"میترا" یادونه کړې ده داسې نتیجه لاس ته راځی چې "میترا" او دهغې نمانځنې په منځنۍ پیړۍ (۵) م زکې په ایران کې انتشار موندلی دی او له هغه ځایه يې بین النهرین او وړوکی اسیا ته لاره موندلې ده.

دلویو کوشانیانو په دوره کې ( له لومړۍ تر دریمې مسیحي پیړۍ پورې) چې ددیانت او ائین موضوع ډیره ازادي موندلې وه سیمه ایز ځانګړي خدایان همدا راز هندي او یوناني ټولو ته احترام کیده اودیوناني اسطوره يې ځانګړي خدایان هم مشهور شوی و . " متیرا" دلمر ځانګړی خدای دتغییر تلفظ په یو جز سره "میرو" دکنشکا او هوویشکا په مسکوکاتو کې په ځانګړې توګه دلومړي امپراطور په

مسکوکاتو کې ليدل کيږي. "مير" همغه (مهر) (ميتهرا) او (ميترا) دی چې سلسلې يې دافغانستان په تاريخ فرهنګ، ادبياتو او السنه کې دوام کړی دی.

دغه دلمر په اړه پدې سيمه کې دعقايدو لرغونتيا تر هغې چې څلورمې او پنځمې مسيحي پيړۍ ته رسو او له دې تاريخه وروسته دنوموړي ديانت شواهد هندوکش په جنوب اود افغانستان په جنوب غرب کې يو شان ليدل کيږي او دوام يې داسلام تر ظهوره پورې په دې سيمه کې څرګند او ښکاره دی. دې لمر پرستۍ ته يې (برهنمي لمر پرستي) هم ويلې ده او ديوناني اسطورو د تاثير په اثر دسهار او مابنام ستوري هم د شخصيت له مخې له لمر سره يوشان ګڼل شوي او د لمر او ستورو يو شان بيان منځ ته راغلی دی او ددې نوې مفکورې تاثير د افغانستان په هيکل تر اشنه او نقاشۍ کې مشهور اوښکاره دی.

دافغانستان په لويديزه برخه زمين داور او جبل الزور کې دلمر پرستۍ د معابدونو داثارو شواهد داسلامي مبلغينو او عسکروتر راتللو پورې خارجي وجود درلود. په همدغه زمانه او ياڅو کاله دمخه يې چيني (هيوان تسنګ) چې پخپله هم بودايي راهب و، له افغانستان څخه دتيريدلو پر مهال دلمر پرستۍ معبدونو او دهغې پيروانو ته اشاره کړې ده لرې نه ځو ايا پخپله دکابل ښار په ۱۲ کيلو مترۍ کې دکاپيسا دحوزې په لويه لاره دخير خانې په يوه غونډۍ کې دلمرپرستۍ يو لوی معبد کشف نه شو؟ ددې پوښتنې ځواب به په لازم تفصيل سره بله مقاله کې ورکړای شي.

۱۲-۹-۳۸

# دسور یا هیکل

## دلمر ځانګړی خدای دخیرخانې په کوتل کې

دلرغون پیژندنې څیړنو دلرغوني افغانستان دمختلفو برخو پـه پیژند ګلوۍ لکه :تاریخ، فرهنګ، ارت، اوهنر کې ډیر خدمتونه ترسره کړي دي چې هېڅوک ترې انکار کولای نشی، لکه په سلګونو دارنګه مسایل چې دڅیړنو پـه ترڅ کې روښانه شوی یو هم دلمر پرستۍ موضوع ده چې دادب او دادیانو تاریخچې له نظره یې پـه افغانستان کې درلوده مګر تر ۱۴ کلو دمخه څه مـادي شواهد ددې اثبات لـه پاره په لاس نه وو.

دکابل ښار شمال لویدیځ ته په ۱۲ کیلو مترۍ کې دغره پـه شرقي لمنه چې په (بغل هزاره) مشهور دی او کندو چې دکابل او کـاپیسا (کوهدامن) ترمنځ واقـع دی چې په کوتل خیر خانه شهرت لري یو معبد کشف شو چې په مهر یـا لمر پرستۍ پورې په ځانګړې توګه اړه لري ددې معبد کشف کوونکی موسیو کرل فرانسوي و.

ترکومه ځایه چې علمي څیړنو څرګنده کـړه دلمر پرستۍ معبد دیوبل معبد په خرابـو ابـاد شـوی و چـې دهغـې دنوعیـت تشـخیص نشـوکولای. دخیرخـانې دلمـر پرستۍ معبد دپلان او نقشې له مخې درې کوټې درلودلې چې هـرې خونـې ځـانګړې دروازه درلوده تـر څو دنوموړي ائیـن پلویـان دمذهبـي مراسـمو داجـرا پـر مـهال پـه اسانۍ سره تګ راتګ تر سره کړي.

دننه په هره یوه خونه کې درې دتسلیت جـوړې شوې چوکـۍ ولیـدل شـوې، لکه څنګه چې په هره چوکۍ کې دمجسمې داینبودلو له پاره سوري ولیـدل شـول داسـې استنباط ترې وشو.چې په مجموعي صورت ۹ مجسمې په دغـه معبد کـې موجودې وې، ددقیقو کتنو څخه وروسته دانتیجه پر لاس راغلـه چـې نوموړی دلمـر پرسـتۍ

معبد ډیره سخته صدمه لیدلې ده او ټولې مجسمې یې له خپل ځای څخه بېځایه شوي دي لکه چې دکوټواو دهلیز تر پاکولو وروسته دوه ماتې مجسمې اویواځې یوه مرمري جوړه مجسمه په لاس راغله چې ډیره ښکلې او زړه راښکونکې ده او دسوریا یعني دلمر دځانګړي خدای ښودنه یې کوله او اوس دکابل په موزیم کې دنمایش له پاره ایښودل شوې ده.

دسوریا مرمري مجسمه چې تر اوسه دلمر پرستۍ یواځینۍ مجسمه ده چې له کابل او حتی له ټول افغانستان څخه تر لاسه شوې ده دیوې مخصوصې ګاډۍ دپاسه له خپلې اسطورې سره ناست او دوارو خواووته یې واړه هیکلونه هم څرګندیږي چې دهمدغې مقالې په اوږدو کې یې در معرفي کوو.

داوېستایي عصر داسطورو مطابق (متیرا) یا لمر اصلاً خپله طلایي ګاډۍ درلوده چې سپینو اسونو به راښکله.

(سوریا) دلمر ځانګړی خدای چې دخیر خانې په کوتل کې کشف شوی په یوه ګاډۍ کې ناست او دوه اسونه یې راکاږي. دا تخیلي داستان ددوه زره کلو په اوږدو کې داسې دخلکو په ذهن کې ناست و، چې په پای کې یې دیو حقیقت په ډول ومانه.

او د (سوریا)دنمایش په صحنو کې یې له هغه تخیل څخه کار اخستی دی دامفکوره چې په ۵ـ ۶ پیړۍ کې زموږ دهیواد په هیکل جوړونه کې لیکل کیږي په ۲ـ ۳ پیړۍ کې په نقاشۍ کې هم داستعمال وړ وه اومهمه مرکزي صحنه یې دبامیان د ۳۵ متره بت درواق سقف چې دسپوږمۍ ځانګړی خدای یې دګاډۍ دپاسه ښودلی چې سپین وزر لرونکي اسونه یې کشوي پدغه ترتیب ګورو چې شاعرانه تخیلات او اسطوري لمر او سپوږمۍ ځانګړی خدای په ګردونه کې ناست. یاولاړ به یي څرګنداوه او سوریا دخیرخانې په کوتل کې په یوه ګاډۍ کې ناست څرګندیږي.

مخکې مو وویل چې دهغه دوارو خواوو ته دوه واړه هیکلونه نور هم لیدل کیږي دادوه هیکلونه لکه دسبا او ماښام دستورو په شان هیکلونه دي چې وروسته هغه هم اسطوره او تخیل وی داخل چې یوناني اسطورې په افغانستان کې رائج شوې وې په محلي معتقدینوکې تاثیر کړی و او دلمر ځانګړی خدای په خپله خوا کې دوه ستوری هم پیدا کړی دی

دادوه ستوري چې دختیز یونان په تصوراتو کې دفوسفو اوس او هسپروس په نامه یادیږي دپخواني یونان په اسطورو کې دتومان دوه ورونه وو، چې یو ته یې (

اکستور) اوبل ته يې (پولوکس) ويل تر دې پورې چې (اکستور) ناپديد شو او(پولوکس) يواځې پاتې شو او له (زوس) نه يې هيله څرگنده کړه چې له خپل ورور نه بيل نه وي او دهغه دستور مطابق داسې برقرار شو چې دوه ورځې ترمنځ دواړه يوځای يوځل په اسمان او يو ځل يې په ځمکه راڅرگند شي او دسبا او مابنام ستوري دهغوی له خاطرو څخه راپاتې دي، دخير خانې دکوتل په تراشلي هيکل کې دسبا اوبيگاه ستوري د(سوريا) دگاډي په دوه خواوو کې ليدل کيږي. او ديو تن يوناني باختري پاچا په مسکو کاتوکې يعنې د ((ايوکراتيدس)) چې ددويمې زيږدې پيړۍ په دويمه نيمايي کې يې ژوند کاوه ددوه سپرو په نقش جوړ کړای شوی. وايي چې ددې دوه ستورو وظيفه داده چې اعمالو او ناظرو نيکې او بدې پيښې ثبتوي.

دلمر پرستۍ قانون اومعبدونه يې له سيستان څخه تر قنوج او ملتان پورې په لويه ساحه کې خپاره وو اوپه افغانستان کې يې دبودايي دين ترڅنگ څرگندويي کړې وه، وروسته تر هغې چې يفتليان په افغانستان کې خواره واره شول هغوی چې کومه دلچسپي دبودايي دين سره درلوده، لمر پرستۍ ته ډير متمايل شول.

دابايد هير نکړو چې په افغانستان کې يوشمير سکې کشف شوي دي. چې دهغوي پر يومخ دنيمې تنې په بڼه دلمر ځانگړې خدای نقش دی اودنور شعلې يې له شانه خپرې شوی.

ډيره په زړه پوري خبره داده چې پدې سکو کې دځينو ځايونو (داور) يعنې زميندا‌ور (زابلستان) اود (سکاوند) نومونه لوستل شوی دی او دانومونه معمول او متعارف دي همدا راز زمينداور ، غزني (سکاوند) يا دلوگر (سجاوند) ټول مشهور دي او پوهيږو چې دزمينداور په (جبل الزور) اودلوگر په (سکاوند) کې دلمر پرستۍ معبدونو وجود لاره، په غزني يا‌په غربي او يا هم په شمال لويديز برخو کې لکه جاغوري او نورو کې هم دارنگه معبدونه آباد وو.

يواځې يو معبد چې عبارت دخير خانې دکوتل له معبد څخه دی دعلمي څيړنوپراساس کيندل شوی اوهغه دمرمرو سورياهيکل چې راتر لاسه شوي د(سوريا)يواځينی مجسمه ده چې دڅيړونکيو لاس ته ورغلې ده.

# مرنجان غونډۍ دکابل دښار په منځ کې یوه پخوانۍ نقطه

دکابل ښار هغه ښکلی او تاریخي ښار دی چې دنوم انعکاس یې له اسطورو،داستانونو،فولکلوري کیسو، قصیدو او د تاریخ له متون څخه ترغوږو کیږي، او دا ښار خپل ډیر لرغون توب دشواهدو له مخې ثابتوي.

داښکلی ښار چې ډیره برخه ابادي یې ددوه غرونو (آسه مائي) او ( شیردروازي) ترمنځ واقع ده شرقي لور ته دخاورې یوه غونډۍ لري چې معمولاً یې د (تپه مرنجان) په نوم یادوي، که چیرته ښه دقت وشي تپه مرنجان او اراضي یې سره لدې چې دکابل دښار شرقي لور ته واقع شوی مګر له بلې رودخانې څخه خړوبیږي چې عبارت دلوګر له سین څخه دی. دا ټکی دپاملرنې وړ دی ځکه چې نن سبا دکابل په ډیره اندازه دکابل په سیند اباد دی او په پخوانۍ زمانه کې دښار دثقل مرکز اکثراً دلوګر په سیند اباد و، په همدې ترتیب دمرنجان غونډۍ ددواړو رودخانو ترمنځ واقع شوې دی چې لږ څه لیرې دتنګ غارو په سیمه کې دواړه رودونه سره یوځای کیږي دمرنجان غونډۍ لکه دنورو ډیرو غرونو او غونډیو په څیر فولکلوري داستانونه لري او ددې داستانونو له خلا څخه داسې څرګندیږي چې مرنجان اصلاً جادوګر و، او ډیر مال او ثروت څښتن و، کله چې یې طلسم مات شو افسانه یې شتمني یې دخاورو په غونډۍ بدله شوه.

لرغونه پیژندنه چې دداسې فولکلوري داستانونو یواځینۍ کیلي ده ددې غونډۍ په چاپیریال اوخاطراتو دیولړحقایقو په کشف موفق شوې‌چې پوهیدل یې دیومملکت دپایتخت په حیث دتاریخي مراتبو په رڼا کې له دلچسپۍ څخه لیرې ندی دریش کاله دمخه دتپه مرنجان په غربي برخو کې چې دخپلواکۍ د جشن په

مهال هلته اوبه ولاړې وې پدې برخه کې دڅمکې دهوارې اوپلونو جوړولوپه مهال یوختیېن دیګی. ومونډل شو چې پکې یو شمیر مسکوکات اونقره یې پارچې پرتې وې. ددې ټولو مسکوکاتو او ذوب شوو نقره یې پارچو مخلوط داسې حکم کاوه چې په یوه زمانه کې پدې ځای دزرګر دکان و اودا ډیر مهم او په زړه پورې کلیکسیون نن ورځ دکابل په موزیم کې موجود دی. اودچمن حضوري دمسکو کاتو په نامه یادیږ اودوه تنه فرانسوي پوهان موسیو (شلوم برژه) او موسیو( کوریل) د (چمن حضوري دمسکوکاتو خزانه) تر سر لیک لاندې پدې یوکتاب کښلې دی.

دچمن حضوري مسکوکات چې دمرنجان دغونډۍ له غربي برخې څخه په لاس راغلې ډیره لرغونې، ښکلې او نفیسه مجموعه ده څکه چې په هغې کې د ۴ ـ ۶ م ز پیړۍ سکې هم موجودې دي او دځینو سکو وزن یې له ۵ګرامو څخه زیات دی.

معمولا دچمن حضوري مسکوکات دفن پیژندنې له مخې چې دپخوانیو اویوناني مسکوکاتو په اړه معمول دی دا (اتیك) په نوم یادوي دامسکوکات په ډیره اندازه د ۴ ـ ۵ م ز پیړۍ په اوږدو کې په یونان او لیرې نژدې جزیروکې ترقبرص پورې جوړیدلي دیو شمیر په مخ یې دبوم او په بل مخ یې د (اتنا) د(زوس)دلور دتفکریا اندیښنې رتبه النوع چې د ارتن) دښار دحامي دیونان دپایتخت په حیث تلقي کیده په ضرب رسیدلی دی.

دا د سکومجموعه ډیره نادره او قیمتي ده او تر کومه ځایه چې څیړنې شوي دي دمدیتراني له لارې دتجاوز په وجه له هغه ځایه تر تپه مرنجان پورې رسیدلی دی چې دې کار دهخامنشیانو په وخت کې صورت نیولی دی څکه چې په هغې دوره کې دهخامنشیانو دفتوحاتو اوتسلط په وجه یې دنفوذ ساحې پدې ټوله منطقه کې وسعت مونډلی و. او له روم څخه کاروانونو تر سند پورې تګ راتګ درلود لکه څنګه هخامنشیانو پخپله دومره سکې نه درلودې نودیونانیانو سکې چې ددوی سکوته ورته دی په خپله سیمه رواج کړی دی. هغه څه چې دانظریه تقویه کوي دنقرې یوه وړه پارچه ده چې دهغې په مخ میخي لیك لیدل کیږي.

همغه حروف چې دهخامنشیانو په وخت کې دود و او دا څو حرفه یې دهمغه وخت نښه ده چې شواهد یې تر اوسه دافغانستان په خاوره کې لیدل کیږي.

پدې کښې شك نشته چې دمخه ترسکندراو سیروس ترفتوحاتو دمخه او تر هغه د مخه داریوش تر سند پورې د فتوحاتو د تر لاسه کولو او حتی هغه پلاوی چې د کښتیو د چلولو دپاره د مطالعې په خاطر د سند په اوبو کې د یو تن یوناني (

سیلاکس) تر نظر لاندې ليږل شوی و د کاروان اوتجارت لارې دغرب، اسیا او افغانستان ترمنځ هغه وخت خلاصې وې او دا هم له احتمال څخه لیرې نده چې کابل هغه وخت دتجارت يو وړوکی ښار و او داهم باید ومنو چې هغه مهال دتپه مرنجان دغونډۍ چار چاپیره خلك اوسیدل او حتی دزر گري دکان موجود و چې په هغې کې نقره موجوده وه او د زیوراتواو نقرې د زوب کار کیده.

په ۱۹۹۳ میلادي کال کې دتپه مرنجان په هغه برخه کې چې دکابل جلال اباد سرك تير شوی دی دوه د بودایي دين معبدونه کشف کړای شول چې شاید په ۲ یا ۳ مه عیسوي پیړۍ کې جوړ کړای شوی دی چې داد کوشانیانو وروستي وختونه و او علمي هڅو دا ثابته کړه چې ا قلا يو يې د ۴ مې یا ۵ مې عیسوي پیړۍ په اوږدو کې پخپله دکابل دښار دبودپرستانو له خوا مرمت کاري شوی دی لکه چې ددیوال د پیروالي له پاره يې د (بودیس اتوا) مجسمه سالمه او روغه په لاس راغله چې اوس دکابل په موزیم کې موجوده ده او دا په لاس راوړو مجسمو کې تر ټولو لويه مجسمه ده.

دتپه مرنجان دغونډۍ معبدوروسته د ۵ پیړۍ له مرمت کارۍ څخه يې خارجي برخه ديوې وړوکي کلکې اومستحکمې کلا ښه غوره کړې وه او لکه چې پدې پیړۍ کې دیفتلیانو ظهور کابل ته ثابت دی نو له احتمال نه بهر نده چې بت پرستانو دخپل شکست په نظر کې نیولو سره دمعبد ته دمرمت کارۍ په همال دیوې کلا ښه ورکړی ده.

دمرنجان غونډۍ له بودایي معبد څخه په مجموعي توگه د ۳۷۳ درنو سکو په شاوخوا کې دنقري سکې چې دساسانیانو دوخت دی او د ۱۲ دانو په شاوخوا کې دسرو زرو سکې د (کوشانوساساني) ددورې کشف شوی او داثابتوي چې دمرنجان تپه او بودایي معبد يې وروسته له کوشانیانو څخه هم له رونق څخه نه و لوېدلی. دمرنجان بودایي معبد حتی دعربي او اسلامي مبلغینو تروختـه خارجي وجود درلود ځکه چې مسلسل مرمت يې ددې مطلب ښه شاهد اوثبوت دی.

۳۷/۳/۲۱

# دتپه مرنجان بودايي معبد ـ او هغه نتايج چې وروسته تر لاسه شو

دکابل شمال، شرق او جنوب شرق ته يو شمير تپې د بي بي مهرو تپه، مرنجان تپه اوخاك بلخ تپه وجودلري، دساحې اوپراخوالي له نظره دمرنجان تپه له نورومهمتره ده چې چمن حضوري ترڅنګ دکابل ـ جلال اباد په لويه لار واقع اوترسياه سنګ پورې يې لويه او پراخه ساحه رانيولې ده.

داڅرګنده ده چې که نن ورځ دکابل دښار دثقل مرکز دکابل درود په غاړه وقع دی نو دمخه تر اسلام دامرکزيت دلوګر دسيند په غاړه واقع و او د هغو بودايي ابادیو بقاياوې چې دشاخ پرنتي دغره په لمنه، زنبورك شاه په خضر کې او شموچينه، جان باز، پنجه شاه سهاکونه، شيوکي، کمري او چکړي کې پرتې دي دا مفکوره تقويه کوي. په همدې ترتيب مرنجان تپه هم دلوګر درودخانې په حوزه کې قرار لري اوهغه اوبه چې دمستان تر پل لاندې دبالاحصار شرقي لور ته دخرابو ترڅنګ تيريږي دخپلواکۍ په جشن کې دمرنجان دتپې غربي برخه په مصنوعي توګه ښکلې کوي.

دمرنجان تپه لکه دافغانستان دډيرو غرونو او غونډيو په څير فولکوري داستانونه اوکيسې لري چې دهغو له منځه څخه داسې څرګنديږي چې مرنجان اصلا يوجادوګر و چې دډير مال او ثروت څښتن و او خپله سرمايه يې په همدې غونډۍ کې ښخه کړې وه ترڅو چې طلسم يې ماتيږي او ټوله سرمايه له خاورو سره خاورې کيږي.

لرغون پیژندونکي چې ددې رنګه فولکلوري معما دیواځنی حل ګلیاني دي ددې تپې په چاپیریال کې او ورته په مربوطو خاطرو دیو لړ حقایقو په کشف موفق شوي دي چې په هغې پوهیدل دکابل دښار دتاریخچې دروښاونولولپاره ډیر ګټور او دلچسپ دی.

د۱۹۳۳ عیسوي کال دپسرلي په موسم کې مې موسیو ژان کرل د فرانسوي پلاوي دکیندلو دپلاوي غړي ته چې دپروفیسر هاکن په غیاب کې یې دنومړي هیئت نمائندګي کوله خبر ورکړ چې دهغه راپور له مخې چې دکابل موزیم ته رسیدلی دی دمرنجان په غونډۍ کې یوه مجسمه پیدا شوې ده، په یاد مې دي چې له نومړي پلاوي سره سمدلاسه همغې نقطې ته ولاړو او علمي څیړنه مو پیل کړه، وروسته تر دې موسیوهاکن چې داوخت یې په توکیو کې د "خانه فرهنګي" دمدیریت چارې په لاس کې وې کابل ته راغی او د ۱۹۳۳ عیسوي کال دجون دمیاشتې ۱۵ نیټې څخه تر ۲۷ نیټې پورې کیندنو، څیړنو اوهڅو دده تر مشرتوب لاندې صورت ونیو.

دکوششونو ځای دمرنجان دغونډۍ غربي خواته لري او وروسته تر یولړ هڅو واضح شوه چې لاندې ابادۍ پدې نقطه کې قرار لري.

یوه مستطیل شکله ابادي ۸۶۰ متر ضرب ۱۲/۳۰ متره . داودانۍ له خامو ګټوګټو خښتو څخه چې په مربع بڼه جوړې دي او هرې ضلع یې ۵۰ سانتي متره اوږدوالی درلود ، دلته درې اطاقونه جوړ و، چې چت یې دکمان یا لیندۍ په بڼه جوړ شوی و.

۲) ددې مستطیل شکلي ودانۍ په کنجونو کې برجونه ترسترګو شول چې دسیند له تیږو جوړ کړای شوي و اومنظور تر ډیر محکموالی و، ددې ودانۍ په غربي برخه کې په دیوال کې یوطاق څرګند شو چې عرض یې ۱/۲۵ متره و.

۳) ددې غربي دیوال په مقابل کښې یوه وړوکي استوپه څرګنده شوه چې دکاڼو دکوچنیو تختو څخه جوړه شوې وه.

دلرغون پیژندنې دکتنې له مخې چې داسنادو له مخې کشف شوي: مجسمې ، مسکوکات ، ختین لوښي او نور تر لاسه شول داسې نتیجه ترې واخستل شوه چې اصلا دلویو کوشانیانو په وخت کې د (۲ او ۳) مسیحي پیړۍ په اوږدو کې دلته ټبودایانو له خوا مستطیل ډوله معبد جوړ کړای شوی و او دې معبد هم لکه دنورو معبدونو په څیر په خپله غربي خوا کې استوپه درلوده، وروسته تر هغې په ۵ مسیحي پیړۍ کې چې دمعبد ځیني برخې خرابې او شنیدلې

وې نو په کنجونو کې يې برجونه ور جوړ کړي و داشکست او خرابۍ يې په غربي برخه کې ډيرې محسوسيدلې ځکه چې دغربي برخې له شنيدلي ديوال سره يو بل پنډ ديوال جوړ شوی و.

تر ټولو پخوانۍ سکه چې مرنجان په بودايي معبد کې تر لاسه شوې ده هغه يوه مسي سکه او دکجولا کدفيزس کوشانيانو دلومړي پاچا سکه ده چې معمولاً هغه (۵۰) کاله دمخه تر ميلاد اودمسيح په وخت کې شميري.

پرته تر دې لدې معبد څخه دوه دستې نور مسکوکات هم تر لاسه شوي چې د دې برخې پر تاريخي تحولاتو ډيره رڼا اچوي.

يوه مجموعه له دې مسکوکاتو څخه له ۱۲ طلائي مسکوکاتو څخه مرکبه ده چې بڼه يې محدب ، مقعر اويا د نعلبکۍ په شکل جوړې دي چې دادکوشانيانو يو شمير شازيو پورې اړه نيسي. چې ساساني شاهنشاه پورې مربوط دي. پدې وجه داسکې دکوشانو ساساني په صفت يادوي. ددې سکو پريوې د(بهرام) نوم ليکل شوی دی اودلو ې کوشاني شاهنشاه بهرام په نوم يادې ش ې دي.

او يوولس نورې سکې فيروز، هرمز، بهرام اودشاهپور وې. يوه دسته نورې کشف شوې سکې دنقرې دي او ټولې په مجموعي توګه ۳۷۳ عدده سکې تشکيلوي. له دې جملې څخه ۳۳۸ عدده دوم شاهپور پورې مربوط دي ( ۳۷۹_ ۳۱۰ منسيحي) ۲۴ عدددويم اردشير پورې ( ۳۸۳_ ۳۷۹ م) او ۱۱ عدده يې دريم شاهپور ( ۳۸۸_۳۸۳م) پورې مربوطې دي.

پدې ترتيب لکه څنګه چې ليدل کيږي دمرنجان دتپې دبودايي معبد ښکلي کشف شوي مسکوکات موږ دځلورمې عيسوي پيړۍ تر پايه رارسوي.

دتپه مرنجان په بودايي معبد کې دهيکل تراشنې له نظره دبودا مختلفې مجسمې يوديس اتوا او اعانه ورکوونکې کشف شوی تر ټولو لويه مجسمه ده چې ددوو پخوانيو او نوي ديوال ترمنځ کشف او تر لاسه شوی او دکابل موزيم ته منتقل شوې ده. داعانې ورکوونکو مجسمه په داسې لباس کې چې جامې يې په ځان پورې چسپې نښتې او ګونډې يې وهلې کشف شوې ده. يو له دې مجسمو څخه د يوې په لاس کې د ګل وړوکی تاج هم ليدل کيږي .

دمعبد دديوال په اوږدو کې جنوب لور ته يو شمير نورو غټو او ورو مجسمو هم وجود لاره چې له خټو څخه جوړ کړای شوې وې، چې ډير ځايونه يې شنيدلي و او يوه جوړه سترې ښې څرګنديږي چې له طبعي قامت څخه سترې مجسمې هم دلته موجودې دي.

دمرنجان له تپې څخه ختيـن کشف کـړای شـوی لـوښي دکوشـانيانو دعصـر دختينو لوښو دمطالعې په اړه ډير ارزښت لري.
داکـوزې اکثرا مـدورې وې او دبغلونو دپاسه يې شپږ پاڼې والاگلان، زمري او دغرنيو غرڅو تصويرونه کتنل کيدل. او په يوه کې دگل دان په څير دوه مرغان په مخامخ ډول ليدل کيږي او دا پـه واضح تـوگه دساسـانيانو دوخـت کـار راښيـي او همدارنگه ښکلي نقش کړای شوی کوزې هم په لاس راغلي دي.
دمسکوکاتو، ختينولوښو، نشق کړای شوو ظروفو دعمارت لـه سبك او مرمت کاری څخه چې هلته تر سره شوی دی داسې استنباط کيږي چې د مرنجان دتپې بودايي معبد د مسيح دوخت په پيـل کې په لومړي پيړۍ کـې ( دلومـړي څخـه د دريمې) دلويو کوشانيانو دکورنـۍ پـه وخت کې جوړ کـړای شوی و. اود څلورمـې عيسوي پيړۍ تر پايه يې دوام وکړ وروسته دڅلورمې پيړۍ پـه ـای اوذ پنځمـې پيړۍ په جريان کې دشنيدلی، درزونـه يـې کـړي او مرمت کـاري پکې شوې ده او برجونه يې چې ممکن تر ۱۰ مترو بـه لوړ و معبد تـه يې ديوې کلا بڼه ورکړې وه.
داکلاماننده معبد دبالاحصار په لور دکابل په خوا قرار درلود اوداسلام تر راتللو يا تر اوومې عيسوي پيړۍ بودايي راهبانو پکې استوگنه درلوده.

۱۱_۴_۴۱

# يعقوب ليث صفاري او

# دكابل زرين او سيمين بتان

يو شمير اسلامي ماخذونه لکه المسالك وممالك اصطخري، حدود العالم، جيهاني ته منسوب اشكال العالم همدغه دكابل دزړي كلا او د مشهورې بت خانې يادونه كوي چې، على العموم راهبانو يعني كابلي رتبيل شاهانو به هلته دتاج پوشۍ مراسم ترسره كول.
داڅرګندوی چې درتبيل شاهانو دسلطنت په دوره كې كابل يو مهم او مشهور معبد درلود چې دبرهمني او هندوي كابلي كورنيوشاهانه تاج پوشي هلته ترسره كيده. له اسلامي ماخذونو څخه څرګنديږي چې يعقوب ليث دصفاری كورنۍ موسس چې په ۲۵۷ يا ۲۵۰ هـ ق كلونو كې كابل فتح كړی د سروزرو او نقرې بتان يې تر لاسه كړی او بيا يې بغداد ته استولي دي. دسيستان دتاريخ مولف پدې برخه كې داسې ليكي " كله چې يعقوب كرمان ته ورسيد محمد بن واصل يې پذيرايی ته راغی ډير شميرعسكر يې له ځان سره داطاعت ، فرمانبردارۍ او هداياتو له پاره له ډير مال سره يعقوب ته راوړل يعقوب يې عزت وكړ او ښه راغلاست يې ورته ووايه. بيا يې يوتن استازی دهداياتو له پاره او پنځوس زرين او سيمين بتان چې له كابل څخه يې راوړی و دمعتمدپه لور واستول چې مكې ته يې واستوي ترڅو يې دكفار په غم كې دمكې حرم په كار كړي"
نو كابل ته ديعقوب ليث صفاري ننوتل ددريمې هجري پيړۍ نيمائي كې او له دې ښار نه دزرين او سيمين بتانو دوړلو او په نتيجه كې د مهم معبد په ورانولو كې هيڅ شك نشته. داچې دا معبد په كوم ځای كې او څرنګه معبد و؟ دا هغه پوښتنه ده چې غواړم په لنډه توګه يې په چاپيريال كې تجسس وكړم.

دافغانستان اسلامي مورخين عبدالحی ضحاك ګرديزي او محمد عوفي په جوامع الحکايات کې د کابل درتبيل شاه او يعقوب ليث صفاري ترمنځ دجګړو يادونه کړې ده. ددې رتبيل شاه په اړه مې دافغانستان دتاريخ په دويم ټوك خوارلسم څپرکي کې په هغه څپرکي کې چې د رايان کابل يا برهمن شاهان کابل کي مې شرحه ورکړې ده. عبارت له (سامنته ديوا) د هند و شاهي د لړۍ دويم پاچا و چې هغه يې (سامنت) يا سامند هم ياد کړی دی او مسکوکات يې په ډيره پيمانه له افغانستان او سرحدي سيمو څخه پيدا شوي او لا پيدا کيږي. همغه راز چې يعقوب ليث له سامنته ديوا سره په کابل کې مواجه شو ورور يې عمروليث په غزني، کابل او لوګر کې له (کلمو) يا (کملو) ددې کورنۍ له دريم پاچا سره مخامخ شو ديعقوب په امر دکابل مشهور معبد او د ورور په امر يې دلوګر دسکاوند مشهور معبد وران کړای شول.

ايا دکابل مشهور معبد چې کابل [illegible] پوښي کوله او ددريمې هجري پيړۍ تر نيمائي هم هلته طلائي او نقره يي بتان موجودو. چيرته و ؟ دکابل دښار په منځ کې او که په ليرو او نژدو څنډوکې؟

پدې کې شك نشته چې دکابل دغرونو په پوزو او غونډيو کې دبودايي معبدونو بقاياوې له شيوکي، کمري او چکرې نه نيولې دخير خانې تر کوتل او دعلي اباد تر لمنو پورې په ټولو ځايونو کې وجود لاره او دشير دروازې ،اسه مائي او مرنجان تپې په ټولو پوزو او غونډيو کې ليدل شوي او په ځينو کې يې لکه خواجه صفا ، تپه مرنجان، تپه خزانه اودخير خانې په کوتل کې يې اثار او شواهد هم دکيندلو په وجه کشف شوي دي. چې دکابل په موزيم کې موجودې دي.

دخير خانې دکوتل برهمني افتاب پرستي معبد ، دعلي اباد دغره په لمن کې دبودايي معبد ، دشيوکيو ديعقوب تنګي ترخنګ معبد هر يو په خپل ځای دير ارزښت درلود مګر زرين اوسيمين بتان په هيڅ يوه کې ليدل شوي ندي پرته له يو ځای څخه چې دادی در پيژنو يې.

مسن انګريز چې په ۱۸۲۶ او ۱۸۳۸ کلونو کې ۱۳۰ کاله پخوا افغانستان ته راغی او څه موده په کابل کې اوسيده او دامير دوست محمد خان په وخت کې دکابل په بالاحصار کې اوسيده نوموړی دبالاحصار ترخنګ دحضرت تميم (رض) دمزار ترخنګ ديو معبد اوبتانو په اړه صحبت کوي چې وروسته دهغه له اوريدلو منطق حکم کوي چې احتمال لري داهمغه معبد وي چې دصفاري په عصر کې زرين او سيمين اجسام ورکې کشف شوي دي، سمن انګريز پدې اړه داسې وايي چې :

"دشتمن ناو دپای په برخه کې چې له بالاحصار څخه دجنوب غرب په لور په نیم میلې کې پروت دی او له هغه ځایه دغره په کندو دچاردیهي په لور لاره تللې ده پدې برخه کې داخوند هدایت الله باغ دی. پدې باغ کې یوه پشته ده چې دیو لړ هڅو وروسته وریکې دوه طبقې سمځې څرګندې شوې چې ددې سمځو په جوړولو کې له غټو خښتو څخه کار اخستل شوی و. دپشتې په یوه برخه کې یو طاق او پایې او دهرې پایې ترڅنګ ښکلې مجسمې څرګندې شوې ددې مجسمو رنګ سپین او سور و او په سرونو یې دطلا پاڼې جوړې کړای شوې وې. دطلا او لاجورو پاڼې دطاق په منځ کې هم لیدل کیدې. دطاق دپای په برخه کې یو ډبر لیك هم څرګند شو .دپشتې په نورو برخو کې یو شمیر طاقونه او مجسمې هم کشف شوي چې یو یې له ۸ څخه تر ۱۰ فوټو اوږدوالی درلود او دطلا په پاڼو ښایسته شوی و. مسنن انګریز دخپلو ویناو په پای کې وایي چې اخوند هدایت الله او زامنو یې دطلا یو شمیر پاڼې دکابل په زرګرانو وپلورلې...."

لکه څنګه چې یې چارلمسنن تشریح کوي چې په هغه باغچه کې چې دحضرت تمیم (رض) دزیارت ترڅنګ دپخواني بالاحصاردخرابو ته نژدې یوپخوانی معبد دباغ په پشته چې هغه داخوند هدایت الله باغ و ۱۳۰ کاله دمخه لیدل شوی او دمجسمې په سر دطلا دپاڼو ګل په ښکلې دول څرګند شوی. نو ددې حقایقو له مخې نشو ویلی چې دهغه معبد چې بتان یې زرین او سیمین شوي وو او په دریمه هجري پیړۍ کې دصفاري دکورنۍ دموسس (یعقوب لیث صفاري) له خوا بغداد ته استول شوی و په همدغه نقطه کې اباد و؟

دکابل مشهور معبد که دښار په منځ کې و نو باید په همدغسې یوه نقطه کې وای ځکه چې کومې منطقې چې دشهدا صالحین په نوم شهرت پیدا کړی دی او داشهرت هم وروسته له اسلامي مبلغینو څخه منځ ته راغلی نو داځای دکابل دزړې او پخوانۍ کلا ترڅنګ یو مهم ځای و نو ځکه ویلای شو چې له احتمال څخه لرې نه ده چې دکابل مشهور معبد په همدغه ځای کې نه وي.

۳۷/۳/۲

# پایتاوه

لکه څنګه چې مدنیت، فرهنګ او ادیان دخپل عروج او زوال دورې ترسره کوي د هغې په سیر او مرور سره فرهنګي حوزې هم تغیر محل مومي او خپل ځای بدلوي. یوه ورځ چې بګرام او کاپیسې دکاپیسا په حوزه کې ارزښت درلود، که هغه یې په چاپیریال کې و او که دغرونودلمنوپه حصارو کې اوکه هم په میدانونو اوجلګو کې په سلګونو کلیو چې دلیدلو وړو وجود لاره چې نن ورځ د ذهنیت په تغیر په خرابو بدل شوي او د هغو ځایونو مقام او موقعیت نورو ځایونو اشغال کړي دي.

یوله هغو ابادو نقاطو څخه چې اوس یې نوم له خاطرو څخه لوېدلی دی (پایتاوه) ده چې دبګرام دشاهي خرابو جنوب لور ته په ۱۲ کیلو متری کې دسرای خواجه تر څنګ پروته ده اودمعابدونو شواهد یې تر ۳۰ کالو دمخه د زراعتي ځمکو په منځ کې څرګندېدل چې هغه هم دوخت په تیریدو دزراعت په وجه وتوږل شوې اوهغه څرګندې ستوپې له منځ ولاړې او اوس هلته دپخوانی ابادی څه اثار نشته او دا چې دکابل په موزیم کې دهغې سیمې دچاپیریال یو څه هیکلونه چې زراعتي ځمکو ته دویالو دکیندلو په مهال تر لاسه شوي دکابل په موزیم کې موجوددي چې پخواني یادګارونه یې له ځان سره حفظ کړي دي.

په ۱۹۲۳ کال کې چې دلومړي ځل له پاره دوه تنه فرانسوي شرق پیژندونکي موسیو النردفوشه او موسیوهاکن دکاپیسا په طول او عرض کې د (کوهستان اوکوهدامن) په مختلفو نقاطو کې دلرغونو ځایونو دموندلوپه هځه ګشت درلود دکابل دموزیم دهغه وخت دمدیر غلام محی الدین خان دلارښوونې په اثردپاتې ب

کلي ته ورسیدل هلته یې دزراعتي ځمکو کې په منځ کې یو ځای وموند چې له ۳۰ نه تر ۴۰ مترو یې اوږدوالی درلود او عرض یې له ۱۰ تر ۱۵ مترو ؤ دې ځای دیوبودایي معبد ځای اوموقعیت ځرګنداوه.

فرانسوي پوهانو ۳۵ کاله دمخه د ۱۹۲۴ عیسوی کال ددسمبر دمیاشتې په ۱۸ نیټه دلنډې مودې له پاره په کیندلو پیل وکړ دوه ورځې وروسته یعنې د ۲۰ نیټې په ماښام یې لومړی هیکل تر لاسه کړ چې دا ورته ډیر په زړه پورې او دلچسپ ؤ. چې شرح یې په لنډ ډول لیکل کیږي.

دا پارچه هیکل دسلیت په کاڼي کې (ساکیاموني بودا) یې ددوخارقه وؤ داجراء په حال کې ښودلی دی او د (دوه خارقه بودا) په نامه یادیږي. که چیرته داپارچه لا ښه معرفي کړم باید ووایم چې که چیرته یې ښه وګنو نوله دواړو اوږو ځخه یې د اور شغلې پورته کیږي اودپښو له تلوو ځخه یې اوبه روانې دي. په بودایي داستانونو کې راغلي دي چې دکوشالا پاچا په خواهش او هیلې سره چې (پرازناجت) نومیده بودا خارقه قیافه ځانته غوره کړه چې له اوږو ځخه یې شغلې هوا ته پورته شوي اودپښو له تلوو ځخه یې اوبه جاري اوپخپله لکه دیو نوراني غره په څیر په هوا کې جلوه ګر شو.

دتخیل په عالم کې په افسانوي توګه دلته بودا له یوه غره سره تشبیح شوی چې له لوړې برخې نه یې داور شغلې پورته کیږي او ددې خیالي غره له لمنو ځخه لکه دباران داوبو په څیر سیلابونه جاري شوي دي.

پدې پارچه تراشلي هیلکل کې دوه روښانې لارې دبودا له اړخه تیرې دي چې دی یې په رڼائي کې ځرګندیږي (برهما) او (اندرا) یې خواته نژدیوالی کړی دی. بودا په کیڼ لاس دخپلې راهبي یلان کلك نیولی دی اوښيي لاس یې داطمینان دعلامې په توګه پورته دی او په ورغوي کې یې عراده یا (چرخه) چې دحکمفرمایي علامه ده ځرګندیږي.

پاتې دې نه وي چې په پایتاوه کې ددې پارچې ترکشف وروسته په وروستیوکلونو کې همدغه شان پارچې دکاپیسا له ګڼو ځایونو ځخه لکه بګرام او یا له شیخا نخیل ځخه هم تر لاسه شولې په کوهدامن او کهستان کې ددې ډول پارچو دترلاسه کیدو وروسته پوهان پدې نظر شول چې په افغانستان کې کاپیسا ددې ډول تراشلو مجسمو ځانګړی ځای ؤ.

له دې پرته په پایتاوه کې یوبل هیکل هم تر لاسه شوی چې دهنر اوپه ځانګړي توګه دتاریخ له نظره ډیر ارزښت وړ دی داپارچه اصلاً دکومې بلې سترې مجسمې تخت دی چې هغه مجسمه چې ور پکې نصب وه له منځه تللې ده اوپخپله دهیکل تراشنې یوه ښکلې او دلچسپه صحنه ده شرح یې په لاندې ډول ده.

درې تنه اعانه ورکونکي، درې ښځې او درې ماشومان د (پوديس اتوا ميتريا) په شاوخوا ليدل کيږي. داصحنه يوه تاريخي صحنه او اعانه ورکوونکي چې تازه بوداييي دين ته ورداخل شوي دي او ياپې خپلې ډالۍ (بوديس اتوا) يعنې اينده بودا ته وړاندې کړې دي. کميسونه يا پراخې چپنې او کلفت موزې يې څرګندوي چې دوی قبايلي کوشانيان دي چې تازه له مرکزي اسيا نه باختر ته راغلي دي او دادی دهندوکش سويلي برخې ته رارسيدلي دي او دلومړي ځل له پاره بودايي دين خوښ کړی دی او له هغو ډاليو سره چې اکثر ميوې او حبوبات دي د (بوديس اتوا) مخې ته ږدي.

همدارنګه ښځې او ماشومان يې دکشاني له نسل څه دي او ديوې کورنۍ او يا يوې قبيلې استازيتوب کوي چې درارسيدلو په وخت يې لومړي ځل په کاپيسا کې دبودايي معابدو جلال ليدلی او بودايي دين ته داخل شوي دي او نن ورځ دادکانې پارچه چې دکابل په موزيم کې موجوده ده دافغانستان په تاريخ کې يو معين موقف ثابتوي او دپايتاوي وړوکی کلی چې نوم اونښان يې نن ورځ ډير مجهول دی دوه مهمې تراشلې دهيواد لرغوني هيکلونه يې ورکړي دي چې د تاريخ ، هنراوکمال له مخې ډير ارزښت لري او له يوې نومورکې منطقې څخه دکاپيسا په تاريخ کې يوه ځليدونکې پاڼه روښانه شوه.

# میرزکه اودمسکوکاتو مجموعه يې

افغانستان دمساعد جغرافیائي موقعیت له مخې داسیائي هیوادونو په څلور لارې کې دتمدن او فرهنگ مرکز دی او یوله هغو هیوادونوڅخه دی چې ډیره سابقه لري او دتاریخي دورولرونکی دی چې دمختلفو دورونو ډیر مسکوکات پکې موندل شوی او موندل کیږي. دامسئله نن نه بلکې یوه پیړۍ دمخه حتی له ۱۳۰ کالو وړاندې روښانه ده چې دافغانستان خاوره دلرغونو مسکوکاتو له نقطې نظره ډیره غني ده.

لکه څنگه چې دامیر دوست محمد خان دواکمنۍ په دوره کې یو تن انگریز لرغون پیژندونکی مستر مسن یواځې دبگرام له دښتې څخه پدې بریالی شو چې ۶۰ زره مسکوکات راټول کړي.

پدې وروستیوکلونو کې له مهمو کشفیاتو څخه چې په ښار او علمي حلقو کیې یې ډیر غږ اوچت شوی دی هغه په میرزکه کې د مسکوکاتو دکشف مسئله ده چې دې اکتشاف له نن څخه پوره لس کاله دمخه د ۱۳۲۶ کال په پسرلي کې صورت ونیو او زه پدې بریالی شوم له اسلام څخه دمخه مسکوکاتولویه مجموعه له میرزکي څخه کابل موزیم ته راوړم. میرزکه تقریبا دگردیز له مرکز څخه شمال شرقي لور ته په ۳۰ کیلو مترۍ کې واقع ده اوپدې علاقه کې دمنگلو قوم اوسیږي.

دميرزكي علاقه چې چاپيريال يې نسبت گرديز ته لوړ دی په همدغه منطقه کې ميرزكي اواحمدزائي رودونه سره جلا کيږي داوبو دتقسيم له برخې نه درې کيلو متره ليرې دشمال په لور د (چنيحي قول) درود اوبه د (ميرزكي) له اوبو سره يوځای کيږي د (چنبحي قول) دخولې مقابل ته درود کيڼ اړخ ته يوه غونډۍ ځرگنديږي چې دسيمې خلك يعنې منگلي هغه د (کافر کوټ) په نوم يادوی داغونډۍ دسيند له اوبو څخه نژدې ۷۰ متره واټن لري او دسيند داوبو له سطحې څخه نږدې ۳۰ متره لوړ والی لري.

دکافر کوټ سويلي خواته په لوړه يوه توټه مربع شکله ځمکه پرته ده چې په مخ يې پخې خښتې او تيکر ليدل کيږي او داسې ځرگنديږي چې نوموړې غونډۍ او مربع شکله لوړه ځمکه په لرغونو زمانو کې تر اسلام دمخه دمهمو ابادیو يوه برخه وه چې هويت يې موږ ته ځرگند نه دی.

ميرزكي دنيمه وچ سيند په اوږدو کې کافرکوټ ته د ۷۰ مترو په واټن يوه چينه موجوده ده چې د ۱۳۲۶ کال په پسرلي کې په ناخاپي ډول د منگلي قبايلو ميرمنې په نوموړې چينه کې د مسکوکاتو په موندلوبريالی شوې. کله چې دچينې چارچاپيره په مختصر ډول وکيندل شو ځرگنده شوه چې دچينې چارچاپيره يوله لويه خونه جوړه کړای شوې وه چې هرې خنډې يې ۶ متره طول درلود او ددې لوی اطاق ترخنگ نور واړه اطاقونه هم جوړ کړای شوی وو. او اصلاً داسې ځرگنده شوه چې پخوا وختونو کې دمخه تر اسلام او دمخه د مسيح تر زمانې هلته يوه متبرکه چينه وه چې خلك په هغه چينه کې دسکو په اچولو عادتوو په همدې ترتيب د څلورمې قبل ميلاد پيړۍ نه تر دريمې مسيحي پيړۍ پورې د ۷۰۰ کالو په اوږدو کې دافغانستان دمختلفو پاچاهانو دمسکوکاتو نمونې په ډيره پيمانه هلته متراکمې شوې وې.

ترکومه ځايه چې اټکل کيږي له امکان څخه لرې نده چې اصلاً ۵۰ زره پخوانۍ سکې په چينه کې موجودې وې چې ډيره برخه يې سيمه ايزو خلکو دکابل ـ جلال آباد اوپيښور په بنارونو کې وپلورلې هغه څه چې راونيول شوي او کابل موزيم ته راوړل شوې له دې سره چې ډير شمير يې په کيميايي داروگانو دپاکولو پر مهال له منځه ولاړې بيا هم له لس زرو ډيرې موجودې دي.

دميرزكي مسکوکات چې دفلز له مخې نقره اومس دي دنوعيت له مخې يې په دوه برخو ويشو.

یو سیمه ایز مسکوکات دي چې په ځانګړې توګه پرسیمه اړه لري او ډیره برخه یې په سویلي افغانستان، تاکزیلا ټیکسلا او پنجاب کې جوړ کړای شوی او په عموم ډول په ګندهارا کې لیدل کیږي او دپاچا دنوم ذکر پکې نشته او داسکې منظم او مرتب شکل نلري او نورې یې دلرغونو تاریخي کورنیو منظمې اومرتبې جوړې وې لکه دهندوکش دسویل یوناني شاهانو، اسکایانو پارتیانو اوکوشانیانو وې.

لومړی ډول مسکوکاتو ته په انګلیسي بنت بار او پنج مارك وایي چې نقره یې میلو یې خارجي وجود پیداکړی دی او ددویمې یې دنقره یي نازکه پارچې دي چې دهغو په مخ مختلفې نښې چې نوعیت یې تر ۳۰۰ رسیږي لکه دانسان انځورونه، اسلحه، ونې، پرندګان، لمر، ستورې، ځینې ګلان او دیوشمیر ودانیو انځورونه او نور لیدل کیږي.

ددې ډول مسکوکاتو دلومړي ډول پیدا ایښت زمانه یوشمیر پوهانو ۶ م ز پیړۍ ګڼلې ده او داځرګندوي چې دیونانیانو تر ظهور: مخه ددې ډول غیر منظمو نقره یې مسکوکاتو جوړونه دافغانستان په مشرقي برخو یانې ګندهارا کې تر سند پورې دودوه . او د میرزکې دویمه برخه مسکوکات دمختلفو پاچاهانو دکورنیو او نسلونو دمختلفو دورو مسکوکات دي چې وروسته له ۲۳۰ م ز څخه دلومړۍ مسیحې پیړۍ په لومړۍ نیمایي کې یې دافغانستان دهندوکش په سویل او ختیځ کې سلطنت کړی دی.

دا دحیرانتیا ځای دی چې هغه مسکوکات چې په میرزکه کې تر لاسه شوي دیونان اوباختري پاچاهانو هیڅ اثر پکې نه شته چې دهندوکش په شمال باختر کې یې واکمنې درلوده اوبر خلاف دهغو ټولو پاچاهانو اثر پکې لیدل کیږي چې دهندوکش په سویل کې یې سلطنت کړی دی او په ځانګړي توګه د (هرمایوس) چې دکابل یوناني وروستی پاچا و او د(مناندر) مسکوکات زښت ډیر دي.

دامجموعه دکوچنیو نقره یې مسکوکاتو دمطالعې له پاره ددې ډلې پاچاهانوله پاره فوق العاده ارزښتمنده ده.همدا ډول دافغانستان داسکایي خاندان نقره یي مسکوکات او (اسکایي او پارتي) پدې مجموعه کې ډیر ترنظره کیږي.

دکوشانیانو دکورنیو دمسکوکاتوپه باره کې باید یادونه وکړو چې کوفیزس اوکنیشکا دکورنیو سکې پکې موجودې دي او وروستۍ سکې چې دپاچاهانو دنوم او ترتیب له نظره راځي هغه دواسودوا سکې دي چې هغه دکنیشکا دکورنۍ وروستی پاچا ګڼلی شو چې ددریمې پیړۍ تر وروستۍ نیمایي سلطنت کړی دی.

پدې طريقه دميرزکي دمسکوکاتو دمجموعې نوعيت چې په کوشاني (واسودا) متوقف کيږي او يو شمير پوهان داسې اټکل کوي چې احتمال لري دميرزکي دغه ابادي دساسانيانو دپرمختګ اوفتوحاتو په اثر پدې تاريخ کې وران شوي وي.

دميرزکي دمسکوکاتو مجموعه تر ټولوغني او لويه دمسکوکاتو مجموعه ده چې په دسته جمعي ډول دافغانستان له يوې نقطې څخه تر لاسه شوی دی.

موسيوشلو برژه اوموسيو کوريل (په افغانستان کې دمسکوکاتو خزاين) ترسر ليك لاندې كتاب کې ددې خزائينو په اړه ډيرې مطالعې ترسره کړې چې دهغوي مطالعه دارباب تخصص له پاره به ډيرې دلچسپۍ وړ وی.

۴_۱_۳۷

# سجاوند او شهرت يې په اسلامي دور و او دمخه تر اسلامه

دلوګر علاقه ددرې تاريخي ښارونو ( کابل ) ، (غزني) او (ګرديز) تر منځ په يو لويې مثلث کې واقع شوی ده او هغه سيند چې ددې علاقې په نوم ياديږې دنوموړې مثلث له منځ نه تيريږي او دشمال يعنې دکابل زاويې ته نژدې د کابل له سيند سره يوځای کيږي دهغو درې تاريخي ښارونو چې دمخه مو يادونه وکړه چې هر يو په خپل وخت کې تاکلی مقام او پايتخت درلود اونظر په هغه ارتباط چې لوګر په مختلفو دوروکې له نوموړو مرکزونو سره درلود دجغرافياله نقطې نظره تر دې ښه دموقعيت تعبير لوګر نشي موندلی چې داځای په يو لويې مثلث کې راونيسي، په هر حال دلوګر علاقه مو ددرې لويو ښارونو په منځ کې ځکه تصريح کړه چې دامنطقه تل داقتصادي جغرافيې له نقطې نظره ا و دفرهنګي تاريخي او هنر له نقطې نظره ددې درې ښارونو له برکته برخورداره وه او پخپله يې ديوې زرخيزې زراعتي سيمې په حيث ددې درې ښارونو دانبار خانې حيثيت درلود او لري يې.

(لوګر) دبطليموس په جغرافيه کې د (لوکرنا) په نوم ياد شوی او هغه چې تر اسلام دمخه يې دې سيمې ته ډير شهرت ورکړی و هغه په (سجاوند ) کې دلوی معبد موجوديت و ، سجاوند چې داسلامي دورو په ادبي او تاريخي متونو کې لکه حدود العالم المسالك و ، الممالك اسطخري او قانون مسعودي بيروني کې په مختلفو بڼو لکه (شکاوند ) ، (سګاوند ) او (سکاوند ) هم ياد شوی دی داد لوګر جنوب غرب خواته يوه ناحيه ده چې نوم او نښان يې له موقع اوموقعيت سره مشهوراومحفوظ دی.

دمخه مې تصريح کړه چې دلوګر علاقه له يوه مثلث سره شباهت لري چې درې خواته زاويه يې درې لويو ښارونو کابل، غزني او ګرديز خواته قرار نيسي.

سجاوند پدې مثلث کې دجغرافيايي موقعيت له مخې غزني ته نـژدې واقـع شوی او په پخوانيو متونو کې ارتباط هم سره ورکړ شوی دی لکه چې په حدود العالم کې وايي" استاخ اسکاوند په غزني کې دوه ښارونه دي چې دغره په لمنه کې اباد او ډېر گشت او گذر ځايونه دي"

پدې کې شك نشته چې بيروني په قانون مسعودي کې د (سکاوند کـلا) د (لوگر في استاق ) بولي. دا دواړه تعبيرونه سهي اوپر ځای دی پدې ترتيب چې سکاوند د لوگر په جنوب غربي برخه د غزني په لاره واقع دی او د غزني پخوانی لاره له همدې ځايه تيريده اواوس هم وروسته تر يـو څه منزلـه چې (هفت اسيا) نوميږي له هغه کولای شي غزني ته ورشي.

هغه څه چې سجاوند دمخه تراسلام ډيرمشهورکړی و ديوسترمعبد موجوديت و چې خرابې اوبقايايې تراوسه هم دغره په پوزه کې موجودې دي.

دسجاوند دمعبد دځرنگوالي په اړه له دوه تنومرسته ترلاسه کولای شو يـو لـه چيني کتونکي هيوان تسنگ څخه اوبل له محمدعوفي صاحب څخه چې تاريخ دجوامع الحکايات ښبنتن دی.

هيوان تسنگ وائي چې د (تسو _ کو _ تا) علاقه چې غزنی او دهغې نـورې ښندې يې په برکې نيولی هلته يو برهمني معبد و چې هغه يې د (شونا معبد) په نوم هم ياد کړی دی لکه څنگه چې دشيوائي او لمر پرستی اثار له دريو لويو تاريخي ښارو کابل ، غزني او گرديز څخه تر لاسه شوي چې درې واړه دلوگر په ماحول کې واقـع دي نـو پـدې کـښې شـك نشـتـه چـې دسـجاوند معبـد هـم يـو لـه دغو اديانو سره ارتباط لري.

شپيته کاله وروسته له نوموړي چيني ليدونکي څخه ، محمد عوفي په خپل جوامع الحکايات کې پخوانی خاطرې تجديدوي او له ليکنو څخه يې معلوميږي چې دسجاوند معبد ددريمې هجري پيړی تـر دويمې نيمائي پورې يعنې د (کملو) يا(کلمو) د سلطنت تر زمانې پورې يعنې دکابل دشاهي برهمن دريم پاچا او دعمر وليث دصفاري کورنی د پاچا دواکمنی‌تر زمانې پورې اباد ؤ لکه چې وايي " در آنوقت معبد بزرگ هندوان سکاوندبود ودر اقصاء هندوستان بزيارت بتان آن موضع تبرك كردند "

نور شواهد هم ددې نظريې داثبات له پاره اودسکاوند دمعبد داهميت په اړه په لاس لرو چې عبارت لـه مسکوکاتوڅخه دی د يو ډول مسکوکانو په مخ دکوشان اويفتلي شاهانو چې دسکه پيژندونکو په وړاندې دشاهي (تگين) يا ( تجين) په نوم

شهرت لري دايو ډول نيم تني هيکل دی او دافغانستان دځينو ځايونو نومونه پکښې چې ضمناً د (سګاوند) نوم هم پکښې لوستل شوی چې دسکاوند ياسجاوند اهميت او دمعبد ارزښت دواړه څرګندوي.

دقرائنو له مخې ويلی شو چې دسجاوند معبد لکه دخيرخانې دکوتل معبد چې لرغون پيژندونکو يې هويت څرګند کړ يو دلمر پرستی برهمنې معبد ؤ او شهرت يې دکابلي رايانو داقتدار په موقع او يا د کابلي برهمن شاهانو په وخت کې له افغانستان څخه پرته په هندوستان کې هم شهرت درلود.

دسجاوند معبددريمې هجري پيړی تر دويمې نيمائي پورې اباد ؤ تر هغې پورې چې عمر و ليث صفاري کابل پلو ته د فتوحاتو په وخت دزابلستان دښار موظف چې (فردعان) نوميده له څلور زره سپروسره موظف کړ تر څو هغه ځای فتح کړي عوفي وائي " فردعان چې کله زابلستان ته ورسيد لښکر يې جوړ کړ شکاوند يې ازادکړاوبتان يې ورمات کړل بت پرستان يې له منځه يوړل يومقدار غنيمت يې لښکر ته ورکړل اونور يې عمر وليث ته واستول فتح نامه يې ورته وليکله او مرسته يې څنې وغوښتله.."

سجاوند وروسته له دريمې هجري پيړی دنورو څو پيړيو په اوږدو کې داسلامي ادب او فرهنګ مهم مرکز و لکه چې يوشمير علماو او عاليمقامو مفسرينو له دې ځايه سر پورته کړي چې نن ورځ يې متبرك مزار ونه دعامو او خاصو زيارتګاوې دي.

دغزنويانو په وخت کې يوه کلا او محبس په سکاوند کې جوړ کړای شو. دغزنويانو دآبادی اثار دپخواني معبد دديوالونو او سنګ کاری څخه څرګنديږي او په يو يادوه ځايونو کې پخوانی سنګ کاري چې تر اسلام دمخه شوی او دغزنوي عصر ابادی دواړه ښې څرګنديږي. اوعملاً راښيي چې څرنګه دپخوانيو معتقداتو، فرهنګ او معماری ځای داسلام دين،تمدن او معماری ونيو.

۸ _ ۳ _ ۳۷

# دسکاوند بُت خانه

دافغانستان له مشهور و بُت خانو څخه يوه هم دسکاوند بت خانه ده چې حتی داسلام له خپريدلووروسته يې دهيواد په ځينو غربي برخو کې دصفاريانو تروخت پورې خپل شهرت دلاسه ورکړی نه و، پدې پوهيږې چې (سکاوند) چيرته دی؟ دانوم چې په مختلفو بڼو لکه (سجاوند)، (شجاوند) او (شگاوند) هم ضبط او تلفظ شوی دی داځای په لوگر کې دغزني دپخوانی لارې دپاسه واقع دی چې تر اوسه همغه پخوانی نوم مشهور دی او دې نوم چې يو وخت شهرت درلوددلوگر په ټوله ساحه تطبيق کيده.

دحدودالعالم من المشرق الی المغرب دکتاب ليکوال ليکي چې:

"استاخ اوسکاوند په غزني کې دوه ښارونه دي چې دغرو په لمنو کې واقع دی اودښې کرهنې ورې دی" دا جغرفيايي تعريف ډير سهي او دقيق تعريف دی، داستاخ په اړه تر اوسه څيړنه ندی شوی او موقعيت يې په سهي توگه ټاکلی نشو مگر د (سکاوند) موقعيت واضح دی چې دلوگر په غربي برخه کې ديو لوړ غره په پای کې واقع دی او دا غر دغزني اولوگر ترمنځ په يوه فاصله کې واقع شوی او د موټر اوهغه سرك چې له لوگر څخه غزني ته ورځي اوپل علم دبرکي برك له لارې له شيخ اباد سره وصلوي نو دسکاوند له خوا تيريږي.

سکاوند له اسلام نه دمخه دورو کې دیو لویې (برهمني) افتاب پرستۍ معبد په درلودلو ډیر شهرت درلود او دشهرت ساحه یې دافغانستان له سرحداتو دباندې وتلې وه ان داچې ترهندوستان پورې رسیدلې وه.

ددې علاقې او ددې معبد دځرنګوالي په اړه دوه مهمې تاریخي منابع په لاس لرو چې د چیني هیوان تسنګ خاطره او بل دمحمد عوفي جوامع الحکایات کتاب چې یو داوومې مسیحي پیړۍ په لومړي نیمایي کې او بل داوومې هجري پیړۍ په لومړیو کې معلومات راکوي اوددواړومعلومات یوله بل سره تر ډیره حده تطبیق کیږي.

چیني لیدونکی چې کله دتسو - کوته له سیموڅخه یعنې زابلستان (د کابل جنوب غرب علاقه دغزنې په ګډون، لوګر، ګردیز ترمقر پورې) څخه یادونه کوي دخلکودعادتونو اودیانت په اړه یې داسې وایي، پدې ځای کې څو سوه معبدونه او نژدې یو زرتنه راهبان وجود لري اودنجات دلویې لارې پیروان دي پاچایي په مذهبي عقیده سمه ده او په مذهبي چارو ډیره هڅه کوي ډیر پوه شخص دی اود پوهې او فرهنګ ډیر علاقمند دی. پدې ځای کې تقریبا لس استوپې دي چې داداشوکا پاچا یادګارونه دي او لدې پرته څو برهمني معبدونه هم وجود لري اومختلفو مذاهبو پیروان پکې ژوند کوي. برهمنیان ډیر زیات او بې شماره دي او ډیره برخه یې د اشوکا پرستش کوي، دا دین دکاپیسا دارونه له غره نه دې ځای یعنې سویلي برخو ته دسرنه ګیر غره ته وړل شوی او معابدونه ورته اباد کړای شوي دي. د سیمې او د لیرو منطقو خلک ټول ورته د احترام په سترګه ګوري او پیروي یې کوي.

دسیمې شهزاده ګان اونجیب خلك اوهمداراز دګاونډیوهیوادونو وګړي هر کال په ټاکلي وخت ددې ځای لیدلو ته راځي سرهزر اوسپین، غوایان او پسونه دنذر په توګه راوړي.

(شونا) دلمر ځانګړی خدای او دشونا معبد (عبادت ځای) عبارت له لمر پرستۍ څخه و. دلمر پرستۍ دیانت زموږ په هیواد کې ډېر پخوانی دی او لمر ته د احترام کولود اساس اریایانو له دې ځایه هند ته دهجرت په مهال هلته یوړل شو. دلویو کوشانیانو له وخت نه راوروسته د اسلام تر خپریدلوسره لدې چې بودایي دیانت دافغانستان نیمه شرقي برخه کې عمومیت لاره نو لمر پرستي یې هم په خوا کې دوام درلوداودلمر پرستۍ یو مشهور معبد د کابل په ۱۲ کیلو مترۍ شمال

غرب لور ته دخير خاني په كوتل كې وجود لاره. چې دكيندلو په نتيجه كې دسوريا مرمري ښكلې مجسمه له هغه ځايه كشف كړاى شوې ده.

نودچيني ليدونكى دياددونو په اساس پدې كې شك نشته چې د (سكاوند) په علاقه كې يو دلمر پرستۍ مشهور معبد وجود لاره او دا معبد ته يواځې دسيمې خلكو داحترام په نظر نه كتل بلكه له نورو هيوادونو څخه په ځانگړې توگه له هند څخه خلك زيارت ته راتلل.

داسلامي دورې دنورو ماخذونو په اساس چې زموږ په لاس كې دي يعنې دمحمد عوفي دليكنو په اساس چې په جوامع الحكايات كې يې ليكلي دي دسكاوند بتكده ددرې لومړيو هجري پيړيو په اوږدو كې دصفاريانو دكورنۍ دمنځ ته راتللو پورې اباد او د ډير شهرت لرونكى و.

عوفي وائي: " .... په هغه وخت كې دهندوانو لوې معبد سكاوند و اوپه هندوستان كې دې زيارت ته دتبرك او احترام په نظر گوري

دابُت خانه دعمر وليث صفاري دسلطنت تر زمانې چې معاصر يې (كملو) يا )كلمو) نوميده او هغه برهمني دريم پاچا كابل په سويلي او شرقي علاقو مارت درلود، آباد و او بيا دعمر وليث داستول شوې قوماندان فرد عان په واسطه وران كړاى شولكه چې پدې اړه عوفي وائي.

"فردعان چې كله زابلستان ته ورسيد لښكر يې جوړ او سكاوند يې ازاد كړ بُتان يې ورمات او بُت پرستان يې له منځه يوړل ځينې غنيمت مالونه يې دلښكر كسانو ته وركړل او پاتې يې عمر وليث ته واستول ..."

دجوامع الحكايات دمولف په ښكاره شهادت شك نه پاتې كيږي چې دسكاوند معبد دبرهمني لمر پرستۍ معبد دڅلورمې هجري پيړۍ تر دويمې نيمائي يعنې تر لسمې مسيحي پيړۍ آباد و او د عمرو لېث صفاري داستول شوي لښكر په واسطه دسكاوند ښار ازاد او فتح شوې بُت خانه يې ورانه كړې او بُتان يې ورمات كړي دي.

هغه مطالب چې د (شونا) دلمر دځانگړي خداى ددينانت په اړه او دلمر پرستۍ سكاوند دمعبد په باره كې ذكر شول د (كوشانو يفتلي) د مسكوكاتو دمطالعاتو له مخې او شاهي تگين له مخې په وضاحت سره تائيد كيږي ځكه چې هم نيم تنه هيكل دلمر ځانگړې خداى په مسكوكاتو كې نقش دى او هم دسكاوندنوم هلته ليكل شوى دى البته داسې نور مسكوكات هم شته چې دلمر دځانگړي خداى په

نیمه تنه نقش سره دنورو سیمو نومونه لکه (زابلستان) او (زمینداور) پکې نوستل کیږي

پدې ترتیب سره په ثبوت رسیږي چې دسکاوند دکابل په جنوب کې دلمر پرستۍ مشهوره بت خانه وه چې دلوګر، غزني او ګردیز په علاقو کې یې ډیر پیروان درلودل. دمخه دعمر لیث صفاري ترزماني کابل دیعقوب لیث صفاري دواکمنۍ په وخت کې دوروستي ځل لپاره پخپله دافغانستان دمسلمانانو له خوافتح کړای شواو لوګر یې سره له مشهور ښار سکاوند سره د عمر لیث په وخت کې فتح شو او دسکاوند بت خانه ورانه کړای شوه همدلته ؤ چې په کابل او سویلي خواو کې یې دبرهمن شاهانو مقاومت پای ته ورسید.

۴۱/۶/۶

# د ارزګان ډبر لیک

دهلمند او ارغنداب ددوو سیندونو ترمنځ دقندهار دښار شمال لور ته ددوه سوه کیلو مترو په اندازه دافغانستان دجغرافیائي نقشې په مخ د (ارزګان) کلمه لوستل کیږي.

دارزګان علاقه پدې صفت یو وړوکی بین النهرین دی دا علاقه یوه غرنۍ علاقه ده چې شمال او جنوب یې دوه لویو سیندونو راچاپیره کړی دی ارزګان داوسني قندهار شمال لور ته ددوو سیندونو هلمند او ارغنداب تر منځ یوه مهمه تاریخي علاقه ده، دې علاقې تر اسلام دمخه او په اسلامي دورو کې او په ځانګړې توګه دغوریانو او غزنویانو په وخت کې ډیر ارزښت درلوده، او لدې امله چې علمي څیړنې پرې نه دی شوي نوخاصه اطلاع یې په لاس نشته پرته له دې چې یو شمیر تاریخي شواهد اوخرابې یې څرګندیدلی او اوس چې ښاغلی بینوا اطلاع راکړه یوشمیر ډبر لیکونه څرګند شوي او هغه اطلاع یې څوکاله دمخه دتاریخ انجمن مستر بیوار انګریز لرغون پیژندونکي ته ورکړه چې نوموړی هغه مهال قندهار ته روان و هلته وروسته له یو لړڅیړلو او کیندنو دوه ډبر لیکونه کشف شول چې دتاریخ له نظره ډیرپه زړه پورې ارزښت لري او دانګریز مدقق په نظر دیفتلیانو په دورې پورې اړه لري.

دمستر ) بیوار) دڅیړنو په اثر چې عملا او شخصا ارزګان ته تللی دی داسې وایي چې دقندهار شمال غرب لور ته د ۱۵۰ میلو په واټن ډبرلیکونه په لوی کاڼي کې کلك کیندل شوی دی. نوموړی په دې باره کې ددوه ډبر لیکونو په لیدلو بریالي

شو یدي چې تقریباً نیم میل یو له بله لیرې پراته دي او پرته له دی دنورو ډېر لیکونو دموندلو احتمال هم شته.

لومړی ډېر لیك عبارت له دوه کرښو څخه دی چې په یوناني شکست رسم الخط لیکلی شوی اوکولای شو چې هغې ته ( یوناني یفتلي) ووایو لکه څنګه چې ټول پوهیږو چې یوناني لیك دود او حروفو وروسته دیونان باختري دسلطنت دورې څخه یعنې له دوه نیمو پیړیو دمخه تر میلاد څخه نږدې دسلطنت دورې څخه یعنې له دوه نیمو پیړیو دمخه تر میلاد څخه نژدې ۷_۸ پیړۍ نور هم په افغانستان کې داسلام دڈین تر خپریدلو زموږ په هیواد کې رواج درلود او مختلفو کورنیو لکه کوشاني، کیداري او یفتلي هغه په خپلو ژبو کې استعمالوله لکه د (سرخ کوتل) او ( سرپوزي) لوی ډبر لیکونه چې دهندوکش شمال او جنوب ته کشف شول ددې نظریې ملاتړ کوي او په ځانګړي توګه داشوکا هغه ډبر لیك چې په نژدې وختو کې قندهار ته نژدې کشف شوی و دیوناني لیك دود ارزښت او دهغې دود دارغنداب په حوزه کې حتی تر دریمې قبل میلاد پیړۍ پورې ثابتوي. نو دادتعجب خبره نه ده چې دقندهار شمال غرب لور ته په ۱۵۰ میلي فاصله کې دیفتلیانو دعصر ډبر لیکونه په یوناني لیك دود کشف شوی دی.

دویم ډبر لیك نسبت لومړي ته دجیپ موټر په لاره لږ څه منحرف دی او دکاروانو په پخوانی لاره واقع دی او لکه څنګه چې موویل له لومړي ډبر لیك څخه نیم میل فاصله لري اودغره لمنې ته نژدې دی

هغه کانی چې مطلوبې لیکنې یې په مخ کلکې کیندل شوی دی یو ډول تور ته ورته قشر لري چې شاید دباران دریزش په وجه منځ ته راغلی وی هغه کسانو چې دالیکنې حك کړی دی نوتور قشر یې دحك کمولو په مهال پورته کړی، په دې ترتیب دحروفو د نقر عمل ډیره ژورتیا نلري مګر په څرګنده لوستل کیږي او په ښه توګه یې عکاسي ترسره کیدای شي.

دموسیو بیوار دمطالعاتو مطابق دهغه پخپله عقیده تر اوسه کاملي قطعي صورت ندی نیولی خو په ابتدائي ډول هم ددلچسپۍ وړ دی ځکه څرنګه چې کتل کیږي دافغانستان دتاریخ له نظره دډیر ارزښت وړ دی، ځکه دوه حساسونقاطو ته به پاملرنه وکړو چې یو یې جغرافیائي تاریخي ماهیت او بل یې تاریخي ارزښت لري پدې ډول چې نوموړی مدقق په لومړي او دویم ډبر لیك کې د (زابل) او ( مي

هبیرا نولا دنومونو یادونه کړې ده او پرته له دې د (بغ) و (شاه) کلمې یې د (بغو) او (شاوو) په صورت قرائت دی.

نن ورځ چې تقریباً دوه کاله دورزګان دکتیبې له کشف نه تیریږي دسرخ کوتل په لویې ډبر لیك دوه کلمې د (بغو) او (شاوو) چې دکنیشکا پاچا په اړه دې ګورو یعنې د ا دوه کلمې (خدای) او(شاه) دی اوکوشاني کنیشکا خپل ځان (خداونګار شاه) بللی همدا راز دارزګان په ډبر لیکونو کې یفتلي پاچا لکه دکوشاني دعصر په دود خپل خان ته د(خداوند ګار) او (شاه) لقب ورکړی دی.

مستر بیوار وائي چې له هغو خاصو نومونو څخه چې یادونه یې وشوه یو دځای نوم (زابل) او بل د ذات نوم (مي هبیراکولا) یې یاد کړی که چیرته نوموړی مدقق ددې دواړو کلمو په لوستنو کې بریالی وي (ځکه چې په راپور کې یې نومونه پوره قرائت شوې نه وو او تر څه حده یې له اټکل نه کار اخستی و ) نو دارزګان ډبر لیکونه به ډیر ارزښت پیدا کړی، ځکه تر کومه ځایه چې پوهیږو زابل دجغرفیائي مفهوم په حیث دارغنداو حوزه هم په برکې نیوله او (مي هبیراکولا) دیفتلیانو مهمترین او مشهور ترین پاچا و. چې په (۵) مسیحي پېړۍ کې دافغانستان په جنوب غربي برخو کې سلطنت ته ورسید او مقتدر دولت یې جوړ کړ چې بیا څو ځله دافغانستان له غرونو نه یې دهند په خاوره حملې وکړې او فتحې یې حاصلي کړې او نوموړي په ډیرو مسکوکاتو کې خپل ځان د (شاوو زابل ) یعنې دزابل یازابلستان پاچا بللی دی.

په هر حال د ارزګان ډبر لیك چې دلته مو پرې په لنډ ډول خبرې وکړې سره له دې چې تر اوسه په بشپړه او ډاډمنه توګه تحلیل شوی نه دی خودجغرافیا ،تاریخ، ادب، لیك دود او ژب پیژندنې په اړه ډیر اړزښت لري اویقین لرم چې دهغې په رڼا کې به یوه ورځ ډیر مهم تأریخي او ادبي مطالب حل کړو.

۱۹_۴_۳۷

# سمنګان

دپلخمري او تاشقرغان دلارې په منځ کې دډېرې ښې آب وهوا لرونکې سيمه لرو چې پدې وروستيو کې يې د (ايبک) په نوم شهرت پيداکړی دی مګر اصلي اوپخوانی نوم يې سمنګان دی چې پدې نوم دلرغوني ادب په ماخذونو کې ډېر شهرت لري.

دحدود العالم من المشرق الي المغرب ناخرګند مؤلف چې دخپل وخت ښه جغرافيه ليکونکی و او په څلورمه هجري پيړۍ کې دافغانستان په شمال دګوز ګانان په برخه کې اوسيده نوموړی په ۳۷۲ هجری پيړۍ کې خپله ارزښتمنه جغرافيه تاليف کړه نوموړي دسمنګان په هکله داسي ليکي:

" دسمنګان ښار دغرونو په منځ کې واقع دی په هغه ځای کې غرونه ډير دي او ټول لکه درخام دکاڼي په څير سپيني دي او دسيمې خلکو دهغې په منځ کې خونې جوړې کړي.

((هلته د هيکل تراشنۍ مجللې ودانۍ د زراعتي ځمکو په منځ کې له يو شمېر بت خانو سره ابادې دي او دپای په برخه کې يې لکه دمجللو ودانيو په څير ودانۍ دی چې دسيمه ايزو خلکو له خوا پرې ښکلي انځورونه ترسره شوي دي اوهغه مناطق ډير ښه شراب او ډيره ميوه لري))

ايبک يا سمنګان دافغانستان په شمال کې يوه مهمه منطقه کې واقع شوی دی چې پدې وروستيو کې ورځ په ورځ دتاريخي اثارو دکشف په وجه يې ارزښت ډير

زيات شوی دی لکه چې دکار لنتن کوت چې نومړی دکیندلو او څیړنو متخصص دی ددې امریکائي پوه چې دقبل التاریخ په دوره تخصص لري ایبك ته نژدې په قره کمر کې دکیندنو په وجه یې ویلی شو چې د ۳۰ او ۵۰ زره کال م ز په شاوخوا کې دهندوکش ښکاریانو دځپل ژوند لومړی دکاني دورې دهمدې منطقې په غرونو کې ترسره کړي او دایبك ته نژدې غرونه دکاني ددورې یعنې ترتاریخ مخه خلکو په افغانستان کې دژوند مرکز و، سمنګان د غوري اوبغلان یادبغولانګو ، خلم او بلخ تر منځ ډیر مهم موقعیت لري او دسمنګان شرقي لور ته دسرخ کوتل داورتون کشف دلویوکوشانیانو په عصر او دمسیحي په لومړی پیړی کې ددې سیمې په تاریخ ښه رڼا اچوي.

سمنګان ته نژدې یوه بله منطقه داباطك په نوم لرو چې ډیره مشهوره ده او داهم دکوشانیانو په وخت کې اباده وه او ددې عصر اثار او مسکوکات هم هلته لیدل شوي دي او بیا همداشان دسمنګان جنوب لور ته په زندان مشهوره دره کې سمځې او ډیره ابادي په نظر راځی چې یوه منطقه پکې دهزارسم په نوم ډیر ارزښت لري او په نظر کې دی چې ایتالوي پلاوی پدې کال هلته په علمي څیړنو لاس پورې کړی.

لنډه داچې له دې څو کرښو داسې څرګندیږي چې سمنګان دتاریخ او جغرافیې له نقطې نظره ډیر ارزښت درلوداو لرې یې اوهمدا راز دهجرت له پخوانیو دورو څخه راپدې خوا په قبل تاریخ اوتاریخي دوروکې او همداشان دمخه تر اسلام او په اسلامي دورو کې دژوند اومدني مرکزونو څخه دی اوباید ووایو چې دبغلان اوبلخ دلارې دپاسه موقعیت یې موقف ورلوړ کړی دی.

دحدود العالم دلیکوال د لنډ او وجیز متن دټول لنډوالي سره چې لرې یې دهغو کسانوله پاره چې له پخواني متن سره اشنائي لري ډیر دقیق او جامع دی څکه چې په څو لنډوټکو کې جغرافیایي او اقلیمي اوضاع او څرنګوالی یې د تاریخي اثارو له شواهدو عمراني ښیګڼو نباتي پیداوارو سره هلته شرح کوي.

ترکومه ځایه چې ټول پوهیږو هغه ځه چې سمنګان ته د تاریخي اثارو دشهرت په وجه ور حاصل دی هغه له یوکاني څخه جوړه یوه ستره استوپه ده چې دمحل دخلکو په عرف کې د (توپ رستم) په نوم یې شهرت پیداکړی دی دې استوپې په خپله خواکې یو معبد هم درلود چې دیو وړوکې غره په منځ کې جوړ کړای شو نوځکه په ظاهره نه څرګندیږي او حال داچې دامعبد پدې وړوکې غره کې دباختر دډیرو مهمو معابدونوڅخه و.

دسمنگانو دکانو ستره استوپه ۸۰ متره احاطه لري او دپخوانـي افغانستان دبودايي عصر دمعمارۍ عجيبه نمونه ده.

پـه وړوکـي غـره کـې دلويـې کيـنـدل شـوې مجلـل معبـد دهليزونـه دراهبـانو اجتماعي اطاقونه او نور ملحقات يې په مراتبو دکاني لـه استوپې څخه عجيبه دي او يقيناً چې دابادۍ په مهال به يې دهيواد له ګاونډيو هيوادونو څخه ډير خلك ځانته جلب کړي وي.

دورانو شـوو کورونو چې يادونـه يـې دحدود ا لعالم مولف کړې ده همدغـه دمعبد خونې او حجرې دي اؤ په بل تعبير يې هغې ته بت خانه ويلی ده، بت خانې ته په لغوي معنا کې دبودا کور وايي چې په فارسۍ ژبه کې يې پورتنی بڼه خپله کړې ده او دبودا کور په حقيقت کې همغه خونې او حجرې دي چې په هرې يوې کې يې يوه يا څو دبودا مجسمې له ختو يا کانو تراشل شوی يا جوړې شوي ايښې وي.

په هغه متن کې چې پورتـه موولیکـل دحدود العـالم مولف پـه سمنګان کـې د کوشکونواو مجلسونو يادونه هم کړې ده، که چیرته کوشك پـه عـام مفهوم دکـور يا قصر کلمه ونيسو نو بيا ويلی شو چې استوپې تـه نژدې دوړوکې غـره پـه دننه کې خونې کيندل شوي وي او( مجلسونه) دلتـه حتماً دزينت ورکولـو صحنې او هيکل تراشنې دي چې پـه رنګه او برجسته توګه دخونو پـه ديوالونو يې وجودلاره او هغه خاطرې يې حدودالعالم زموږ تر غوږونو رارسوي، دحدود العالم مولف وايي چې دهندوانو کره وره ډول ډول صورتونـه پـه کوشکونو کښل شوی و دلتـه مقصد لـه هندوانو څخه دسمنګان سيمه ايز بودايان دي او دهغو نقش کړی رنګه مجلسونه او پـه ديوالونو يې رنګه تصويرونه پرتـه لـه سمنګان څخه پـه باميان، فندقستان، غوربند او دهيواد په ډيرو برخو کې مشهور دی.

دحدود العالم مولف دسمنګانو دانګورو او ميوې تعريف هم کوي او دا تعريف يې ډير په ځای دی ځکه چې دايبك دخوندورو ميوو لرو دخرم باغونه يـې دهيـواد پـه شمالي برخو کې ډير مشهور دی.

ترکومه ځايه چې شواهد په لاس راغلي څرګنده ده چې ايبك يا پخوانی سمنګان دخپلو حاصلخيزو غرونو، غونډيو او جلګو لـه لرلو لـه پخوا زمانوڅخه يعنې چې حجر او غـارونو اوسيدلوله دورې راوروسته تـل دژوند کولو مرکز پاتې شوی، او هغه دکاني استوپه او دغونډۍ دننه معبد يې چې نژدې ورتـه دبودايي دورې ډېرې بقاياوې موجودې دي چې فرانسوي ختيځ پيژندونکی موسيو فوشه پـه عقيـده يې تاريخ ۵ مسيحي پيړۍ ګڼلای شو.

دایبك دکاڼي استوپه دبهرنیو نړۍ ګرځیدونکو له نظره ډیر ارزښت لري خو لکه څنګه چې ایبك دپل خمري، تاشقرغان، او مزار شریف په لویه لار واقع دی نو ډیر مسافرین قصداً له هغه ځایه عبور او مرور کوي، دتپې دننه دمعبد حفاظت او مراقبت دتاریخي اثارو او توریزم له نظره ډیره او جدي پاملرنه غواړي او دا حیف دی چې نړۍ ګرځیدونکي دسمنګان دتپې دمنځ ابادي ونهٔ ګوري نو باید ووایو چې داطاقونو او دهلیزونو پاکول او په ځینو برخو کې یې دڅراغو نصب کول او لارښوونه یې یو لړ زحمتونه او لګښتونه غواړي .

۴۱/۵/۲۱

# دهندوکش تهذیب

هندوکش په افغانستان کې دملا دتیر حیثیت لري چې ددنیا له بام پامیر څخه شروع اودهیواد په منځ کې له شمال شرق نه جنوب غرب په لور اوږد پروت دی او پدې هیواد کې ډیر شمیر غرونه که په شمال کې واقع دی او که په جنوب کې تقریبا ددې لویې غره شاخونه او لړۍ ګڼل کیږي دهمدغو غرونو لوړوالي د افغانستان طبقات الارض برخوته ارتفاع وربښلې ده او دا غر په خپل ټول اوږدوالي کې دګڼ شمیر سیلابي اومستو سیندونو سرچینه ګرځیدلې ده.
دهندوکش دغرونو په لړۍ کې دایبك په سیمه کې چې دنوموړي غره شمالي برخه ده امریکایي لرغون پیژندونکی دقبل التاریخ متخصص داکتر کارلنتن دقره کمر دسمځې په اړه یو لړ څیړنې ترسره کړي، هغه وایي چې له ۳۰_ ۵۰ زره کالو دمخه داځای دیو شمیر ښکاریانو داوسیدلو ځای و چې دمدنیت تر ټولو پخوانۍ (پاله او لې تیك) دوره او دحیواناتو په ښکار مشغول و دا په غرونو کې دکیندنو دسوړو ژوند له ډیرو ابتدائي وسایلو سره چې دچقماق له تیګې څخه به یې جوړول تر ټولو دکانې پخوانۍ یا (پاله اوکاتیك) دوره یې منځ ته راوړلې ده.
دهندوکش دغرونو لړۍ دعلمي شواهدوله مخې او دفولکلوري اسطورو او داستانونو په اساس د پخواني افغانستان داوسیدونکو مرکز او د اوسیدلو ځای و. د اوېستا په دریمه فقره کې ددې غره پخوانی نوم (زمیادیشت) او په لسمه _ یوولسمه فقره کې (یسناوي) او د (یوپائي ریسنا) په صورت یا (ایشکته یوپائي ري سنا_ یادشوی چې (دعقاب له الوتنې لوړ) یا (دعقاب دالوتنې له حد څخه لوړ) معنی لري. او دا غر د (اپارسین) په نوم هم یاد شوی او دا پهلوي تسمیه عبارت له همغه اوستائي نوم څخه دی چې یورته مو ولیدل او په لږ تحول سره د (اپارسین) په

ښه راغلي چې دا له دوه کلمو (اپار) يعنې ماورا او پورته (سين) يعنې (عقاب) څخه مرکب دی چې بيا هم ددې عظيم لوړ والي دعقاب له پرواز يا الوتنې څخه پورته ښيي.

د (اپارسين) غر ديونانيانو په نظر کې چې له سکندر سره افغانستان ته راغلي وو ډير اسرار لرونکی معلوميده او هغه يې دجهان اخر او منتها باله. دهندوکش موجوده نوم اصلاً د (انديکس) له کلمې څخه منځ ته راغلی او بيا له هغې څخه (هنديکس) او (هندوکش) جوړ کړ.

دهندوکش دغره لړۍ له تاريخي پخوانيو اوسيدونکو را پدېخوا دښکلو خلکو داوسيدلو مسکن و. چې هغوی ته بايد په اروپائي اصطلاح (هوموالپيوس) يعنې (د غره خلك) ووايو. دوی چې هر خوك و خو ددې غره لومړي اوسيدونکي وو. او وروسته داريائي قومونو ډلې چې له شمالي برخو د سر دريا او آمو دريا دمنځ له حوزې نه دافغانستان په خاورو کې خپاره شوې ددې غره ددواړو خواو په لمنو کې يې ځای ونيو، هندوکش داريائي لهجو په شهادت که هغه اريائي و او که هندي دواړه په مخلوط ډول داريائي قبايلو مقر وګرځيد او دا خصوصيت يې حفظ کړ او يا تر اوسه دنورو صافو اريائي امواجو چې ددې عظيم غره په لارو کې دی درك کولای شو.

لکه څرنګه چې دهندوکش درې ژورې او ورتلل يې ستونزمن و، اوهمدارنګه کلا ګانې يې ډيرې لوړې وې نو ځکه يې لرو اوسيدونکو ددوه نيم زره کالو په اوږدو کې له خپلو ځايونو حرکت کړی دی او په ځينو برخو کې ځای په ځای پاتې دي او په عموم ډول يې دژوند کړه وړه دپخوا په څير محافظه کړی دی.

متاسفانه چې دهندوکش دپخوانيو اوسيدونکو دژوند د مراتبو يعنې اجتماعي، فرهنګي هنري او ادبي څرنګوالي جوتول اسان کار نه دی. خو که چيرته ښه دقت وشي، نو ليدل کيږي چې ددې غره د لړۍ نيمه شرقي خوا له خنجان څخه تر چترال او پامير پورې تر اوسه د ژوند يوه ځانګړې صبغه لري.

چې دژوند په پخوانيو کوايفو يې لږه ډيره رڼا اچوي.

په خنجان، اندراب، شتل، پنجشير، سالنګ، سنجن، درنامه، ريزه کوهستان، نجرو، تګاب، لغمان، کنړ، نورستان، چترال، سوات، باجوړ، او دپامير په لمنو کې خلك ژوند کوي چې دهندوکش دپخواني تهذيب وارثين دي. په دې ټوله پراخه ساحه کې او په ځانګړې توګه په شرقي برخو کې يې دمعمارۍ طرز يو شمير عوامل لري چې لوړوارتفاعاتو او غرنيو برخو کې دواورو په وجه منځ ته

راغلی دی، دنورستان دلرګیو کورونه چې له تېرو اولرګیو څخه جوړ شوی دی اوکورونوته یې یو ځانګړی استحکام وربښلی دی هغه تر ډیره حده دډیرې واورې دوزن په وجه جوړ کړای شوی دی او په لرګي کې ښکلا لکه په دروازه ، کړکیو او د کور په نورو لوښواودکار په وسایلو کې چې لیدل کیږي هغه یې دهنر دوستی دروح استازی توب کوي. دنورستان خلک چې دختیځ هندوکش اصلي اوسیدونکي شمیرل کیږي په جمیله فونونوکې لکه موسیقی کې یې خاصه علاقه درلوده او لري یې. دخلکو پیژندنې دډنمارکي پلاوي دڅیړنو په اساس ( هارپ) چې نن ورځ دنورستانیانو په منځ کې رواج لري د (سومریانو) عصر ددرې زره کالو ق م یادونه کوي.دنوموړي پلاوي دتحقیق په اساس نه یوازې دنورستانیانو هارپ دسومریانو تر دورې رسیږي بلکې اهنګونه چې نن ورځ یې نر سره کوي هم همغه تاریخي سابقه لري.

لکه څنګه چې دنورستان خلک له نڅا ،اتڼ او دنڅا له ډولو او ورزش سره علاقه لري دهندوکش دډیرو درو خلک هم له دې ادابو او رسوماتو سره یو شان وې، دنوموړي غره په ځینو برخو کې دپخوانیو ادابو دلړیدلو علت دښکته درو دخلکو سره تماس دی چې له باندې څخه افغانستان ته راغلی دی.

دهندوکش خلکو حتماً ځانګړی لباس، وسله، دموسیقی الات ، ښکار، ګاڼه، مفروشات، موبل، اثاثیه او دطبخ ډولونه درلودل چې شواهد یې لږ و ډیر دپنجشیر په دره ،نجراو، تګاب او دنورستان په درو کې لیدل کیږي او هر یو یې ځانګړې څرګندونه لري چې دهندوکش اوسیدونکو خپل مدنیت ، فرهنګ او دژوند ځانګړي روش درلود.

۱۲_۵_۳۷

# پخوانی نورستان دقانون له نظره

دختیځ هندوکش په سویلي لمنو کې دکابل شمال غرب او دجلال اباد شمالي برخو کې دپنجشیر اوکونړ دسیندونو ترمنځ اودهندوکش او تور غره په لمنو کې شمال او سویل لوري ته یو شمیر کرې وړې درې او یو لړ سخت اوله ځنګل نه ډکې ځوکې دي چې ګرځېدل راګرځېدل پرې ډیر ګران دی چې نن ورځ دعامو په ژبه یې نورستان بولي چې داسیمه ۸۰ کاله دمخه دکافرستان په نوم یادیده. ددې سیمې ختیځو برخو ته یې (بلور) او غربي برخو ته یې (کتهار) وایه اودا تقسیمات اوس دلغمان نورستان او داسمار نورستان او یا هم دلویدیځ او ختیځ نورستان په نومونو بیلولی شو.

نورستان په عام جغرافیائي مفهوم دختیځ هندوکش سویلي لمنې په برکې نیسي او دا یواځنی علاقه ده چې دهندوکش محلي تمدن او فرهنګ پکې تر ډیره مصئون دی او لاس پکې ندی وهل شوی .

نورستان دغرنی اقلیم په لرلو تقریبا دتاریخ په ټولو دورو کې سرپټي او پرځنده پاتې شواو دا همداسې ژوند یې ددې سبب شو چې عرف ، عادتونه او پخوانی عقیدې تر ډیره وخته په پخوانی بڼه هلته دوام وکړ.

دنورستانیانو دا توکم په اړه د پوهانو رایې توپیر مګر وروسته دخلکو پیژنې دنمارکي پلاوی له څیړنو څخه ثابته شوه چې هغه وکړي چې شنې سترګې او

خرمائي ویښتان لري او همدارنګه سپین پوستکی لوړه ونه او باریك اندام لري . دادهندوکش اصلي اوسیدونکي دي او ددې سیمې غرني اریایان شمیرل کیږي.

نورستانیانو په لرغونو دورو کې ځانګړې عقیدې او قوانین درلودل چې اصلا مبدا او اساس یې باید د (هندواروپائي) په لومړي کتلې معتقداتو او (هندو اریائي) کې ولټهو. له احتمال نه لیرې نه ده چې نورستانیانو دخپل ژوند په لومړیو مراتبو کې اقلا لکه د (ویدي دعصر اریایانو په څیر دځانګړو خدایانو مجموعه درلوده چې تر ډیره حده له طبیعي عناصرو څخه ترکیب شوې وه، تر دې پورې چې داوستائي دور اصلاحاتو او تحولاتو زوراستري خداوندي وحدانیت مروج شو

له سلو کالو را په دې خوا دنورستانیانو دمذهبي عقایدو دتحقیقاتو په اثر داسې څرګندیږي چې دادهندوکش غرنی کتله وګړي دیوه واحد خدای معتقد وي. چې هغه به یې د(امرا) په نوم یاداوه، انګریز الفنستهون لیکي :

"دکافرانو دین له هیڅ دین سره ورته والی نلري دوی دواحد خدای په وجود اعتقاد درلود او هغه یې د (امرا) یا تسوکوي دګوري په نوم یاداوه او ډیر شمیر یې دبوتانو او پخوانیو پهلوانانو چې دهغې زمانې استازیتوب یې کاوه ستاینه کوله.

بوتان کاني یا لرګی دي چې مذکر او موئنث لري او مجرد به پرې سپور او نمایش به یې ورکاوه.

جنرال کوزتد "الفنستهن" یادونې لکه څنګه چې مو ولوستل تائیدوي او دهغوی خدای د (ریمرا) یا (یامري) په نوم یادوي.

یو تن فرانسوي پوه موسیو پول لوری کوڅو داسیائي اسطورو په مقالو کې یوه مقاله (دکافرانو اسطوري) ترسر لیك لاندې دپخوانیو استانیانو په عقایدو لیکلي چې په هغې کې دلاندې لیکوالو دنظریاتو شرح ورکوي.

ترکومه ځایه چې ما په خپله په نورستان کې له نورستانیانو څخه اوریدلي او یا مې په کابل کې له نورستانیانو معلومات ترلاسه کړي دامسئله محققه ده چې نورستانیانو په خپلو پخوانیو عقایدو کې دعالم ښتن او دکائناتو خالق د (امرا) په نوم یاداوه او په خپله ژبه او اصطلاح یې هغه ( سکوك میوك امرا) یعنې طلامخي خدای باله او هغه یې لکه دیو انسان دصورت په بڼه مګر فوق العاده لوی تصور کاوه او تر کومه ځایه چې د ختیځ پیژندونکو او دسیمې دخلکو له ویناوو څخه څرګندیږي وروسته له یوې مرحلې څخه دخدای وحدانیت ته قائل و. البته دژوند په لومړیو مراحلو کې چې دخدایانو ډولونو ته یې عقیده درلوده نو

دجنګک او پهلوانی ځانګړي خدای یې ډیر شهرت درلود. مګر د ژوند په تحول سر (امرا) یاواحدتوانا خدای دهغوی په معتقداتوکې ځای نیولی و ډیرو د خدایانوډولونواوپه ځانګړي توګه دجنګک خدای په وړوکي صفت میدان ته شو.

دنورستان په معتقداتو کې مطالعه یوه ستونزمنه موضوع ده او دکاربنه یې ډیر په دې ناحیه کې ده چې داخلك په خپله ژبه کې لیکلي اثار او کتاب نه لري او دتیرو وختونو له افواهاتو پرنه نور څه نلري داریان په مجله کې دیو کتاب په تحشیه او چاپ مشغول یم چې درویش محمد خان غازي (جنګک نامه) یا (صفت نامه) په نوم یادیږي چې دا اثر ۴۰۰ کاله پخوادحکیم مرزا چې دظهیر الدین محمد بابر لمسی و، لیکل شوی دی لیکوال د (کتهار) نورستانیانو یادپخواني نورستان چې دلغمان دعلینګار او الیشنګک په درو کې ژوند کاوه او پخواني کافران ګڼل کیدل چې د تثلیثي نسبت ورکړی شوی دی، د (پاندا) (شروي) او (لامانده) په نومونو هغه جنګونه چې دمسلمانانو او کافرانو ترمنځ واقع شوی دی، کفارو له دې درې تنو معاونت او مرسته غوښتې ده خو دعبارت له متن څخه سهي نه څرګندیږي چې دې درې تنو دپخواني نورستان د کتهار په معتقداتو کې څه مقام او مفهوم درلود.

پدې کې شك نشته چې دعظیم الحبثه غرنیو پهلوانانو روح یې لکه یوناني (هرکول) یا رستم ددوی په افکارو او تخیلاتو کې ډیر دخیل و.

لویه نظریه یې دې مفکورې ته تقویت ورکوي (ګیش) ته یې اعتقاد کول دي چې حتما په لرغونو زمانو کې یې جنګي او ځواکمن کسان وو. او ورو ورو یې دکارنامو لویولودتصوراتو په عالم کې دبشر له حدوداتو ور هغه پلو مقام ورکړی دی.

دنورستان یو شمیر خلکو (ګیش) دجنګک ځانګړي خدای دویدي عصر له (اندار) سره تشبیه او تصور کاوه. او داسې فکر یې کاوه چې دیوقوي او توانا پهلوان په دود یې لیندی په غاړه په سختو درو او د غرونو په څوکو ګرځېده

پاتې دې نه وي چې یونانیانو لومړی ځل دافغانستان غرونو ته تمایل ونیو نو دهندوکش په غره کې یې دیو قوي هیکل پهلوان وجود ته اشاره کړې ده چې دغرونو د لوکل په حیث یې یو ډول د (هندوکش هرکول) بڼه ځانته خپله کړې وه، ځینې نورستاني سپین ږیری معتقد دی. چې پخوانی زمانه کې دنورستاني قبایلو

ترمنځ جګړه پیښیده . (ګیش) یې هغه مهال په (کتوي) او ( کانتوا) کې لیدلی و چې تل دجنګیالانو په وړاندې مخکښ و

دنورستان په کلیو کې په عموم ډول (امرا) او (ګیش) جلوه ګاه یا نظر ګاه یا (ذبح) درلوده چې د(امره تا) او (ګیشه تا) په نومونو یادیدلو د (امرا) له پاره یې معمولا غوا او دګیش له پاره یې سېرلي قرباني کاوه. دجګړې په غنیمتونو کې به یې نر حیوانات د ګیش له پاره قرباني کول او ښځې حیواناتي به یې په خپل منځ کې ویشلي.

پخوانیو نورستانیانو دلرګي دهیکلونو اومجسمو د جوړولو عادت درلود پدې مجسمو کې یې ډیر دپهلوانانو او دکورنیو دمشرانو که به هغه نارینه و او که ښځینه دنمایش له پاره جوړول.

۱۰_۶_ ۳۷

# تور پوشان نورستاني او امیر تیمور کورگان

دهندوکش دغره لړۍ چې دافغانستان دملاتیر هم ورته ویلی شو له هغو لوړو څوکو سره چې جګوالی یې ۷۰۰۰ مترو ته رسیږي ډیرې مستې تراوتازه درې هم لري چې دخلکو په تمدن او فرهنګ کې یې دافغانستان دسیمه ایزو خلکو لاس وهنه ندی شوی او صاف ساتل شوی دی. ددې غره لمر خاته پلو ته سویلي په لمنو کې یوه علاقه لرو چې نن ورځ ورته په عمومي توګه (نورستان) وایو او دمخه تر ۱۹۰ کالو ورته (کفرستان) یا (کافرستان) ویل کیده همدا کافرستان په لمر خاته پلو ته د (بلور) او لمر پریواته خواته د (کتهار) په نوم یادیده. پدې دواړو نومونو کې وروستی نوم یعنې (کتهار) په ادبي او تاریخي ماخذونو کې ډیر شهرت لري.

کتهار دجغرافیائي جوړښت له مخې دپنجشیر ددرې په پورتنۍ برخه همدا راز دفرج غان او علینګار ددرې پورتنۍ برخې تشکیلوي دا داسې منطقه ده چې شمال پلو ته یې دمنجان کوتل لمر پریواته خواته یې خاواك او پریان سویل لور ته یې دعلیشنګ پورتنۍ برخې او لمر خاته خوا یې دعلینګار درې پورتنیو برخو احاطه کړې دي. دا علاقې دګرځیدلو په لحاظ ډیرې ستونزمنې دي ځکه چې له څلورو خواوو نه لوړو او سختو غرونو احاطه کړی دی چې خلك یې په داسې یوځای کې ایسار ساتل شوي دي چې تر نن ورځې پورې ددې سیمې او ددې سیمې دخلکو په اړه سهي معلومات په لاس کې نشته، پدې کې شك نشته چې دخاواك له خوا او

همدا راز دېریان، علیشنګ، او علینګار له خوا لاړې ور غلي دي خو دا لاړې دکال په ډېر وخت کې دډېرو واورو په وجه بند وي او په عموم ډول دسیمې له خلکو پرته او هغه هم داوړي په موسم کې نور څوك هلته ورتللی نشي.

ټول پدې پوهیږو چې دنورستان خلکو که هغه لمر خاته خواته وي او که لمر پریواته خواته او همدا راز که شمال لور ته وي او که سویل لوري ته ټولو پوستکي اغوستل. دغربي نورستان یعنې دکټار خلك هم له دې قانون نه مستثنا نهٔ بلکې دپوستکي اغوستل پکې ډېر دود ؤ او لکه څنګه چې دهغو خلکو پسونه ډېر تور رنګ لري او دپسه توري وړۍ له باندې ډېرې تورې ښکاري نو ځکه دوی په (سیاه پوش) شهرت پیدا کړی ؤ. پدې کې شك نشته چې دجامې له مخې توپیر کول په ترکانو کې هم دودؤ لکه چې (آقوقورلو) او (قره قوزلو) ددې نظریې ډېره پلوي کوي.

اګر چې له دې سره سره د اوسني نورستان او پخواني کافرستان خلك په جنګ جګړو کې مشهور ؤ او دي مګر دکټار سیاپوشان نسبت دنورستان دنورو برخو اوسیدونکو ته ډېر زړه ور او جګړه مار ؤ او داصفت یې له ډېرې پخوا زمانې څخه حفظ کړی دی.

اګر چې دنورستان په اړه تاریخي کتابونه او ماخذونه په لاس نلرو خو هغه چې په لاس لرو داسې څرګندوي چې پرته له سلطان محمود غزنوي اوامیر تیمور کورګان نه نور څوك نورستان او په ځانګړې توګه کټار ته داخل شوی ندی دالسعدین صحن دمسطلح ویاند د (کټار) دسیاه پوشانو مقابله له امیر تیمور کورګان سره په یوه شرح کې دیوه بیت په وینا دسیاه پوشانو ټول شجاعت او دځمکې سختي بیانوي.

زشاهان کسی فتح کتور نکرد
چه گویم ز دارسکندر نکرد

له دې بیت څخه چې ادبي اړخ لري داسې استنباط کیږي چې حتی داریوش او سکندر دنورستان په فتح بریالی شوی ندی چې داوینا حقیقت لري او د هیواد د پراختیا په اړه یې ونشوکړای چې نورستان ته داخل شي هو سلطان محمود غزنوي او سبکتګین وشو کولای چې یواځې لغمان تابع کړي او کټار ته تللی نه شوو. له تاریخي ماخذونو چې څرګندیږي یواځې لغمانیان تابع وه اودهندوکش له شمالي برخو دنورستان له داخل څخه هیڅ خبر نشته.

دامیر تیمور دلښکر او پخپله دده ورتلل دنورستان کتهار ته شرح لري او دا مطلع السعدین د (ذکر غزوکتهاروسیاه پوشان) تر سر لیك لاندې یو لړ مطالب لیکلي دي چې له عین نقل نه یې تیریږو او دمطالبو له روح نه یې یادونه کوو. امیر تیمور په بلخ کې دپاچاهۍ تر اعلان ۸ کاله وروسته په ۸۰۰ هجري کې له ماورالنهر نه دواکمنۍ دپراختیا په خاطر دهندوستان په لور وخوځیده کله چې دجیحون له سیند نه راتیر شو بلخ، سمنګان (ایبك) او بیا بغلان ته ورسید، کله چې اندراب ته ورسید دسیمې خلکو د (کتهار) دسیاه پوشانو دتجاوزاتو په اړه شکایت وکړ.

داندراب دپورتنۍ برخې اوسیدونکي چې د (خاواك) او (پریان) کوتل تن نژدې اوهلته د (کتهار) سیاه پوشان اوسیدل او داندراب اوسیدونکي دهغوی له ناځاپي حملو نه ډیر په وېره کې و داوخت د (کتهار) یعنې سیاه پوشانو کافر و داندراب ددرې مسلمانان ډیر سخت په تکلیف کړي و او هر وخت به یې حملې کولې. رمې، ګلې او غوایان به یې ترې بیول او باج به یې هم ترې غوښته او حتی میرمنې او ماشومان به یې ترینه داسارت په دود بیول. د (کتهار) د خلکو لوړ قدونه، قوي اندامونه او درشتې ځیرې چې لیندۍ به هم ورسره وې او دپوستکي جامې به یې په تن وې داندراب د خلکو په نظر کې عجیبه مخلوق په نظر بریښیده. اولکه څنګه چې السعدین لیکي هغوی یې انسانان نه بلکې دیوان بلل، ځکه چې له دې قوي اندامونو لیندۍ او د پوستکو له البسي سره لکه ددیوانو په څیر سر سخت په خپلې عجیبې غریبې وسلې قوی جثت راتلل او د سیمې خلك به ترې سخت ویریدل. لکه څنګه چې دهغو سیمه سخته او غرنۍ وه نو ځکه هیڅ چا داجرئت نه درلودترڅو دهغوی دکورونو خوا ته ورشي.

لکه څنګه چې امیر تیمور کورګان د (کتهار) دکفارو له حال واحوال کردار او ګفتار څخه اګاهي تر لاسه کړه نو دخاواك په کوتل کې یې دکلا دجوړولو امر وکړاو بیا یې دخپلو عسکرو څو ډلو ته کتهار علاقې ته دورداخلیدلو امر وکړ. ددې لښکر د نورستان کتهار ته د حرکت جزئیات روښانه ندی، خو داسې وایې چې اکثروخلکو خپل اسونه له کمرونو نه درې ته درسیو په واسطه ښکته کول او لکه څنګه دسرطان میاشت وه او دکال تود موسم و بیا هم اسونه د ورځې له خوا په واوره کې خښیدل نو ځکه یې دشپې په یخنۍ کې له یوځای نه بل ځای ته حرکت کاوه او پدې لښکر کې امیر تیمور کورګان هم شامل و او کله چې دهغه قوماندانانو په سهي ډول وړاندې تګ او عملیات ترسره کولای نشو. نو خپله یې شخصاً دجنګ

قوماندہ په لاس کې واخسته څو اسپ سوارانو دهغه اسونه له کمرونو څخه داسپو
په واسطه ښکته کړل چې څو اسپې پکې بې وخته لنګې هم شوې ددې منطقې تر
ټولو لوی کافر السعدین دعداو عداسو په لقب یادوي چې حتماً اصلاً کومه
نورستانی کلمه ده چې په فارسي لیك دود کې یې پوهیدل ستونزمن دی لکه څنګه
چې په مطلع السعدین کې راغلی دی چې وروسته تر یو لړ سختو جګړو یو شمیر
سیاه پوشان په غرونو کې تر شاشول او یوشمیر امیر تیمور ته راغلل او امیر تیمور
دیوشمیر ترجمانانو په واسطه داسلام ددین ښودنه ورته وکړه او ډیر شمیر یې
مسلمانان شول خوکله چې دوباره غرونو ته وختل مرتد شول او دتیمور په عسکرو
یې یرغلونه پیل کړل چې په دې ترتیب دسیاه پوشانو او امیر تیمور د عسکرو
ترمنځ سختې جګړې پیښې شوې او لکه څنګه چې په پورتنی ماخذ کې راغلی دی
دکافرانو ډیر زړور جنګیالي ووژل شول او تیمور یې له ککرو څخه منار جوړ کړ اود
خپلو فتوحاتو او کامیابی خاطرې یې په کاڼو کې په کیندلو ولیکلې.

نو پدې وجه ۸۰۰ هجري قمري کال دنورستان د (کتاب) په تاریخچه کې ډیر
مهم کال دی ځکه چې پدې کال کې دلومړي ځل لپاره دهیواد د پراختیا له پاره
تیمور نورستان ته ورغلي دي او له سیاه پوشانو سره یې جګړې ترسره کړې دي.

تر کومه ځایه چې وروستی پیښې څرګندوي هغه محال چې دکتار سیاه پوشان
او دهغوی سیمه فتح شوه اومسلمانان شول خو کله چې امیر تیمور راوګرځید
هغوی هم خپل پخواني دین ته واوختل او محمد حکیم میرزا دبابر لمسی چې
دعلیشنګ ددرې په پورتنی برخه کې جګړې وکړې پدې بریالي نشو چې د (کتار)
وګړي مسلمان کړي تر دې پورې چې دا کار دامیر عبدالرحمان خان غازي په لاس
صورت ونیو.

۲۹_۸_۴۱

# دپخواني نورستان دخلکو

# دخدايانو ډولونه

دهندوکش دغره لړۍ چې له شمال ختيځ نه جنوب لويديځ ته تقريباً دافغانستان له منځ نه تيرېږي نۀ يواځې داچې دکاني يوه لوړه کربنه ده بلکې زموږ دهيواد دملا دتير حيثيت لري بلکې لوړې څوکې اوتاوراتاو درې يې دپخوانيو وختونومحافظين په غيږ کې نيولي چې زموږ اصلي خاطرې، کلتوري فرهنګي او تهذيبي برخې تشکيلوي.

ددې لړۍ په جنوب ختيځه برخه کې شمال ته موازي دلوړو غرونو په برخه کې ننګرهار او دکونړ شمال لور ته سيند په اوږدو يوه غرنۍ برخه واقع ده چې تېرې . اتېرېدل ډېرې ستونزې لري او سخت ځنګل هم لري دامنطقې ته نن ورځ نورستان وائي چې ۸۵ کاله دمخه يې نوم (کافرستان) وُ چې دا وروستۍ تسيمه ۴_۵ پيړۍ دمخه هم دمدارکو په شهادت استعماليدله ددې پراخې غرنۍ سيمې ختيځ لور نه يې (بلور) اولويديځو برخو ته يې (کتار) وايه چې نن ورځ دا دوه برخې دنژديوالي او اداري ويش له مخې د (اسمار نورستان) او د (لغمان نورستان) او يا هم ختيځ او لويديځ نورستان بللی شو.

نورستان چې په عام جغرافيائي مفهوم دختيځ هندوکش سويلي لمنې په برکې نيسي داسيمه دغرنۍ اقليم دلرلو په وجه دګرځيدلو ډېرې ستونزې لري او تقريباً د تاريخ په ټولو دورو کې پرځنده او سر پټې پاتې شوي ده.، له لويو لارو نه کناره

کیدل یې همدا سبب شوی دی چې عرف عادتونه او پخواني عقاید لـه فرهنګي تهذیبي او ادبي مظاهرو سره په لوړي پخواني صورت یابنه پرته له دې چې لاس پکې وهل شوی دی محافظه شي.

ننني نورستانیان اودهندوکش پخواني کافران داریایانو بقایاوي دي چې په خپل اصلي وطن کې پاتې دي او لکه دیو شمیر نورو قبایلو په څیر یې له مهاجرت نه خود داري کړې ده. نورستانیانو پـه لرغونـو دورو کـې معتقدات او دخدایـانو ډولونه درلودل چې په اصل مبدا کې لـه هندو اروپائي د هند آریائي ټولنو سره بې ارتباطه نه وه او لکه دویدي دعصر آریایانو پـه څیر دخدایانو ډولونـه یـې درلودل چې په هغې کې طبیعي عناصر عمده نقش درلود او وروسته د زرواٌ ستر (زردشت) اصلاحاتو اوتحولاتوچې دوحدانیت روح یې منځ ته راوړو دهغوی په عقایدو کې یې تاثیر پاتې نشو.

دهغو څیړنو له مخې چې له یوې پیړۍ راپدې خوا منځ ته راغلي داسې شمیرل کیږي چې په عین وخت کـې چـې دهندوکش پخوانیوکافرانو دخدایـانو ډولونـه درلودل نـو دواحد او لـوی خدای وحدانیت تـه هـم رسیدلی وُ. دې لـوی خـدای تـه به یې امرا وایه.

کله چې الفستن دشاه شجاع دواکمنۍ پـه وخت افغانستان کې تماس پیداکړ پدې یې عقیده درلوده چې (داکافران لـه هیڅ دیـن سره ورتـه والـی نلري او یـواځې واحد خدای ته معتقد دي او هغه (امرا) یا سوکوي او یا هم(ګوري) نوموی دډیرو بتانو کلي چې دپخوانیو پهلوانانو استازیتوب کوي هغوی ته عبادت کوي. دا بُتـان دلرګي اویادکاني دي. او مذکر او مونث لري همدا راز په مجرده توګه په خره سپاره نمایش ورکوي. یو شمیر نـور اروپائي لیکوال لکه جنرال کورت انګریز دالفستن نظریات تائیدوي او دکافرانو لوي خدای یې (امرا) یا (یامري) یادکړی دی.

یو فرانسوي مؤلف داسیا داسطورو په کتاب کې دنورستان په پخوانیو عقایدو یوه مقاله خپره کړې ده چې لنډیز یې همغه مطالب دي چې پورته شرح شول.

کوم څه چې مې پورته وویل ما پخپله پـه نورستانیانو دمسافرتونو او پـه کابل کې له نورستانیانو سره دتماس پـه ترڅ کې اوریدلي دي او د نورستان کتاب چې یو تن نورستاني جنرال محمد صفر غرزي وکیل په خپله لیکلی نوڅکه ښه او ثقه معلومات راکولی شي.

هغه څه چې څرګند دی دادی چې پخوانیو کـافرانو دعـالم ځبنتـن او دکائنـاتو خالق د (امرا) پـه نـوم یـاداوه او دهغـو پـه خپلـه عامیانه ژبـه یـې (سـور میـوك اِمـرا)

يعني (دخولې په ځير مخ لرونکی امرا) باله او هغه يې انسان په بڼه او صورت مګر فوق العاده لوی فکر کاوه.

دجنګ ځانګړی خدای يې دپخوانيو کاٗفرانو دخدايانو په ډولونو کې مجهول نه و او هغه ته به يې (ګيش) ويلـز داګيش داندرا يعنې دويدي اريايانودجنګ دځانګړي خدای معادل و اودفوق العاده پهلواني کارونو د سرته رسولوپه وجه هغه له يوناني(هرکول)اويازابلي رستم سره مقايسه کوو.

(امرا) او (ګيش) دپخوانيو کافرانو دخدايانو دډولونو په منځ کې ډير مهم نقش درلود او دهغوی له پاره يې دغرونو په لمنو کې دقربانۍ ځايونه او زيارتونه جوړ کړي وو چې د (امره تا) او (ګيشه تا) په نومونو يادېدل دامرا له پاره يې غوا او دګيش له پاره يې سېرلی قرباني کاوه دمحمد درويش خان غازي په جنګ نامه نومې کتاب کې چې دځلورو سوه کالو شا وخوا کې دمحمد حکيم ميرزا دبابر دلمسي په زمانه کې دلغمان په عليشنګ دره کې ليکل شوی په کراتو مراتو يې له درې تنو مفسدانو چې (پانداد) او (لاماندي) نوميدل ددرې ډلو په بڼه ياد شوی او دعليشنګ درې دپورتنۍ برخې کافرانو له مسلمانانو سره په جګړو کې له دې درې تنو مرسته غوښتله دکتاب دعباراتو له فحوا نه واضح معلومېږي چې نوموړي درې تنه دپخوانيو نورستانيانو په ذهنونو کې حتی ځلور سوه يا پنځه سوه کاله دمخه هم مقدس مقام درلود.

لنډه داچې کافرانو دنورستانيانو نيکونو دهندوکش دنورو اريائي کتل و په ډول او د نورو اريائي قبايلو په ځير په اصل مبدا کې دخدايانو ډولونه درلودل او داوستائي عصر په تحولاتو سره (امرا) لوړ او عالي مقام پيداکړی دی. اودهمدغې برترۍ انعکاس دواحد خدای په بڼه په عقايدو کې لاره ومونده او ډير دخدايانو ډولونه لکه دجنګ ځانګړی خدای او نور دپهلوانانو په بڼه په اسطورو کې راغلل.او په منځنۍ پيړۍ کې دفکري روش په ښکته راتللو سره دغرونو په څوکو او ددرو په منځ کې ځانته کيدلو سره يو لړ بې نظمي منځ ته راغله او په عقايدو کې يې درې برخې وزيږولې چې انعکاس يې عقلاً دلغمان په نورستان کې ځلور يا پنځه پيړۍ دمخه ګورو.

۹_۸_۴۱

# ننګرهار او ځيني پخواني ښارونه يې

افغانستان دجغرافيائي موقعيت له مخې په داسې يوه ځلور لارې کې واقع شوى دى چې له پخوا زمانو راهيسې يې داحساس خاصيت ساتلى دى، له دې سره چې ددې محاصرې او مدنيت لرونکې ځلور لارې تاريخ ډير پټ او سر بسته پاتې شوى دى خويو څه چې پخوانى سوابق او ارزښت يې ثابتوي هغه يې د وجود نوم ياتاريخي اوجغرافيائي نوم او نښان دى چې دا نومونه ټول له غرونو نيولى بيا تر رودونو او ښارونو پورې جغرافيايي اوتاريخي کوايف وخت په وخت معرفي کوي، او د (ويد) او (اوستا) له دورو څخه نيولى تر يوناني، بودايي ، کوشاني او داسلامي دورو په مختلفو وختونوکې يې خاطرې او دنومونو په قالب کې نوم او نښان پرېښودى دى.

دافغانستان په ختيزه برخه کې دکابل سيند له سر چينې نه نيولې تر هغه ځايه چې سيند لوى سيند ته ور داخليږي داسې منطقه پرته ده چې له ويدي دورو وروسته دتاريخ په مختلفو دورو کې د (ګندهارا) په نوم يادېږي.

دګندهارا په زړه کې يوه بله سيمه ده چې هغې ته ننګرهار وايي او ننګرهار اوس هم دافغانستان ولايت دى.

دننګرهار کلمه په پخوانيو ماخذونو کې دمخه تر اسلامه دلومړي ځل لپاره د (ناکاراهار) په بڼه ليدل شوى.

دوه تنه چینائي لیدونکي فاهبین او هیوان تسنګ دخپلو خبرو په ترځ کې د (ناګاراهوا) دیوه ښار یادونه د (ناکي لوهو) په نوم کوي.

پدې کې شك نشته چې هیوان تسنګ چیني لیدونکی دعین مواصلت په مهال دهډې اواوسني جلال آباد سیمې ته چې د (ناکار) یا (نګر) په نوم یې یادونه کوي دهغه له ویناو څخه داسې معلومیږي چې (ناګار) یا (نګر) او یا (نګاراهارا) یوه سیمه او یا هم (نګره هاره) یې مرکز اویا کوم عمده ښار ؤ. هیوان تسنګ د (نګر) دسیمې پراخوالی داسې راښیې اوږدوالی له ختیځ نه لویدیځ ته ۶۰۰ لی اوسور یې له شمال نه سویل لور ته ۲۵۰ لی چې دمیل په حساب یې طول ۱۲۰ میله او عرض یې نږدې ۵۰ میله کیده.

چینائي لیدونکی له دې پرته لیکي چې ددې سیمې چارچاپیره سختو غرونو احاطه کړې دی. او پایتخت یې ۲۰ لی یعنې ۵ یا ۶ میله پراخوالی درلود، پاچا هلته وجود نلري ځکه چې داسیمه دکاپیسا مربوط دي، حبوبات او دا نه ډیر حاصل ورکوي، هوایي توده او اوسیدونکی یې زړور، خوش خلقه اونسبتاً شتمن دی دخلکو ډیره برخه یې بودایي دی او دنورو ډیرو ادیانو پلویان هلته لږ دی، معابدونه او بودایي ابادی په کې ډیرې دي او پیروان یې هم ډیر دی، له بودایي معابدونو پرته دنورو معابدونو شمیره هم سلو ته رسیږي.

پدې کې شك نشته چې دهیوان تسنګ د (ناګار) یا (نګر) دعلاقې له یادونې څخه مطلب همغه د (ننګر) علاقه ده چې د (هار) دکلمې په ډیر والي سره چې د (ښار) مغنا ورکوي مرکز ته یې (نګاراهارا) یا (نګرهار) وایه چې وروسته دخلکو په ذهنونو کې د (ننګرهار) په بڼه ثبت شوی دی که چیرته فولکلوري کیسو ته چې دکونړ په دره او چغه سرای کې تر اوسه دخلکو له خاطرو وتلی ندی غوږ ونیول شي نو لیدل کیږي چې شاهي د (ننګرشاه) په صفت یعنې د(ننګر) دسیمې شاه تراوسه دخلکوپه خوله دي.

نوویلی شو چې دننګر تسمیه له تاریخي ماخذونو څخه فرهنګ ته ورداخل شوی اوعامه فرهنګ ته دیوې کلمې ورداخلیدل خامخا ډیر استحکام او ژوره معنا لري.

د (ننګر) مرکز داسې یو ښار ؤ چې هغې ته یې (ننګر) یا (ننګرهار) وایه (ننګرهار) د (ننګرشار) معادل دی، دننګرهار مرکز یو معظم ښار ؤ او لویه ساخه یې درلوده.

دننګرهـار دمشـهورو ښارونـو لـه جملـې څخـه يـو هـم (هډه) ده چې چينـائي ليدونکي داوومې پيړۍ په لومړۍ نيمائي کې د (نارهيلو) پـه نـوم يـاد کـړی دی کننګهم انګليس پدې خيال دی چې دهډې موجوده نوم دسانسګرت لـه کلمې هډه چې دهډوکي په معنا ده اخستل شوی ځکه چې د بودا يو هډوکی دهغه ښار پـه يـوه استوپه کې ساتل شوی ؤ.

دننګرهار پـه علاقـه کې نـور ښارونـه هـم ابـاد ؤ لـه هغـې جملـې څخـه يـو د (اوياناپور) پـه نـوم يـا صفت يـاد شـوی دی. چې هغـه دباغستان ښار ترجمه کـوي همدا راز په پخوانيو ماخذونو يوبل ښار د (تاکي) پـه نـوم هم يـاد شـوی چې هغـه يـو شـمير مدققيـن پـه شـيله (نـاقي) کـې چـې لـږ څه دجـلال ا بـاد لويديـځ لـور تـه راښيي، همدې ښار يوبل نوم هم درلود لکه (پاوماپور) چې هغه يې (دنيلو فـردګل ښار) ترجمه کړی او لکه څنګه چې دنيلو فر ګل په بودايي ديـن او فرهنـګ کـې دتقدس ښه درلوده نو ويلای شو چې په بودايي دوره کې نوموړی ښار يـو متبرک ښار و. همدا ښار په چيني ماخذونو کې د (ګل په ښار) ياد شـوی چې دچيني تلفظ دضبط صورت يې (هوا ـ شي ـ شنګ) ؤ همدا راز دګل ښار او دنيلو فـرګل ښار حتماً داسې صفات ؤ چې همغه ښار ته يې اطلاق کيده.

په بودايي ماخذونو کې په ننګرهـار کـې يـو بـل ښار د (ويپانکارابودا) پـه نـوم ياد شوی او هغې ته يې (ري پاواتي) هم ويلی دی چې معنايې (شعله) او (نور) دی.

ددې لنډې مطـالعې نـه پـه څرګنـده ويلـی شـو چـې د (ننـګر) علاقـه چـې دافغانستان دختيځ ولايت ننګرهار مرکز دی او پدې نوم شهرت لري داسې سيمه وه چې په هغې کې ډير ښارونه اباد ؤ اوهر ښار داباديءِ عمراني کارو بودايي مرکزونو، استوپو او معابدو نو ددرلودلو په وجه ډير شهرت درلود او هر يو پـه صفا اوښکلو صفاتو يـاديده په ډرونتهه، سلطان پور ، هډه تپول سرخ رود او چپليـار کـې دډيرو خرابو استوپو او معابدونو بقاياوې ددې ادعا ښکاره ثبوت دی.

۲۱ـ ۵ـ ۲۷

# د چغان غونډی

دکابل شمال ختيځ لورته دشمال په خوا ، دجلال اباد شمال ختيځ ته داوسني افغانستان له تحميل شوي سرحدي خط سره په موازي ډول اوږده دره پرته ده چې معمولاً په (کترا) مشهوره ده او اوبو ته يې دکنړ سيند وائي چې په پوړتنۍ برخه کې دچترال په رود مشهور دی اوتر هغې پورته يې خپله سرچينه ده چې عبارت له حومه د (يردغبل کوتل) څخه عبارت وي چې دکاشغر درود په نوم هم يادېږي دکونړ دسيند در مرستيالان دهغې نه شي ارخه دافغانستان له خوري نه يو ځای کيږي چې دنورستان له علاقې نه سرچينه نيسي اومشهور يې (لنډی سيند) او دپيچ وبه) دي چې دسيلابي سيندونو په صورت په درو کې تاوپيچ سره دختيځ هندوکش په سوېلي لمنوکې رابنکته کيږي اوله دې سره سره دنورستان دپورتنۍ برخې همدغه دوه لارې دي چې اوس او په پخوانيو وختونو کې دنورستان له اسرارونوډك زړه ته لارې ورغلي دي

لکه څنګه چې دکنړ دره اوږده پرته ده دطبيعي اوضاع له مخې يې په درې برخو ويشي ښکتنۍ ، منځنۍ او پورتنۍ برخه چې په عامه اصطلاح ورته (کوز کونړ) (خاص کونړ) او (بر کونړ) وايي او عمومي مرکز يې د اسعدآباد (چغه سرای) په نوم يادېږي چې دکونړ ددرې او پيچ ددرې دتقاطع په برخه کې واقع شوی دی او دا دکنړلوی حکومتي مرکز دی.

دمخه مو وويل چې دکونړ مرستيالان يو (لنډی سيند) او بل دپيچ درې اوبه دي دپيچ دره تر ټولو لويه فرعي دره ده چې دچغه سرای په مقابل کې دکونړ ددرې په

وسطي برخه کې دنورستان دزړه (منځ) په لور ترې لاره خلاصه شوې ده هغه انشعاب چې په خپل منځ کې يې لړې څو خواوو ته لکه لغمان او مربوطو درو ته يې او د نورستان اکثر پورتنيو برخو ته ترې لارې وتلي دي.

له دې جغرافيايي شرح نه مقصد دهغې نقطې دموقعيت اهميت په ګوته کول دي چې معمولاً دچغان د غونډۍ په نوم يادېږي او محمد ظهيرالدين بابر په خپل تزك کې هغه د(چغانيان سراى) (چغان سراى) په نوم ياد کړې او دچغه سراى په اوسني نوم کې يې مخفف صورت راغلى دى.

دپيچ ددرې په داخل کې ددرې دواړو خواوو ته دغره په پوزو کې او په ډېرو چپ خواته پوزو کې چې ډېرې دکونړ په دره هم حاکې دي داوسني حکومتي ځاى چغه سراى په مقابل کې دمهمو اباديو پاتې شونې څرګندېږي چې په هغو کې په ډېر شمير خښتي، دسنګ مرمر لوېې اوپېړې لوحې استعمال شوى دى، تر کومه ځايه چې دديوالونو او تهدابونو بقاياوې څرګندېږي يوه ورځ په دې سيمه کې ډېرې مهمې ابادۍ موجودې وې چې له هغې جملې ديوالونو څخه ديوې ودانۍ ديوال په لويو تراشلو خښتو دغره په بغل کې په تورو کاڼو سره تر نظره کيږي او چارچاپيره يې دنورو اباديو حکم کوي ددې ابادۍ په ښکتنۍ برخه کې يوه لويه هديره موجوده ده چې لمنه يې دپيچ په دره کې يو نيم کيلو متر اوږده ده او په ډېره پيمانه مرمري لوې خښتې ، مرمري لويې ستنې . ښکلې نقش کړاى شوى سرطاقونه هم تر نظره کيږي.

په ظاهري توګه دابادیو بقاياوې دډېرو لوحو له مخې او دعربي او فارسي رسم الخط له مخې ديوشمير نومونو لکه ابن عمر، سلطان پګل، بهرام شاه، حيدر علي، ننګر اونورو له مخې داسې اټکل کولاى شو چې ددې ځاى ابادۍ تر اسلامي دورې او هغه هم داسلامي دورې منځنى وخت وي ځکه چې ديو شمير نيټو له مخې قوي اټکل کولاى شو او ددې منطقې داباديو مبدا ته ۶۰۰ کالو دمخه وړاندې بيولی شو او دا حدس موږ دچنګيز دوارثينو چغتائي دورې ته رسوي اود (چغان غونډۍ ) دځاى نوم ياد چغان سراى دعامه فوکلور تر ډېره حده ددې نظريې ملاتړ ښکاري . البته له فولکلوري کيسوپرته دچغتائي شهزادګانو رسيدل او وتل دمحلي شهزادګانو چې دمخه تر مغلو يې پدې سيمه واکمني درلوده هم څرګندېږي. لکه څنګه چې وايي په پخوانيو وختونو کې دلته دننګرهارشاه په نوم يو پاچا واکمني درلوده دوه تنو قعلي شهزادګانو سلطان پګل او بهرام شاه يې دواکمنۍ پر ساحه يرغل وکړ.

دا فلکلوري کیسې او تاریخي ارزښت دې په خپل ځای وي د اوس له پاره تري یوه نتیجه اخلو او هغه عبارت له دینه دی چې دمخه تر مغلو دچنگیز لمسیانوپه چغان غونډۍ کې نورې ابادۍ درلودې او په مهمه سوق الجیشي نقطه دکونړ ددرې په منځ کې دنورستان په یوې مهمې لوړې نقطې پخپله ددې حکم کوي چې په پخوانیو لمنو کې دې نورې ابادۍ ولري.

بابر په خپل توزك کې وایي چې په چغه سرای کې دفتوحاتو په مهال دنورستان کافر په داسې حال کې چې دشرابو مشك به یې په غاړه کې وُ ددې منطقې دخلکو مرستې ته راتلل. دډنمارکي هیئت دخلکو پیژندنې دتحفظاتو په اساس له احتمال نه لیرې ندی چې لوی سکندر کونړ ته دتیریدلو پر مهال دکونړ ددره پیچ دتلاقي په برخه کې یو لویې کلی اویا هم دنورستانیانو یوې جنگې کلاته اور ورته کړی دی.

په دې غالب گمان کیږي چې دسکندر مقدوني په زمانه کې په همدغه ځای کې چې نن دچغان په غونډۍ کې خرابې واقع دی او دنظامي کلا دپاره یوه ممتازه منطقه شمیرل کیږي یوه کلا وه چې دنورستانیانو نیکونو دوه زره څلور سوه کاله دمخه په همدغه منطقه کې له لوی سکندرسره پنجه وهلې ده او بلاخره یې دادمقاومت قرارگاه ته اور ورته شوی دی.

نود (چغان غونډۍ ) یا (چغان سرای) دمخه نر دې چې پدې نوم مشهوره شي مهمه ابادي اوموقعیت درلود او هغه لرغوني نومونه چې په غرونو کې په ورانو کلاگانو اینبودل شوي دي ددې نظریې څرگندوي کوي. یوه ورځ به علمي هڅې دې افکارو ته قطعي اویو پلوي ځوابونه ورکړي

۴ ۱۲ ۳۷





## د دې اثر د ژباړن نور چاپ او ناچاپ آثار

| | | |
|---|---|---|
| بدیع او پښتو شعر | | ۱۳۷۰هـ ل چاپ |
| وروستۍ سلګۍ | د لنډو کیسو ټولګه | ۱۳۷۱هـ ل چاپ |
| رژېدلي ګلونه | د شعرونو ټولګه | ۱۳۷۱هـ ل چاپ |
| نومیالی غازي محمد شاه خان بابکر خېل | | ۱۳۷۳هـ ل چاپ |
| افغانستان د تاریخ په رڼا کې | همدا اثر | ۱۳۸۰هـ ل چاپ |
| د جهاد خاطرې | | ناچاپ |
| د پښتو ادب کې د ولسي شاعرۍ ارزښت | | ناچاپ |
| د پښتو بیان او معاني | | تر لیکنې لاندې |
| د لغمان مشاهیر | | تر لیکنې لاندې |
| د افغانستان د ولایتونو جغرافیه (ژباړه) | | ۱۳۷۹هـ ل چاپ |

# دانش خپرندويې ټولنې خپاره کړي:

- تاريخ احمد شاهي
- افغانستان در قرن بيستم
- تاج التواريخ- پښتو
- د افغانستان سقوط
- سقوط افغانستان
- در افغانستان چه ميگذشت؟
- افغانستان سيتج بازى بزرگ
- د افغانستان لنډ تاريخ
- تاريخ مختصر افغانستان
- خسارات وارده به فرهنگ...
- شبخون افغان
- در زواياى تاريخ معاصر...
- رجال و رويداد هاى تاريخى...
- بازى بزرگ
- افغانستان سرزمين اريا
- افغانستان د تاريخ په رڼا کې
- جريانات تاريخى افغانستان
- نقد بر جلد دوم مسير تاريخ...
- خاطرات حکيم طبيبى
- اسنا دونامه هاى تاريخى...
- سرې لښکرې په افغانستان کې
- افغانستان څنګه تباه شو؟
- د مرګېر وزرو
- سوځېدلى جنت
- احمد شاه بابا ديوان
- احمد شاه بابا افغان
- د الفت شعري کليات
- د الفت نثري کليات
- غرغښت يا ګرشاسپ
- تاريخ خط و نوشته هاى کهن
- روسيې پراختيا غوښته او ...
- سيماى سينماى افغانى
- ميتود هاى کلينکى طبى
- ګلزار لطايف
- جنسى اړيکې
- رازى راکه نميخواستم افشا کنم
- د پښتو ادبياتو تاريخ
- ياداشتهاى من
- مدعا و مثل در شعر بيدل
- داود خان د کې.جي.بي په ...
- فن زناشوى
- د ښاپېرۍ ورغوى
- له نرګسه تر نرګسه
- خوږې خبرې
- پلوشې، ژورليدونه
- افغانستان از جنګ ګرم تا جنګ...
- ضرب الامثال و کنايات
- يکدسته ګل
- ستوري د ادب په اسمان کې
- افکار جاويد
- اهنګهاى احمدظاهر
- اهنګهاى ساربان
- اهنګهاى ناشناس
- د خزان طلايي پلونه
- سپوږمۍ په ځنګل زار کې
- ولسي سندرې
- محمد نور ولسي شاعر
- پاتې شه باران دى
- شين ټاغى
- ګټيالى
- ګلستان سندره
- د غزني شابهار او بودايي هنر
- شريک بالاپوش
- کوچيانۍ پانګه
- منثور کره کتنه
- او نور...

دانش خپرندويه ټولنه
۰۹۲-۹۱-۲۵۶۴۵۱۳